أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ

# د جمهوریت د اسلام سره تضادات

# او

# سیاسي نظامونه

**تالیف: شیخ ګل محمد حفظه الله**

# اجمالي فهرست

# تفصيلي فهرست

إن الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن يضلل فلا هادي له وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له وأشهد أن محمدا عبده ورسوله. {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ} .{يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالاً كَثِيراً وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيباً}{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلاً سَدِيداً، يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزاً عَظِيماً} أما بعد فاعوذ بالله من الشيطان الرجيم

**وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ (ال عمران:۸۵)**

**أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ (المائدة:۵۰)**

**وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ الْمُجْرِمِينَ (الانعام:۵۵)**

وعن حُذَيفَةَ بْنِ اليمَانِ قالَ:كانَ النَّاسُ يَسْأَلُونَ رَسُولَ الله - صلى الله عليه وسلم - عَنِ الخيْرِ؟ وَكُنْتُ أسْأَلُهُ عَنِ (وفي طريق: تعلَّمَ أصحابي الخير، وتعلَّمتُ) الشَّرّ؛ مَخَافَةَ أنْ يُدْرِكَني(متفق عليه)

وقال المحدث الشهير عبد الكريم بن ابى المخارق رحمه الله لان ارد رجلا من راى سيئ احب الى من اعتكاف شهر۔

**تمهید:**

د الله تعالى په نيز مقبول نظام او دين صرف اسلام دے۔ نور ټول اديان مذاهب او نظآمونه مردود غير مقبول دي۔ بيا وخت په وخت د اسلام په مقابله کښ مختلف دينونه او نظامونه وجود ته راغلي په دغه نظامونو کښ يو نظام جمهوريت دے او په موجوده وخت کښ دا ډير خطرناک نظام دے ځکه دا داسلام خلاف يو غير اعلانيه جنګ دے او ترڅو چه جمهوري نظام مستحکم وي نو اسلام او اسلامي نظام وده او ترقي نشي کولي او جمهوريت په اسلام يوه ډيره خطرناکه حمله ده۔

بل طرف ته په عالمي سطحه جمهوريت ته ډير اهميت ورکولي شي تر دي چه جمهوريت د دوي کلمه طيبه ګرځيدلي۔ ټول سياسي قائدين دا خبره کوي چه د ټولو مشکلاتو واحد حل د جمهوريت بحالي او نفاذ دے او بس۔ هغه مشکلات که د غريبانو غربت وي او که د مظلومانو د ظلم قصے دي او که بے انصافي او بد امني ده او که بے چيني بدعنواني او رشوت خوري ده۔ د دے ټولو حل دغه جمهوريت دے۔

پدے وجه کفري ملکونه د جمهوریت د استحکام دپاره په ډیره لویه پیمانه مالونه لګوي او د بعض ملکونو سره همکاري د جمهوریت د استحکام په اندازه کیږي چه څومره جمهوریت ته وده او ترقي ورکوي په هغه اندازه ورسره مالي همکاري کیږي۔

د جمهوریت د نفاذ او بحالي دپاره چه څوک څه کردار اداء کوي نو ټول طاغوتي قوتونه هغه د یو هیرو په طور پیش کوي بلکه هغه ته اعزازي تمغات هم ورکوي او د طاغوتي قوتونو دا پروپیګنډه دومره کامیابي ته ورسیده چه نن صبا په اسلامي ملکونو کښ هم که کومه پارټي یا لیډر د عوامي مقبولیت خواهشمن وي نو هغه باربار د جمهوریت ثنا خو اني او صفتونه کوي بلکه بعض خلق د اسلام تعریف او تحسین په مغربي ملکونو کښ په داسے انداز د واضحه کولو کوشش کوي چه په اسلام کښ هم جمهوریت شته او د دے سره د اسلامي جمهورت پیوندکاري کوي۔ تردي چه بعض براي نام مسلمانانو په نیز دغه ام السیئات یعني مروجه جمهورت په ام الحسنات او خیر مطلق بدل شوي۔ پدے وجه مونږ د دغه جمهوریت د تردید دپاره دا رساله شروع کړه لکن په اوله حصه کښ مونږ بطور تمهید نور سیاسي نظامونه هم ذکر کړل او د دغه سیاسي نظامونو بحث مونږ ټول د مولانا تقي صاحب د کتاب اسلام اورسیاسي نظریات نه نقل کړو۔ خو زمونږ اصل مقصد د جمهوریت تردید او وضاحت دے چه د جمهوریت تعریف څه دے او د دے بنیاد چا ایښي او د دے بنیادونه او اجزاء ترکیبي څه دي، د دے اسباب او عوامل څه دي، د دے اغراض او مقاصد څه دي او د جمهوریت د اسلام او نصوصو سره څومره نضادات دي او اسلام او جمهوریت څومره په بیلا بیل لارو روان دي او د مروجه جمهوریت په خپلولو کښ مسلمانانو څه اومندل او څه وشو۔

بیا پدي رساله کښ مونږ دا کوشش کړي چه د تنګ نظري او تعصب او د بے ځایه جذباتو نه په غیر اصل حقائق پیش کړو او د ټولو لوستونکو حضر اتو نه دا امیدکوم چه خپل ځان خالي الذهن کړي، د جمهوریت د حقیقت د پیجاندلونه روستو خپل انصاف وکړي او په انصاف بنا فیصله وکړي او د لوستونکو حضر اتو نه دا مطالبه کوم کچري جمهوریت ام السیئات او ام الخبائث وي او د دے په نافذ کولو سره د اسلام جرړي پریکولي شي او د اسلام بنیادونه ختمیږي نو د رب د رضا دپاره د جمهوریت په تردید کښ خپل مسئولیت اداء کړي۔ ځاي په ځاي په درسونو بیانونو او جلسو کښ د جمهوریت خلاف بیانونه وکړي او د خلقو په ذهن کښ د دے فاسد نظام سره بغض او نفرت پیدا کړي او مسلمانان د دے نظام مخالفت او مقابلے ته رابیدارکړي او خپل رب ته د دے نظام نه صفائي او بر ائت پیش کړي۔

بیا پدے رساله کښ چه کوم مباحث شوي نو د دے دپاره مونږ د مختلفو کتابونو او رسالو مطالعه وکړه۔ پدے رساله کښ د دغه مطالعے حاصل او نچوړ ذکر کوو۔

الحمد لله الذی هدانا لهذا وماکنا لنهتدي لولا ان هدانا الله۔

# اول باب: سیاست او سیاسي نظامونه

## د سیاست معني لغوي او اصطلاحي

مولانا عبد الباقي د اسلام سیاسي او اداري نظام ص:۴۷ ج:۱ کښې واي مونږ ئے حاصل نقل کوو۔ سیاست د مصدر صیغه ده، د ساس یسوس نه په شان د قال یقول او د دے مادے بل مصدر سوس راځي په شان د قول۔

د سیاست لغوي معني ابن منظور افریقي رحمه الله المتوفي ۷۱۱ھ په لسان العرب ص:۴۲۹ ج:۶ کښې او ابن الاثیر المتوفي ۶۳۰ھ په النهایة في غریب الحدیث ص:۴۲۱ ج:۲ کښې واي:

السیاسة القیام علي الشيئ بما یصلحه

د یو شي د اصلاح دپاره ودریدل

یعني د یو شي د اصلاح دپاره ملا تړل او کلک ودریدل چه فساد ختم شي او اصلاح مینځ ته راشي۔

دغه رنګي سیاست په لغت کښې رعایت او تدبیر ته واي، لکه اسماء رضي الله عنها واي:

کان له (للزبیر) فرس کنت اسوسه

د زبیر رضي الله اس وو چه ما به د هغه رعایت او د هغه خدمت کولو یعني د اس د ساتنې وغیره تدبیر به مې جوړولو۔

نو د لغوي معني حاصل د اشو چه د یو شي د اصلاح دپاره مناسب تدبیر جوړول۔

## د سیاست معني اصطلاحي:

امام غزالي رحمه الله په احیاء العلوم ص:۲۴ کښې واي:

استصلاح الخلق وارشادهم الي الطریق المستقیم المنجي في الدنیا والآخرة

د خلقو اصلاح کول او خلقو ته د هغه نیغې لار ښودنه کول چه هغه په دنیا او آخرت کښې نجات ورکونکي وي۔

ابو حفص عمر نسفي حنفي المتوفي ۵۳۷ ھ په طلبة الطلبة ص:۳۰۲ کښې واي:

حیاطة الرعیة بما یصلحها لطفا وعنفا

( د رعیت د کارونو څارنه او اصلاح کول)۔

ابن خلدون په مقدمه ص:۱۴۳ کښې واي:

هی کفالة للخلق وخلافة لله في العباد لتنفيذ احكامه فيهم

سیاست د خلقو د ضرورتونو کفالت دي او دالله خلافت دي دالله په بندګاني کي ددي پاره چی په خلقو کی د الله تعالي حکومه تطبيق او نافذ کړي -د الله تعالي احکامو په جاري کولو د سیاست اطلاق ځکه کیږي چه د الله تعالي په احکامو د مخلوق کامله اصلاح راځي- دغه رنګي حاکم او امیر چه د یو چا دپاره کوم تعزیر مقرر کړي هغه ته هم فقهاء کرام سیاست واي ځکه د هغه سره هم اصلاح راځي-

د سیاست دوه قسمونه شرعي او وضعي

شرعي هغه دے چه د هغه بنیاد په شرعي اصولو وي او وضعي هغه دي چی د هغه بنیاد په شرعي اصولو نه وي بلکه بنیاد ئے په عرف او عادت وي یا ئے بنیاد په تجربو وي یا په زړو رواجونو وي د آسماني وحي لحاظ پکښ نه وي-

## د علم سیاست تعریف موضوع او غرض

هر کله چه سیاست یو علم او فن دے او په هر علم او فن کښ دري خبري پیجاندل ضروري دي، تعریف، موضوع او غرض-

### د علم سیاست تعریف:

د سیاست د علم د تعریف په رابطه علامه حسن صعب لیکلی دی:

علم السياسة هی علم تبحث عن الشؤون العامة والخاصة للدولة وتبحث عن تنظيماتها وارتباطها بالدول الاخرى (علم السياسة ص:١٩)

د سیاست علم بحث کوی د عامو او خاصو امورو د دولت نه دهغو امورو نه کوم چه د دولت د نظم او انتظام سره تعلق لری او همدا رنګی بحث کوی د ارتباط او تعلقاتو د دولت د نورو دولتونو سره-

طاش کبری زاده رحمه الله د علم سیاست تعریف دا رنګی کوی:

علم يعرف منه انواع الرياسات والسياسات والاجتماعات المدنية (مفتاح السعادة ومصباح السيادة ص:٣٨٦ ج:١ الشعبة الثالثة فی علم السياسة)

دا هغه علم دي چه د دي په توسط د ریاستونو، سیاستونو او د مدني ټولنو اقسام پیژ اندلي شي-

طاش کبري زاده رحمه الله دا خبره واضحه کړه چه د علم سیاست احوال به بادشاهانو، امیرانو، اهل احتساب، قاضیانو، علماوو، د مالونو مشرانو، د بیت المال د وکیلانو او دهغه چا احوال وي چه د دوي مماثل وي-

## د علم سیاست غایه او غرض:

د هر شي دپاره غایه او غرض وي، نو د علم سیاست غایه او غرض په ارتباط علامه عبد الوهاب خلاف رحمه الله چه په ۱۹۵۶ء کښ وفات شوي لیکلي دي:

غايته: الوصول الى تدبير شؤون الدولة الاسلامية بنظم من دينها والابانة من كفاية الاسلام بالسياسة الصادقة وتقبله رعاية مصالح الناس فى مختلف العصور والبلدان (السياسة الشرعية فى شؤون الدستورية والخارجية والمالية ص:۷)

د علم سیاست غرض او غایه رسیدل دي د تدبیر د امورو د اسلامي دولت ته په منظم او مرتب کولو د دیني امورو سره په کولو د صادق شرعي سیاست سره د دي ښکاره کول دي، چه اسلام په خپله خود کفیل نظام دي او د دنیا وضعي نظامونو ته محتاج نه دي او د دي خبري اظهار دي چه اسلام تر قیامته پوري د ټولو خلقو مختلفو وختونو او ښارونو او علاقو کښ د دوي د مصالحو ذموار دي۔

## د علم سیاست موضوع:

دهر علم جدا جدا موضوع وي چه په دي علم کښ د دي موضوع د ذاتي عوارضو نه بحث کیدي شي نو د سیاست د علم د موضوع په رابطه علامه عبد الوهاب خلاف رحمه الله لیکلي دي:

موضوعه: النظم والقوانين التى تتطلبها شؤون الدولة من حيث مطابقتها لاصول الدين، وتحقيقها مصالح الناس وحاجاتهم (السياسة الشرعية ص:۷)

د علم سیاست موضوع هغه بنیادونه او هغه قوانین دي چه د دولت امورئ تقاضا کوي او دا بنیادونه او قوانین به مطابق وي د اصولو د دین سره چه د خلقو ګټي، مصلحتونه او ضرورتونه به ترسره کوي۔

(د اسلام سیاسي او اداري نظام ص:۱۳۱ ج:۱)

## په سیاست کښ اولني کتاب:

په سیاست کښ اولني کتاب د سقراط شاګرد افلاطون لیکلي۔ دهغه کتاب نوم دے جمهوریه۔ افلاطون د عیسي علیه السلام نه تقریبا څلورسوه (۴۰۰) کاله مخکښ تیر شوي او د جمهوریه لفظ د ټولونه مخکښ افلاطون استعمال کړي۔

د افلاطون نه روستو دهغه شاګرد ارسطو کتاب لیکلي، د هغه نوم دے "سیاست"۔ پدیکښ د افلاطون د کتاب نه ترتیب او تفصیل زیات بهتر دے او دا د ټول فکري نظریو دپاره بنیاد دے۔ ارسطو د عیسي علیه السلام نه دري سوه (۳۰۰) یا دري نیم سوه کاله مخکښ تیر شوي۔

بهرحال د علم سياست مباحث ډير د مخکښ نه رانقل شوي ځکه پدي سقراط افلاطون او ارسطو مباحث کړي بيا روستو نورو خلقو پدے مباحث کړي۔ لکن دوي ټولو خيالي خبري کړي او د خيالي نظريو په بنياد ئې خپل کتابونه ليکلي۔

بيا روستو مسلمانانو او علماء کرامو پدے موضوع د قرآن او سنت په رڼړا کښ د السياسة الاسلامية يا السياسة الشرعية په نوم ډير کتابونه ليکلي۔

مولانا عبد الباقي په خپل کتاب د اسلام سياسي او اداري نظام ص:۹۷ ج:۱ کښ پدے موضوع د دري سوه ديارلس (۳۱۳) کتابونو نومونه او دهغې د مصنفينو نومونه ذکر کړي لکه الاحکام السلطانيه د ماوردي ډير مشهور دے، دغه رنګې الاحکام السلطانيه دابو يعلي۔

## مختلف سياسي نظامونه:

د حکومتونو د چلولو دپاره مختلف سياسي نظامونه دي۔ د دے وخته پوري په دنيا کښ مشهور نظامونه درے قسمه چليدلي دي:

۱۔ بادشاهت ۲۔ اشرافيه ۳۔ جمهوريت

بيا په دے درے قسمه نظامونه کښ مختلف شاخونه جوړ شوي۔

## بادشاهت:

د عالم په تاريخ کښ د ټولو نه ډير جاري او نافذ سياسي نظام د بادشاهت نظام دے۔ بيا د بادشاهت ډير قسمونه دي:

۱۔ مطلق العنان بادشاهت

۲۔ شورائي بادشاهت

۳۔ مذهبي بادشاهت

۴۔ دستوري بادشاهت

## ۱۔ مطلق العنان بادشاهت:

ديته واي چه په هغه کښ بادشاه د يو قانون پابند نه وي۔ د مشوري پابند نه وي، څوک ترينه تپوس نه شي کولي، د هغه ژبه قانون وي چه څه واي هغه قانون وي په خپله قانون جوړوي په خپله د حکومت انتظام چلوي۔ داسي نظام حکومت د فرعون او نمرود وو، تردے چه هغوي د خدائي دعوي هم کړيوه۔

## ۲ـ شورائي بادشاهت:

دیته واي چه بادشاه په خپله قانون هم جوړوي، انتظامي فیصلي هم کوي لکن د هغه سره یوه شوري هم وي چه دهغوي سره د احکامو په جاري کولو کښ او په انتظامي معاملاتو کښ مشوري کوي۔

بیا په بعض ځایونو کښ داسي وي چه بادشاه د مشوري پابند نه وي او په بعض ځایونو کښ د مشوري پابند وي۔

په مخکښ تاریخ کښ به د ټولونه مهذب ریاستونه د یونان ریاستونه ګڼړلي شو۔ په دغه زمانه کښ د ښهري ریاستونو نظام جاري وو، یعني هر ښار مستقل حکومت وو او د مستقل ملک حیثیت ئے وو او دا نظام د ډیري زماني پوري جاري وو۔ په دغه زمانه کښ به ښار قلعه بند وو، ښار به په یو قلعه کښ محصور وو او په دغه قلعه کښ دننه اوسیدونکي به د یو ریاست افراد ګڼړلي شو۔ د هر ښار به ځانله مشر وو او د هر یو به ځانله نظام حکومت وو۔ د دوي بادشاه په اول کښ مطلق العنان وو، روستو ئے د شورائي بادشاهت نظام غوره کړو۔

په بعض ریاستونو کښ به بادشاه د شوري پابند وو او په بعض کښ به د شوري پابند نه وو۔ په بعض ریاستونو کښ حدود متعین کړیو، په بعض معاملاتو کښ به بادشاه په خپل صوابدید فیصلي کولي او په بعض معاملاتو کښ د شوری پابند وو۔ دا د دعیسي علیه السلام نه تقریبا دري، څلور سوه کاله مخکني زمانه وه۔

## ۳ـ مذهبي بادشاهت:

دیته واي چه په هغه کښ د بادشاه د اقتدار او اختیار سرچشمه مذهب وي، یعني مذهبي خلق په مذهبي طور د هغه انتخاب کوي او د مذهبي مشرانو د تشریح مطابق د مذهب تابع وي۔

دمذهبي بادشاهت رواج د ډیري زماني پوري په عیسایانو کښ چلیدلي وو۔ چه کله عیسي علیه السلام اسمان ته تشریف ویوړنو دهغه نه تقریبا دري سوه (۳۰۰) کاله روستو د دے آغاز شویو۔

د عیسي علیه السلام په تابعدارو دري سوه (۳۰۰) کاله داسي تیر شویو چه د هغوي سره به مخالفینو ظلمونه کول او د هغوي څه مرکز نه وو۔

د دري سوه (۳۰۰) کاله پوري دا سلسله جاري وه چه هغوي به در پرده تبلیغ کولو او د عیسي علیه السلام اصل تابعدار موحدین وو۔

لکن د دے دري سوه (۳۰۰) کاله په دوران کښ د عیسي علیه السلام په اصل مذهب کښ تحریف وشو، تردے چه د اصل مذهب خلق ختم او یا ډیر کم شو۔ په دغه وخت کښ په دوي کښ یهودي عناصر داخل شو، پولوس پکښ داخل شو، په عیسائي مذهب کښ تحریفونه وکړل۔

روميان د مخکښ نه بت پرست وو لکن چه کله عيسي عليه السلام اسمانون ته پورته شو نو دهغه نه دري سوه (۳۰۰) کاله روستو د روم بادشاه قسطنطين چه هغه ته قسطنطين اعظم هم واي هغه عيسائي شو، خو هغه عيسائيت ئې قبول کړو چه په هغه کښ پولوس تحريف کړيو۔

دا هغه بادشاه دے چه دده په نوم قسطنطنيه ښار جوړ شويو چه نن صبا ورته استنبول واي او دا بيا د عيسائي رياست پايه تخت جوړ شو۔

د قسطنطين اول د عيسائي کيدو نه روستو په روم کښ د عيسائي مذهب د حکومت آغازوشو۔

په دغه وخت کښ د پولوس والا عيسائي مذهب پيشوا او مشر اتهانا سيوس وو۔ دغه مذهبي مشر قسطنطين اول لره په مذهبی طور بادشاه مقرر کړو او د دينه په روم کښ د مذهبي بادشاهت وجود شروع شو۔

د دے مذهبي بادشاه خصوصيت دا وو چه د کليسا مشر چه هغه ته پوپ واي په مذهبي معاملاتو کښ به دهغه فيصله آخري فيصله وه او په خالص سياسي معاملاتو کښ به بادشاه فيصله کوله۔ پوپ به دا فيصله هم کوله چه کومه معامله مذهبي ده۔ پدے وجه بادشاه د ډير حد پوري په خپلو فيصلو کښ د چرچ د سربراه د فيصلو تابع وو۔

پدے وجه د روم په تاريخ کښ به دا لوي مصيبت وو چه د پوپ او د بادشاه د اختياراتو حدود کوم کوم دي۔ پدے بئې سختې جګړي کولي او دا د دوي لا ينحل مسئله وه۔ تردے چه د سيکولر نظام حکومت لاندي په ويټي کن کښ د پوپ ځانله رياست قائم شو۔

حاصل د اشو چه مذهبي بادشاهت په عيسايانو کښ د قسطنطين د دور نه شروع شويو چه کله هغه عيسائي شو۔

**دستوري بادشاهت:**

دستوري بادشاهت ديته واي چه په هغه کښ بادشاه د يو دستور او قانون پابندي وي چه د هغه قانون نه آخوا ديخوا کيدي نه شي۔

دا دستوري بادشاهت په مختلف دورونو کښ چليدلي دے۔ په يونان کښ چليدلي دے، د روم په تاريخ کښ هم داسي زمانه راغلي چه په هغه کښ بادشاه د دستور پابند وو۔ پدے وخت کښ هم دستوري بادشاهت د پارليماني نظام يوه حصه ده۔ په برطانيه کښ هم د دستوري بادشاهت نظام دے لکن دغه بادشاهت برائ نام دے، اختيارات ورسره نه وي۔ اصل انتظامي اختيارات ټول د کابيني سره وي يا د پارليمنت سره۔

بهرحال د بادشاهت څلور قسمونه دي د مطلق العنان بادشاهت نه واخله د براي نام بادشاهت پوري۔

بیا بادشاهت ملوکیت سلطنت کله صحیح وي کله غلط۔ ځکه د دے دارومدار په اختیاراتو او اصولو دے چه د ده اختیارات څومره دي او د کومو اصولو او نظام د لاندي حکومت کوي که نظام ئے صحیح وو نو دغه بادشاهت او حکومت صحیح دے او که نظام غلط وو نو دغه بادشاهت یا حکومت صحیح نه دے۔ نوم له اعتبار نشته، نوم هر څنګه چه وي که نوم د خلیفه وي اوکه د ملک وي او که د سلطان اوکه د صدر وي۔

## اشر افیه نظام:

دویم قسم سیاسي نظام ته اشر افیه نظام واي۔ اشر افیه د اشراف نه دے۔ اشراف عزتمندو خلقو ته واي، یعني هغه خلق چه معاشره کښ قدر او احترام لري۔ د دے نظام حاصل دا دے چه حکومت کول د هر چا حق نه دے بلکښ دا د خاص عزتمندو خلقو کار دے او دهغوي حق دے۔

بیا د عزتمندو خلقو تعین مختلف خلق په مختلفو طریقو کوي۔ بعض واي چه د نسب په اعتبار امتیازي حیثیت لري، بعض واي چه د مذهب په اعتبار امتیازي حیثیت لري، بعض واي چه خاص صلاحیتونه او صفتونه لري، مثلا هوښیاروي او بهادروي۔

بهر حال د اشر افو او عزتمندو خلقو نه مختلف تعبیرونه شوي لکن ټول پدیکښ متفق دي چه حکومت کول د هر چا حق نه دے بلکښ د مخصوص طبقے حق دے چه هغه حکمر انان وي او ټولو خلقو له دهغوي طاعت پکار دے او ددے تصور آغاز په حقیقیت کښ د ارسطو او افلاطون نه شویو۔ ځکه دوي ویلي وو چه د حکمر اني حق د هغه چا دے چه هغه د علمي صلاحیت په اعتبار ممتاز وي، نو دوي د علمي اشر افیه تصور پیش کړیو لکن دا تصور عملا په وجود کښ نه دے راغلي۔ یعني عملا داسي نظام نه دے قائم شوي چه هغه خالص په علمي بنیادونو د حکومت انتخاب وکړي، دا صرف د هغوي دماغي تخیل او آرزو او تمنا وه۔

## نسلي اشر افیه

اشر افیه نظام کښ ډیر قسمونه دي، یو علمي اشر افیه وو خو علمي اشر افیه نظام په وجود کښ نه دے راغلي۔

دویم قسم نسبي یا نسلي اشر افیه نظام دے۔ د دے مطلب دا دے چه د یو نسب یا نسل تعین وشي چه حکمر اني صرف د دے نسل یا نسب یا قبیلے حق دے او دا نظام په ډیرو قومونو کښ دے۔ خصوصا په هندو انو کښ چه حکومت کول د برهمن یا راجپوت یا کمشتري نسلونو حق دے۔

## مذهبي اشر افیه یا تهیوکریسي

په اشر افیه نظام کښ دریم قسم مذهبي اشر افیه دے او دیته تهیوکریسي هم واي او دیته د مذهبي مشر انو حاکمیت هم واي۔

تهیوکریسي په اصل کښ یوناني لفظ دے۔ په یوناني ژبه کښ تهیو خدا ته واي او کریسي حاکمیت ته واي یعني د خداي تعالي حاکمیت۔

د دے نظام اصل تصور ډیر مبارک دے، ځکه پدے کائناتو کښ اصل حاکمیت د الله تعالي دے لکن دا سوال پیدا کیږي چه د الله تعالي د احکامو تعین به څوک کوي۔

په عیسائي دنیا کښ د دے عملي جواب د ادے چه د چرچ سربراه پوپ به د دے تعین کوي۔ هغه ته دا اختیار حاصل دے چه هغه د الله تعالي د احکامو تعین وکړي او بادشاه ته ئے وښاي۔

د چرچ سربراه چه کوم شی ته د الله تعالي حکم اوواي نو د حکومت سربراه به مجبور وي په هغه به عملی کوي۔

د دے نتیجه دا ده چه عملا د تهیوکریسي مطلب د مذهبي مشرانو حاکمیت دے۔ مونږ مخکښ ذکر کړیو چه د روم په عیسائي حکومتونو کښ دا ډیر لاینحل مسئله وه، د پوپ او بادشاه په مینځ کښ ډیر اختلاف وو۔ پدیکښ بل نقصان دا وو چه هر کله پوپ ته مکمل اختیار وو چه هغه د مذهب د احکامو تعین وکړي چا به ﺋﮯ هیڅ اعتراض نه شو کولي۔ د دے وجه نه به پوپ په ډیرځایونو کښ خپل اختیارات په ناجائز طریقه استعمالول۔ خصوصا چه کله به داسي خلق پوپ جوړشو چه هغه به د ذاتي مفاداتو غرضیان وو نو هغه به ډیرے ﺑﮯ رحمه پالیسیاني جوړولي چه دهغه په وجه به ټول قوم د جبر او تشدد ښکار وو۔

د دے ټول صورت حال په نتیجه کښ د عوامو په مینځ کښ د مذهب خلاف بغاوت پیدا شو۔ آخر دا چه هغوي د حکومت نه د مذهب عمل دخل ختم کړو او سیکولر نظام حکومت ئے قائم کړو او تهیوکریسي لفظ بدنام شو، ځکه د دے لفظ په آوریدو سره په ذهن کښ هغه ټولي خرابیاني راغلي چه د پوپ ادارے پیدا کړي وي۔

زمونږ په معاشره کښ هم خلق واي چه اسلام د تهیوکریسي خلاف دے، کله چه په پاکستان کښ د اسلامي حکومت خبره کیږي نو بعض تجدد پسند واي چه دا خلق تهیوکریسي غواړي او مونږ په پاکستان کښ تهیوکریسي نه غواړو۔ لکن دے خلقو اصل تهیوکریسي نه ده پیجاندلي، ځکه د تهیوکریسي اصل معني ده دخداي حاکمیت۔ قرآن هم واي ان الحکم الا الله، که څوک واي چه په اسلام کښ تهیوکریسي نشته یعني په اسلام کښ د خداي حاکمیت نشته نو دا خو ډیره خطرناکه خبره ده۔

نو تهیوکریسي اصل معني صحیح ده لکن د مختلف مذاهبو د طرف نه خصوصا د عیسایانو د طرف نه پدیکښ خرابیاني راغلي چه دهغه په نتیجه کښ دا لفظ بدنام شوي۔

### د یهودیانو او هندوانو تهیوکریسي

د ټولو نه مخکښ چه کومه تهیوکریسي په وجود کښ راغلي وه نو هغه د یهودیانو تهیوکریسي وه۔

د دے بنیاد دا وو چه د موسي علیه السلام نه روستو د عیسي علیه السلام پورې ټول بني اسرائیل د تورات د احکامو پابند وو او دا د دوي شریعت وو او د یهودو په اصطلاح کښې بۀ د تورات احکامو ته قانون ویلو لکن په تورات کښې دعبادت طهارت وغیره احکام ډیر وو خو لکن د تمدني زندګۍ احکام کم وو.

د دے وجه د یهودي مذهب په بنیاد به چه کوم ریاست قائم شو نو دوي به ویل چه مونږ به دا ریاست د تورات د قانون مطابق چلوو لکن د تورات په قانون کښې خو ټولې خبرې نه وې، پدے وجه داسي صورت حال به مخې ته راغلي چه دهغه صریح حکم به په تورات کښې نه وو. نو په داسي صورت کښې د دوي مذهبي مشر ته دا حق ورکړې شوې وو چه دوي د الله تعالي رضا معلومه کړي او دهغه مطابق قانون سازي وکړي او د الله تعالي د رضا د معلومولو دپاره دوي دا طریقه جوړه کړې وه چه یوه خیمه به وه، هغې ته بۀ خیمه د عبادت ویله په هغه خیمه کښې به یو تابوت وو په هغه تابوت به د سروزرو غلاف غوړیدلې وو د دوي مذهبي پیشوا به دهغه تابوت خو اته کیناست، او حتي الامکان بۀ د داسي وخت انتخاب کولو چه په اسمان کښې وریځ او بریښنا وه. هلته په کیناست مر اقبه بۀ کوله او څه دعاګانې بۀ لوستلې، دهغې په نتیجه کښې به په اسمان کښې بریښنا وشوه. دوي به اویل چه ما ته یهوواه دا حکم کړې (یهودو به یهووا خداي ته ویلو). دوي به ویل چه یهووا د مذهبي مشر سره براه راست خبرې وکړې او دنوي صورت حال په باره کښې قانون ورکړو.

او که په اسمان کښې به بریښنا ونه شوه نو بیا به هم دوي مر اقبه کوله او دا دعوه بۀ کوله چه ماته دا الهام وشو. خو دا هسې وهمي خبرې وې په خلقو ئے خپله مشرې منله او دغه قانون په حقیقیت کښې د الله تعالي قانون نه وو بلکښې خپل خواهشات خپله راي او سوچ ئے الله تعالي ته منسوب کولو او په خلقو ئے نافذ کولو.

دا قسم تهیوکریسي په هندوانو کښې هم وه چه د هغوي برهمن پروهت ته دا اختیار وو چه براه راست د خداي سره رابطه قائم کړي او څه قانون جاري کړي.

د دے دوه قسمه مذهبي مشرانو فیصله به هیچا نه شوه چیلنج کولې چه تا کوم حکم الله تعالي ته منسوب کړې نو دا په حقیقیت کښې د الله تعالي حکم نه دے.

په بعض ځایونو کښې په بده مذهب کښې هم مذهبي مشرانو ته براه راست د خداي سره د رابطے کولو او د قانون د متعین کولو حق حاصل وو.

په تبت او جاپان کښې په لامه نومِ ډلو کښې دا سلسله تراوسه پورې موجود ده.

بهرحال چه کله مذهبي مشرانو د خپل خود ساخته الهام په بنیاد به کومِ خبرې له د خداي حکم مقرر کړو نو بادشاه به دهغې په منلو پابند وو رفته رفته بادشاهانو دا سوچ وکړو چه دا خو عجیبه مصیبت دے چه مذهبي مشران څه اوغواړي الله تعالي ته ئے منسوب کوي او په مونږ ئے مسلط کوي. لهذا

داسي ولي نه کوو چه دا اتهارټي ترینه هم مونږ واخلو چه دوي مر اقبه کولي شي دالله تعالي مرضي معلومولي شي نو مونږ ئے هم کولي شو۔ لهذا رفته رفته دوي بعض مذهبي مشران په اعتماد کښ واخستل او دا اختیار ئے ځان ته نقل کړو۔

یعني دا دعوي ئے وکړه چه بعض مذهبي مشر انو ته دا الهام شوي چه اوس دا اختیار بادشاه ته حواله کړي نو اختیار بادشاه ته حواله شو۔

د دے په نتیجه کښ دا فیصله وشوه چه بادشاه څه اوواي نو دا خدائي قانون دے۔ د بادشاه هر حکم به خلقو له واجب الاطاعت وي او کچري ظم زیاتي کوي نو خلق به برداشت کوي، دهغه د برطرف کولو کوشش به نه کوي، ځکه دا هر څه د الله تعالي د مشیت مطابق کوي۔ پدے طریقه تهیوکریسي د مذهبي پیشو ائیت نه لاړه د بادشاهت سره میلاؤشوه۔

## عیسائي تهیوکریسي

د عیسي علیه السلام نه روستو په څلورمه صدي کښ چه کله قسطنطین بادشاه عیسائي مذهب قبول کړو او هغه عیسائي مذهب سرکاري مذهب مقرر کړو او د عیسائي مذهب په څلور واړه انجیلونو کښ تمدني او سیاسي احکام دیرزیات کم وو، د سیاست او حکومت متعلق احکام د نشت بر ابر وو نو سوال دا پیدا شو چه د مذهب په بنیاد به قانون څرنګې جوړولي شي۔

نو دوي د احکامو او د قو انینو د جوړولو مکمل اختیار کلیسا (چرچ) ته ورکړو، د کلیسا سربراه پوپ یا پاپا ته۔ د رومن کیتهولک مذهب دا عقیده ده چه پوپ په مذهبي معاملاتو او امور تشریعیه وو کښ معصوم عن الخطا دي، یعني دوي واي چه پوپ کله د شریعت څه حکم جاري کوي یا کوم قانون نافذ کوي نو دا معصوم وي خطا ترینه نه کیږي، او پوپ صرف شارح د قانون نه وي بلکښ شارع یعني قانون ساز هم وي، یعني هغه ته د قانون د جوړولو اختیار هم وي او پدے معامله کښ د ا معصوم هم وي۔ البته په باقي معاملاتو کښ د ده نه خطاهم کیدیشي، او تر څو چه یو سړي پوپ نه وي جوړ شوي هغه معصوم نه وي خو چه کله پوپ جوړشي نو بیا معصوم وي۔

اوس یو طرف ته په اناجیل اربعه وو کښ د حکومت او سیاست په معاملاتو کښ واضحه قو انین موجود نه دي بل طرف ته پوپ د دومره زبردست اقتدار مالک دے چه هغه معصوم عن الخطا ګڼړلي شي۔ پدے وجه ټول دارومدار په پوپ شو چه هغه کوم حکم جاري کول غواړي یا کوم قانون نافذ کول غواړي نو هیڅ قسم انسان هغه نه شي چیلنج کولي۔ مخکښ مونږ ذکر کړیو چه د پوپ او د بادشاه په مینځ کښ به په اختیار اتو ډیر اختلاف ر اتلو۔

بهر حال د دینه اندازه پکارده چه نوم د تهیوکریسي دے د خداي حاکمیت لکن په حقیقیت کښ د یوڅو افرادو بدترین آمریت وو او دوي د خداي په نوم او د مذهب په نوم یو طوفان ر اپورته کړیو۔

## جاګیردارانه نظام:

په اشرافیه نظام کښ شپږ قسمونه دي، علمي ، نسلي، مذهبي، جاګیرارانه نظام

د علمِ سیاست مصنفین جاګیردارانه نظام د اشرافیه نظام د یو قسم په طورنه ذکرکوي لکن مونږ د دے ذکرکول دلته مناسب وګڼړل ځکه داشرافیه چه کوم وسیع مفهوم دے نو دهغه وسیع مفهوم مطابق جاګیردارانه نظام د اشرافیه نظام لاندي راځي، او هغه وسیع مفهوم دا دے چه اشرافیه نظام دیته واي چه په هغه کښ د یو خاص طبقے حکومت وي یا د یو خاص طبقے براه راست حکومت نه وي لکن دومره اثررسوخ لري چه معنا درپرده حکومت کوي۔

جاګیردارانه نظام په حقیقیت کښ د یورپ د قرون وسطي یو نظام وو۔ پدے دورکښ یوه زمانه داسي وه چه په هغه کښ  د یورپي ممالکو د ډیر جنګونو سره واسطه راغلي وه، بعض جنګونه د یورپي طاقتونو په خپل مابین کښ راغلیو لکه د انګلستان او فرانس په مینځ کښ همیشه جګړي وي او د مسلمانانو سره هم د یورپي ملکونو جنګونه روان وو، ځکه مسلمانان هم ښه په طاقت کښ وو۔

د دے پرلپسي جنګونو په وجه دوي په مالي اعتبار ډیر کمزوري شویو او د دے جنګونو مصارف برداشت کول آسان نه وو۔

د دے صرت حال د مقابلے دپاره دا جاګیردارانه نظام په وجود کښ راغلي۔ نو دا نظام د یو ضرورت لاندي وجود ته راغلي اوکله چه یو نظام د یو ضرورت د لاندي وجود ته راشي نو دهغه د جواز دپاره یوه فلسفه اووجه هم ذکرکولي شي۔

نو د دے نظام دپاره فلسفه او وجه دا وه چه په حقیقیت کښ د حاکم او محکوم رشته د زمکي سره تړلي شوي ده۔ چه کوم سړي د زمکي مالک وي هغه حاکم دے او چه څوک دغه زمکي استعمالوي محکوم دے۔

لهذا د ټولي زمکي مالک الله تعالي دے او الله تعالي چه کوم بادشاه ته زمکه  ورکړه نو دغه بادشاه د الله تعالي محکوم دے بیا بادشاه چه چاته کوم زمکه بطور جاګیر ورکوي نو دغه جاګیردار د بادشاه محکوم دے، بیا جاګیردار چه کوم زمیندار ته زمکه ورکوي نو دغه زمیندار د جاګیردار محکوم دے۔ بیا چه غټ زمیدار ووړوکي زمیدار ته کومه زمکه ورکړي نو ووړوکي زمیدار د غټ زمیدار محکوم دے۔

بهرحال د یو ادني سړي پوري دا سلسله جاري وه او بادشاه به چه کوم جاګیردار ته زمکه ورکوله نو په هغه بئے څه شرطونه مقررکول، مثلا یو جاګیردار ته بئے لس زره ایکړه زمکه ورکوله نو دهغه سره بئے دا معاهده وکړه چه ته به بادشاه ته دومره خراج ورکوي او چه کله د جنګ ضرورت راتلو نو ته به د خپل رعیت نه دومره سپاهیان تیاروي۔ د چا په ذمه به لس زره سپاهیان وو، د چا په ذمه پینځه زره، د چا په ذمه دوه زره۔

كوم خلق به چه په دغه جاګير كښ دننه اوسيدل نو هغه به د دغه جاګيردار محكوم وو او هغه به په دوي مطلق العنان حكمران وو چه د ده به څه خوښه شوه هغه بۀ ئې كول. كه په چا بۀ ټيكس مقرر كولو كه د چانه بۀ د زمكي كرايه اخستله وغيره. د بادشاه يا آقا په شان اختيارات بۀ استعمالول او زميداروو ته بۀ ويل چه د دے زمكونه خپلي روزي هم ګټي او تاسو ته به تحفظ هم دركولي شي.

د بادشاه نه د رعيت دپاره مراعات حاصلول هم د جاګيردار ذمه داري وه. هر غټ به د وړوكي سره دغه معامله كوله او هر وړوكي به غټ ته خپل خدمتونه پيش كول تردے چه بادشاه ته به دا سلسله ورسيده. پدے طريقه دوي د جنګي مسائلو د حل كولو كوشش كړيو او د وختونو تقسيم ئې پكښ هم كړيو مثلا په كال كښ به څلويښت ورځي فلاني او فلاني جنګي خدمات كوي او بيا څلويښت ورځي به نور كسان دا خدمت كوي.

د دينه علاوه غټ جاګيردارانو په وړو زميدارو په بعض نوركارونو كښ هم خرچي مقرر كړيوي، مثلا په ودونو كښ. دغه رنګي كه مشر به قيدي شو دهغه د آزادولو په مصارفو كښ په دوي مصرف مقرر وو وغيره ذلك.

د وخت په تيريدو بادشاه جاګيردارانو ته محتاج شو. ځكه د جنګ دپاره به فوج دوي وركولو، د دے وجه نه بادشاه به د دوي جائزاو ناجائز مطالبات منل. ددے وجه نه دوي په سياست هم عملا قابض وو. كوم قوانين به چه دوي غوښتل بادشاه به منظوركول. خودسري پكښ ډيره زياته وه. د څه ورځو پوري د بادشاه او جاګيردارو د جوړ توړ په وجه دا نظام روان وو لكن بالآخر چه كله د بادشاه او جاګيردارو د مفادو ټكرراغلي نو د دوي په مينځ كښ جنګونه شروع شو.

دا هغه جاګيردارانه نظام وو چه د ډيرو كلونو پوري چليدلي وو او د دے د مفاسدو د وجے نه ټول يورپ متاثره شويو او دا نظام دومره بدنام شو چه كنځلي ترينه جوړي شوي.

انګريز د دے جاګيري نظام عادي وو، د دے وجه نه چه كله په هندوستان كښ د دوي حكومت راغلي نو په بعض علاقو كښ تقريبا داسي نظام جاري كړيو لكه په بلوچستان كښ سرداري نظام.

په اسلام كښ اقطاع يعني چاته جاګير وركول شته لكن د دغه او د يورپ د جاګيردارانه نظام ډير فرق دے. ځكه د يورپ په جاګيردارانه نظام كښ ډير نقصانونه وو مخكښ ورته مختصر اشاره وشوه.

### فسطائيت يا فاشيت يا فاشزم

دا يو سياسي نظام دے، د دے باني او موجد د اټلي ډكټيټر مسوليني وو، دا لفظ هغه وضع كړيو. فا شزم د يو يوناني لفظ فاست نه وتلي او دا د عربي لفظ فأس نه اخستلي شوي. فأس په عربي كښ تبرګي ته واي.

مسولیني د خپل حکومت قومي نشان تبرګي ګرځولي وو، لکه د روس نشان تسکوره ده، د پاکستان نشان سپوږمي او ستوري دے۔ دغسي د دوي نشان تبرګي وو چه دا به د دوي په جنډے وغیره جوړ شویو۔د فاشزم ترجمه ده د تبرګي بادشاهت۔

د دے پس منظر دا دے چه په اولني جنګ عظیم کښ اټلي ته کافي نقصان رسیدلي وو۔ اګرچه په دیکښ اتحادیانو ته فتح شویوه او جرمني ته شکست شویو او اټلي په اتحادیانو کښ شامل وو، پدي وجه دا په فاتحینو کښ شامل وو لکن د دے جنګ نقصان هم ډیر وو، ډیر عجیب او غریب بدترین کیفیت پیدا شویو، معاشي حالت ئے تباه شویو، ادارے ختمي شویوي، خلق د بد حالي دوچے نه پریشان وو، حکومت بالکل بے اثره وو، ملک د تباهي کنارے ته رسیدلي وو۔ پدے حالاتو کښ مسولیني په ۱۸۱۹ء په اټلي ښار میلان کښ د فاشسټ پارټي آغاز وکړو او د خپل انقلاني نظریو په وجه ئے ډیر زر په عوامو کښ مقبولیت حاصل کړو او په ۱۹۲۲ء کښ د خپلو ملګرو یو لشکر ئے تیار کړو چه د تور رنګ قمیص بئے اغوستي وو او د روم په طرف ئے مارچ وکړو او د حکومت نه ئے مطالبه وکړه چه مسولیني وزیر اعظم جوړ کړي ورنه مونږ به د طاقت په ذریعه د حکومت تخته الټه کړو۔

آخر کار بادشاه مجبوره شو مسولیني ته ئے د حکومت د جوړولو دعوت ورکړو او هغه د اټلي مطلق العنان ډکټیټر جوړشو او هغه په نورو ټولو پارټیانو پابندي ولګوله۔

د مسولیني د فاشزم حاصل دا دے چه په حقیقت کښ فرد هیڅ شي نه دے چه څه دي هغه قوم دے چه دهغه نمائندګي سټیټ یعني حکومت کوي۔

د قوم مفاد مخي ته ایښودل پکار دي او داسي اقدامات کول پکار دي چه د هغه نه قوم ترقي وکړي او په اقوام عالم کښ زمونږ قوم ته ممتاز مقام حاصل شي۔ د دے دپاره کچري دنورو قومونو سره د جنګ ضرورت راشي نو جنګ به کوي ملکونه به فتح کوي د خپل اثر د لاندي بئے راولي۔

د دے دپاره داسي حکومت پکار دے چه د ژوند په ټولو شعبو ئے مکمل ګرفت وي، په تعلیم و تربیت، قانون، اخلاق وغیره۔ د دے دپاره قوي او مضبوط حکومت پکار دے چه دافرادو د راي پابند نه وي، ټول افراد به د حکومت تابع وي، اختلاف به نه کوي حکومت به د ملک ملت او قوم د ترقي دپاره لاره خوښه وي۔

مسولیني به ویل چه مونږ عدم تشدد نه منو، عدم تشدد د بزدله خلقو کار دے۔ مونږ دخپل قوم د رعب داب د پیدا کولو دپاره جنګ هم کوو او دغه جنګ زمونږ د قوم دپاره د نوي ژوند پیغام راوړي۔

د مسولیني یوه مقوله مشهوره ده چه د سړي دپاره جنګ داسي دے لک د زنانه دپاره بچي زیګول۔ یعني څرنګي چه زنانه د بچي د زیګولو تکلیف نه برداشت کوي نو تخلیقي کارنامي سر ته نه رسي او قوم نه شي پیدا کولي۔

دغه رنګې چه سرې جنګ نه کوي نو هغه تخلیقي کارنامه سر ته نه شي رسولې. د دے وجې نه جنګ کول پکار دي او د جنګ نه په غیر قومي اعتماد نه پیدا کیږي نه د قوم بالادستي قائمیږي.

هغه به دا هم ویل چه مونږ د جمهوریت هم خلاف یو ځکه په جمهوریت کښ د اکثریت راي حتمي او قطعي ګڼږي.

حالانکې دا ضروري نه ده چه اکثریت صحیح فیصله وکړي. اکثریت کله غلطه فیصله هم کوي او هغه د ملک او قوم دپاره ضرر رسونکي هم کیدیشي. لهذا د فاشزم د نظریه مطابق چه فاشسټ لیډر کومه فیصله وکړي هغه به ټول قوم مني.

دریم دا چه دهغه دا وینا وه چه مونږ د افرادو آزادي او احترام نه منو، فرد په اعتبار د ذات سره هیڅ اهمیت او احترام نه لري، فرد په دے اعتبار اهمیت او احترام لري چه دا د قوم جز دے.

لهذا د قوم د فلاح او ترقي دپاره داسي احکام یا قانون جاري کیدے شي چه په هغه کښ د فرد په آزادي پابندي وي.

د دے نتیجه دا ده چه کوم سیاسي جماعت نه شي قائمیدے. د حکومت خلاف څوک تنقید نه شي کولې او که څوک تنقید کوي نو هغه دِ په فاشسټ پارټي کښ داخل شي. تنقید دِ وکړي او د اصلاح طریقه دِ وښاي. لکن د دے ګنجائش نشته چه د پارټي نه بهروي او په اخبار کښ بیان ورکوي یا جلسے کوي او د حکومت په پالسي تنقید کوي.

پدے طریقه د افرادو آزادیاني ختمي کړیوي او د جماعت د بالادستي د قائمولو فلسفه ئے پیش کړیوه.

د فاشزم د لاندي چه کوم حکومت کولې شي هغه ته کلیت پسند حکومت هم ویلې شي. ځکه هغه د ژوند په ټولو شعبو حاوي وي. ځکه د ژوند ټولے شعبي دهغه د تصرف او احکامو نه خالي نه وي.

یو طرف ته د حکومت اختیارات غیر متناهي وي، بل طرف ته د فرد د آزادي نه انکاروي.چه کله دا دواړه څیزونه راجمع شي نو خامخا جبر او تشدد کیږي او دا جبر او تشدد په فاشزم کښ هم شویو.

پدیکښ هم څه شک نشته چه مسولیني د خپل قوم د مخکښ کولو دپاره ډیر لوي کردار اداء کړیو او د اولني جنګ عظیم په نتیجه کښ چه کومه تباهي شویوه. هغه ئے د ډیر حد پوري ختمه کړیوه او په خلقو کښ د قومي غیرت جذبه پیدا کړیوه.

## نازي حکومت

د مسولیني نه روستو د جرمن هټلر هم فاشزم نظام غوره کړو. دهټلر بعینه هغه فلسفه وه چه کوم د مسولیني وه چه سټیټ یعني حکومت هر څه دي او افراد هیڅ نه دي لکن هټلر د فاشزم سره نسلي قوم پرستي هم اضافه کړه.

د هټلر دا فلسفه وه چه حکمراني صرف د آريائي قومونو حق دے او هټلر د سامي نسل سخت مخالف وو. دَ به ويل چه ترڅو د سامي نسلونو بالادستي د دنيا نه ختم شوي نه وي. دهغه وخته پورې به ځه جنګيږم، دا د هټلر د ژوند مقصد وو.

د دے وجود پدے طريقه راغلي وو چه داول جنګ عظيم په نتيجه کښې اټلي ته فتح حاصله شويوه لکن د فتح سره تباه شوي هم وو. د اټلي نور اتحاديان لکه انګلستان، فرانس، روس دومره نه وو تباه شوي څومره چه اټلي تباه شوي وو. هرکله چه د اټلي دا حال وو سره د دينه چه هغوي جنګ ګټلي وو نو د جرمني به څه حال وو ځکه چه هغوي شکست خوړلي وو. د دے وجه نه په جرمني کښې افراتفري او بد حالي وه.

اوديو داسي چا په تلاش کښې وو چه هغه دوي د دے بدحالي نه را اوباسي، نو هټلر د قيادت جنډا پورته کړه او فاشزم ئے هلته نافذ کړو، يعني د مسوليني ټول په ټوله نظريه ئے واخسته او د دے سره ئے د قوم پرستي او نسل پرستي اضافه وکړه او نازي حکومت ئے قائم کړو.

هرکله چه دا د سامي نسل د خلقو دشمن وو نو پدے وجه ئے ديهودو سره ډيره سختي وکړه او د جرمني نه په وتلو ئے مجبورکړل.

بعض يهود د دے ظلمونو و اقعات ډيرپه مبالغے سره بيانوي او يهود خپل مظلوميت لره ډيرپروپيګنډه پدے وجه ورکوي چه د اسرائيلي حکومت جواز پيدا کړي. د دے مقصد دپاره په اربونو ډالر خرچ کوي، فلمونه جوړي چه هغه په ټوله دنيا کښې کتلي شي.

هټلربه خپل ځان او جرمني آريائي ګڼړل او د سامي نسل خلاف ئے د نفرت طوفان راپورته کړو. سامي نسل د سام بن نوح اولاد دے چه پديکښې زياده ترعرب او د مشرق وسطي خلق يهود او انګريزان راځي او پديکښې شک نشته چه هټلرجرمني ډيره مضبوطه کړه، په معاشي صنعتي، سائنسي اعتبار او په خلقو کښې د قوم پرستي دومره غيرت پيدا کړو چه د دے مثالونه په دنيا کښې ديرکم ميلاويږي.

د دے مکمل مظاهره د دويم جنګ عطيم په موقعه شويوه چه د دويم جنګ عظيم په موقعه جرمن قوم د اتحاديانو خلاف د جنګ په دوران کښې چه کومِ قربانياني ورکړي وي نو د دے مثال ميلاويدل ډير مشکل دي. د ده دا کوشش وو چه څه د سامي نسل خلق ختم کړم او خپله برتري په ټوله دنيا قائمه کړم.

حقيقت دا دے چه د ده د فتوحاتو سيلاب ډيرپه تيزي روان وو لکن په آخرکښې چه روس ته لاړنو تباه شو او ختم شو.

د ده جماعت ته نازي جماعت واي او د هټلر فاشزم ته نازي ازم هم واي. مسوليني او هټلر ډيره شوشا ښودلي وه لکن روستو دواړه تباه شوي او بيا فاشزم نظام په مختلفو ملکونو کښې چليدلي وو لکه په جاپان، برازيل، ارجنټائن، اسپين کښې څه زمانه دا نظام چليدلي وه.

دے قومونو وکتل چه هتلر او مسوليني خپل قوم کوم ځاي ته رسولي وو. لهذا مونږ هم د دوي په لاره رو انيږو لکن دوه هغه معيار ته ونه رسيدل کوم معيار ته چه هتلر او مسوليني رسيدلي وو.

بالآخر فاشزم ختم شو، اګرچه نن صبا د کوم ملک مطلق العنان حکمران راشي هغه ته هم فاشسټ ډکټيټر واي لکن اوس څوک دا نوم د ځان سره لګول نه خوښوي.

## پرولتاري حکومت

شپږم قسم پرولتاري حکومت دے. دا په حقيقت کښ د کميونسټ سټيټ د حکومت دويم نوم دے. د دے فلسفه په حقيقت کښ د کارل مارکس په نظرياتو مبني ده. د کارل مارکس په نظرياتو کښ يوه اهمه نظريه هغه ده چه هغه ته دا د جدلي ماديت نوم ورکوي. دهغه وينا دا ده چه د پيدائش د اول نه تراوسه پوري دنيا په دوه طبقو تقسيم ده.

يو طبقه د امير انو او مالدار انو، دويمه طبقه د محنت کش عوامو. اول طبقے نه هغه بورژوا واي  او دويمه ته پرولتاريه واي. د دے دواړو طبقو په مينځ کښ کشمکش او جنګونه پيدا کيږي او بورژوا طبقه پرولتاريه دباوي. دهغے جائز حقوق نه ورکوي، خصوصا د صنعتي انقلاب نه روستو چه کله مشينونه جوړشو او صنعتونه په وجود کښ راغلل چه څومره مصنوعات تياريږي هغه د مزدور د محنت نه تياريږي لکن د حاصل شوي دولت ډيره کمه حصه دويته ميلاويږي. د دے خبري د ثابتولو دپاره د دوي يوه بله نظريه ده چه هغه ته د قدرزائد نظريه واي.

دهغے خلاصه دا ده چه په کومه کارخانه کښ کوم شي تياريږي نو پديکښ دوه څيزونه پکاريږي، يو کچه مال او دويم محنت، لکه په مالوچو محنت وشي تار ترينه جوړشي او چه په تار محنت وشي نو کپړه ترينه جوړه شي. د دے محنت په وجه د دے قدر او قيمت ډيرشي. پدے وجه دغه زياتي قيمت صرف د مزدور حق دے لکن دا حق سرمايه دارو اخستي نو دوي به ويل چه اوس هغه وخت راغلي چه مزدوران بغاوت وکړي او بالآخر د دوي حکمر اني قائم شي چه دهغے نوم پرولتاري حکومت دے. د دے دپاره دوي دا آواز پورته کړو چه د ټولي دنيا مزدورانو تاسو يو شي، ديته منشور د اشتر اکيت واي.

عملا داسي وشوه چه کال مارکس په خپل ژوند کښ اشتراکي حکومت قائم نه کړو لکن د هغه نه روستو لينن په روس کښ د زارروس تخته الټه کړه هلته ئے په اول ځل اشتراکي رياست قائم کړو او هغے ته ئے د پرولتاري حکومت نوم ورکړو.

د پورلتاري حکومت فلسفه دا وه چه د پيداوار په څيزونو مثلا زمکه، کارخاني پدے د چا انفرادي ملکيت نه شي راتلي.

داټول څيزونه د رياست ملکيت دے او د رياست د چلولو ټول حق د محنت کش خلقو پرولتاري حکومت ته حاصله دے چه دهغے نمائنده ګان به په ټولو املاکو قبضه کوي او د يو منصوبه بند معيشت بنيادونه به جوړي.

یعني افراد به دا فیصله نه کوي چه د کوم زمکي نه کوم کار واخستلي شي او په کومه کارخانه کښې کوم څیز په څومره مقدار جوړ شي او یو چا ته څومره اجرت ورکړي شي بلکه پرولتاري حکومت به د ریاست د عمومي ضروریاتو مطابق دا فیصله کوي۔ په ملک کښې به بله سیاسي پارټي نه وي تنقید به نه وي۔

د چا په ذمه چه کوم کار مقرر شي هغه به په غیر د چون چرا نه کوي او چه د هغه کومه معاوضه مقرر شي هغه به قبلوي۔ د چا به خپله خوښه او اختیار نه وي۔

دا خبره واضحه ده چه په کوم نظام کښې انسان ته انفرادي آزادي نه وي هغه د انتهائي مضبوط جبر او ظلم نه په غیر نه شي چلیدے۔

پدے وجه په عملي طور چه د فاشزم د کلیت پسندي کوم اصول وو هغه په پرولتاري حکومت کښې هم وو او دا به ئے ویل چه زمونږ مقصد د مزدور حالت بهتر جوړول دي۔

دغه رنګي دا هم د ډکټیټر شپ بد ترین شکل وو چه کوم لینن قائم کړیو۔

ددینه روستو استالن پدیکښې نور زیادت هم وکړو چه دوړو وړو سرمایه دارو په ځاي یو غټ سرمایه دار د پرولتاري حکومت په شکل کښې وجود ته راغلي چه هغه د ریاست په ټولو وسائلو قبضه وکړه او یو داسي نظام ئے قائم کړو چه په هغه کښې ژبه کولاو کول هم مشکل وو په روس کښې د څلور اویا کاله پوري دا نظام نافذ وو لکن رفته رفته دهغے معاشي معاشرتي اخلاقي او سیاسي نقصانونه دومره زیات شو چه ټولو چغي وکړي او دا نظام ئے ختم کړو۔

# دویم باب: د جمهوریت تاریخ او بنیادونه

### جمهوریت

جمهوریت هم د مختلف سیاسي نظامونو نه یو نظام دے۔ مونږ د دے تفصیل لږ زیات کوو، ځکه زمونږ په دورکښ جمهوریت د ټولو نظامونو نه بهترنظامِ سیاست ګڼړلي شي او په جمهوریت ایمان راوړل د موجوده سیاست کلمه طیبه ګرځیدلي۔که څوک په جمهوریت اعتراض کوي نو هغه د سیاست په اصطلاح کښ د کافرنه کم نوي۔

### د جمهوریت نومونه

سیکولرازم، دیموکریسي، جمهوریت، العلمانیة، الدمقراطیه، اولس واکي، او په مشهوره اصطلاح ورته جمهوریت واي۔

### د جمهوریت تعریف

جمهوریت لفظ د دیموکریسي لفظ ترجمه ده او دا په اصلکښ یوناني لفظ دے۔ ډیمو عوامو ته واي او کریسي حاکمیت ته واي۔ په عربي ژبه کښ ددے ترجمه په دیمقراطیه سره کیږي۔ په عربي ژبه کښ جمهوریت نه ویلي کیږي، په اردو کښ جمهوریت ویلي کیږي۔ د جمهوریت بنیادي تصور دا دے چه حاکمیت دعوامو حق دے۔

### د جمهوریت تاریخ

جمهوریت صرف د دے دور پیداوار نه دے بلکه په یونان کښ جمهوریت موجود وو۔ پدے وجه په سیاست چه افلاطون کوم کتاب لیکلي وو د هغه نوم دے جمهوریه، لکن هلته چه کوم جمهوریت وو نو هغه نسبة" ساده او محدود وو۔ ځکه هلته هرښارمستقل حکومت وو او ښارونه هم واړه واړه وو۔

لهذا هلته جمهوریت داسي وو چه بادشاه به په خاص خاص غټو فیصلو کښ ټول عوام یو ځاي ته راجمع کړل چه مونږ دا کارکوو یا دا پالسي جوړه وو ستاسو څه راي ده۔

خو دا طریقه په وړو ملکونو کښ ممکن وه چه خلق کم وي آبادي کمه وي او چه کوم غټ ملکونه وو لکه دروم سلطنت ډیرغټ وو هلته دا طریقه ممکن نه وه۔ لهذا هلته جمهوریت داسي محدود شو چه بادشاه به د خپلي مشوري دپاره مجلس شوري جوړه وله او دهغوي نه بئ کله مشوري هم طلب کولي۔

د دے نتیجه رفته رفته دا را اووتله چه داسي جمهوریت ختم شو چه عوام په پالسیانو کښ حصه دار جوړشي۔ لهذا د یونان په ریاستونو کښ جمهوریت ختم شو او د دے په ځاي مطلق العنان بادشاهت راغلي۔

بيا د اتلسمي صدي په اول کښ جمهوريت دوباره په يو منظم شکل ژوندي شو چه هغې ته لبرل ديوکريسي يعني آزاد خيال جمهوريت واي۔

## د جمهوريت فلسفه او فکري بنيادونه

په يورپ کښ د نشأة ثانيه نه روستو د يو فکري آزادي دور شروع شو۔ د دينه مخکښ کليسا ټول ترلي وو او د کليسا د فکر او نظريه نه به چه چا د ويښته په اندازه خلاف کولو نو هغه ته بئ بدعتي ويلو او د تشدد نشانه بئ جوړولو بلکه په بعض وختونو کښ بئ ژوندي سيزلے۔لکن د يورپ د نشأة ثانيه نه روستو چه کله دويته د اندلس وغيره نه علمونه نقل کيدل شروع شو نو په خلقو کښ سوچ فکر پيدا شو۔

اګرچه د چرچ اختيارات په دغه وخت کښ هم په سياسي طور ډير مضبوط وو او کومو خلقو چه نوي سوچ شروع کړيو هغوي د چرچ د طرف نه د ډيرو مصيبتونو شکار شويو۔ لکن دا د آزاد خيالي تحريک د ظلم او ستم باوجود روان وو۔ رفته رفته د چرچ خلاف د يو نفرت فضا پيدا شوه او وخت په وخت د چرچ اقتدار هم کم شو۔

د ژوند په مختلف شعبو کښ مختلف مفکرين پيدا شو چه هغوي د چرچ د غير فطري نظام نه بغاوت وکړو او نوي افکار ئے په خلقو کښ خورول شروع کړل۔ لکن په مغربي دنيا کښ چه کوم مفکرين د جديد آزاد خياله جمهوريت بانيان ګنړلي کيږي هغه دري کسان وو:

۱۔ وولټائر ۲۔ مونټيسکو ۳۔ روسوو

دا دري واړه د فرانس وو۔

### وولټائر:

دا د ۱۷ صدي په آخر کښ پيدا شويو او په ۱۸ صدي کښ انتقال وکړو۔ د ده په نظريو کښ يو خبره دا وه چه مذهب د انسان ذاتي معامله ده او کومه اتهارټي بل کس له د يو مذهب په حق کيدو او باطل کيدو نه شي قائله کولي، دا د انسان ذاتي معامله ده که بت پرستي کوي، که يهودي کيږي، که نصراني کيږي او که کوم اسماني مذهب غوره کوي۔ پديکښ چرچ يا حکومت دخل اندازي نه شي کولي، د حکومت د مذهب سره کوم تعلق نشته۔ دا نظريه نور هم زياته شوه او دا مشکل ئے غوره کړو چه نن صبا په مغربي دنيا کښ د مذهب په باره کښ زياده تر تصور دا دے چه په مذهب کښ د حق کيدو يا باطل کيدو څه سوال نه شته چه کوم مذهب حق دے او کوم باطل دے بلکه مذهب د انسان د ذاتي تسکين ذريعه ده، يعني مذهب يو داسي شي دے چه دهغه په ذريعه انسان خپل نفس او روح ته سکون ورکوي۔ که چا ته په مانځه کښ سکون ملاويږي نو دلره مونځ برحق دے او که چا ته په بت پرستي کښ يا مراقبه کښ سکون ميلاويږي نو دلره دا کارونه حق دي او هر چاته دا اختيار حاصل دے چه د خپل سکون دپاره کوم مذهب غوره کوي۔

د دے وجې نه هر چاله د بل د مذهب احترام پکار دے۔ پدیکښ بحثونه مناظري یو بل قائل کول بے فائده کار دے۔ د یو بل د مذهب احترام پدے وجه نه دے چه مذهب في نفسه د احترام شي دے بلکښ احترام پدے وجه دے چه یو سړي دا د خپل سکون دپاره ذریعه جوړه کړي، لکه یو سړي د خپل سکون دپاره یو مکان جوړ کړي نو ستا دا فرض دي چه د دغه مکان احترام به کوي چه د دغه مکان چاردیواري ته به بے اجازته نه ورځي۔

هر کله چه دوي دا فیصله وکړه چه مذهب ذاتي معامله ده، د ذاتي تسکین ذریعه ده نو پدي وجه د ریاست او حکومت د مذهب سره هیڅ تعلق نشته، د حکومت به هیڅ مذهب نه وي۔د دے سوچ په بنیاد د سیکولر ازم نظریه پیدا شوه۔

سوکولر معني دنیا وی فائدے یعني یو داسي نظام چه هغه صرف د دنیوي فائدو دپاره جوړشوېوي۔ د دے لازمي نتیجه لادینیت او لامذهبیت دے۔ دا ټوله نظریه د وولټائر په نظریاتو مبني وه۔ او دا د چرچ دهغه کارونو ردعمل وو کوم چه دوي د تهیوکریسي په شکل کښ کړیو، یعني چرچ د مذهب په نوم ډیر ظلمونه کړیو، پدے وجه دے مفکرینو دا رد عمل وکړو چه تر څو مونږ د مذهب جرړه نه وي ایستلي نو مونږ ترقي نه شو کولي۔ هغه جرړه ئے پدے طریقه ویستله چه د سیکولر استیټ نظریه ئے پیش کړه۔

## مونټیسکو

دویم شخص چه دهغه د جمهوریت په تصویر جوړولو کښ غټ کردار دے مونټیسکو دے۔ دهغه د جمهوریت په سلسله کښ یوه نظریه ده چه هغه ته د تفریق اختیارات نظریه واي۔ هغه واي چه د مطلق العنان حکومتونو نه خلقو ته کوم نقصانونه رسیدلي نو دهغه بنیادي وجه دا ده چه د ریاست ټول اختیارات د یو شخص یا د یوي اداري سره وي چه دهغه په نتیجه کښ په خلقو ظلمونه هم کیدي شي او د حکومت په کارونو کښ بتري هم راځي۔

یو شاعر واي:

وهي قاتل وهي شاهد وهي منصف ٹهہرے

اقرباء میرے کریں خوں کا دعوي کس پر

کچري انتظامیه ظلم کوي نو دهغے خلاف فریاد بیرته هم دغه انتظامیه ته کیږي۔

لهذا چه تر څو اختیارات په مختلف جهتونو کښ نه وي تقسیم شوي نو بهترین نتائج نه حاصلیږي۔

اوپه ریاست کښ دري قسمه اختیارات دي، دا دري قسمه ادارو ته ورکول پکار دي چه دغه اداري خود مختاره وي او یوه اداره په بله کښ دخل اندازي نه کوي۔ یوه اداره د بلے په دباؤ کښ نه وي۔

۱۔ دقانون سازي اختیار

۲۔ د ملک انتظام د دغه قانون مطابق د چلولو اختیار

۳- که یو سړي د قانون خلاف وکړي یا په یو معامله کښ تنازعه پیدا شي چه دا کارد قانون مطابق دے او که نه نو د دغه تنازع د فیصله کولو اختیار-

د دے دپاره دري قسمه اداري پکار دي- د قانون سازي اختیار چه د کوم اداري سره دے هغے ته مقننه واي- په جمهوریت کښ دا اختیارات پارلیمنټ یا اسمبلي ته حاصل دے-

دقانون مطابق د ملک انتظام د چلولو اختیار چه کوم ادارے ته دے هغے ته انتظامیه یا ایگزیکټو واي چه دهغے سربراه په صدارتي نظام کښ صدر مملکت وي او په پارلیماني نظام کښ وزیراعظم وي-

دریم اختیار یعني د قانون تشریح یا د تنازعاتو تصفیه چه کومه اداره کوي هغے ته عدلیه واي چه هغه په ملک کښ د عدالتونو په شکل کښ وجود ته راځي- که د یو چا د مقننه یا انتظامیه نه څه شکایت وي نو هغه به عدلیه ته ځي او عدلیه به دهغه شکایت ختموي نو ریاست په دے دري حصو تقسیمول ضروري دي، دیته تفریقي اختیارات واي-

روستو ټولو جمهوریتونو دا نظریه تسلیم کړي وه- اوس چه د کوم ریاست څومره دستور جوړیږي نو هغه پدے بنیاد جوړیږي چه د مقننه انتظامیه عدلیه ځانله ځانله اختیارات وي-

تردے چه کله مقننه یو ځل کوم قانون جوړ کړي او نافذ ئے کړي نو ددے نظریه مطابق مقننه ته د قانون جوړولو نه روستو د تشریح اختیار نه وي-

د قانون جوړولو په وخت کښ چه دوي کوم الفاظ استعمال کړي هغه داسي وي لکه غشي چه د لیندي نه اوزي- اوس به د دے الفاظو تشریح عدلیه کوي چه د دے قانون څه مقصد دے چه یو سړي په خپل قلم قانون ولیکي او د مقننه نه دغه قانون پاس شي او بیا دا سړي واي چه ځما د فلاني لفظ نه دا مقصد دے نو د ده خبره به قابل قبول نه وي-

اوس دا د عدلیه کار دے چه د دے لفظ څه مقصد دے- پارلیمنټ دا کولي شي چه دغه قانون منسوخ کړي یا نوي قانون راوړي یا پکښ ترمیم وکړي لکن تر څو چه دغه قانون په خپل شکل کښ نافذ وي نو د دغه وخته پوري د دے د تشریح اختیار صرف عدلیه ته دے-دے نظریه ته تفریق د اختیاراتو واي-

یوه بله نظریه ده چه هغے ته تقسیم داختیاراتو واي- د تقسیم د اختیاراتو مقصد دا دے چه د مرکز او صوبو په مینځ کښ به اختیارات په کومه طریقه تقسیمیږي چه د مرکز سره به څومره اختیار وي او د صوبو سره به څومره وي-

روسوو

دریم شخص چه هغه د جمهوریت په جوړولو کښ حصه اخستي وه هغه ته روسو واي- روسو دوه نظریے پیش کړي وي- یو د فرد په آزادي زور لګول یعني داسي حکومت پکار دے چه په هغه کښ افرادو ته آزادي وي-

دویم د افرادو نمائنده حکومت یعني افرادو ته دا حق ورکول پکار دي چه کله دوي کوم حکومت جوړول غواړي جوړولي شي او چه کله دوي ختمول غواړي ختم ئې کړي ځکه افرادو چه د حکومت په حق کښ د خپل ذاتي حقوقو نه کومه دستبرداري کړي نو دهغې وجه داده چه حکومت به زمونږ د مفاداتو او آزادي تحفظ کوي۔

دا دري هغه بنیادي نظریات دي چه د دے په وجه د آزاد خیال او سیکولر جمهوریت تصویر جوړ شو۔

۱۔ ریاست د مذهب نه جدا کول

۲۔ تفریق د اختیاراتو

۳۔ دفرد د آزادي په نتیجه کښ نمائنده حکومت

## د جمهوریت په قائمیدلو کښ تاریخي عوامل

په دنیا کښ د جمهوریت په قائمولو کښ بنیادي کردار دوه و اقعاتو اداء کړي:

۱۔ دامریکه آزادي ۲۔ دفر انس انقلاب

دا دوه و اقعات یو بل ته نذدي دي، د دوي په مینځ کښ دولس کاله وقفه ده۔

## د امریکه آزادي

مناسب دا ده چه د امریکه د آزادي تعارف وکړي شي۔ د امریکه براعظم کولمبس معلوم کړیو۔ د یورپ والا د جنوبي ایشیا ریاستونو ته لکه هندوستان وغیره ته خپل تجارت غځول غوښتل لکن هلته د رسیدو سمندري لار دویته معلوم نه وه، په دغه وخت کښ نهر سویز نه وو جوړ شوي، د وچي په لار کښ مشکلات ډیر وو۔

د سمندري لاري د معلومولو دپاره د دوي ډیر کوششونه ناکام شو لکن د دوه کسانو کوشش څه نه څه کامیاب شو۔ یو واس کو ډي ګاما او دویم کولمبس۔

واس کوډي ګامه د جنوبي افریقي د طرف نه د هندوستان لار معلومه کړه،هندوستان ته ورسید او کولمبس بالکل الټه طرف ته لاړ، مغرب ته روان وو تر دے چه امریکه ته ورسید۔ نوي تحقیق دا دے چه د دے دواړو رهنما یو عرب ملاح وو۔

انګریز انو او یورپ والا اول چه دا خو د آبادکاري او تجارت ډیر لوي میدان میلاؤ شو ځکه امریکه ډیر لوي براعظم دے۔ اوس هم دوه پنځوش ریاستونه دي هلته ئې د آباد کاري مهمات لیګل شروع کړل۔ دغه رنګي ډچ قومونو او فر انس والا پرتګیزیانو هم د آباد کاري سامانونه ولیګل او هلته ئې خپلي کالوني جوړي کړي لکن دا کار زیات انګریز انو وکړو چه دهغې په نتیجه کښ د امریکه په زیات حصو باندي د

برطانیه حکومت قائم شو او هلته ئې خپلې کالونیانې جوړې کړې. ډیره زمانه په لندن کښې ناست وو او په هغوي ئې حکومت کولو.

برطانیه په امریکه کښې تجارت کول او د خلقو نه ټیکسونه اخستل غوښتل. بل طرف ته د جمهوریت افکارهم هلته شروع شویو.

پدې وجه یوه مرحله داسې راغله چه برطانیه په هغوي باندې ټیکسونه زیاتول غوښتل. دامریکه خلقو اویل چه مونږ ټیکس نه ورکوو او بالآخر ئې دا فیصله وکړه چه مونږ د برطانیه نه ځانله خود مختاره ریاستونه جوړه وو او د برطانیه لاندې وخت نه تیرو.

د دې غرض دپاره دوي د برطانیه سره جنګ شروع کړو او د دې جنګ په نتیجه کښې جارج واشنګټن کامیاب شو او هغه د امریکه د ځانله حیثیت اعلان وکړو.

په دغه وخت کښې دا اعلان هم وکړو چه دامریکه کوم مختلف ریاستونه دي دا به یو ځای کولې شي او یو نوي جمهوري نظام به پکښې قائم کولې شي. دیته اعلان د آزادې واي. د ټولو خلقو دپاره ئې د جمهوري حقوقو اعلان وکړو. د دې اعلان آغاز ئې پدې جملو وکړو چه انسان د مور د خیټې نه آزاد پیدا شوي، لهذا هیچا ته دا حق نشته چه هغه یو انسان غلام جوړ کړي. بعض واي چه دا اول باقاعده لبرل سیکولر ډیموکریسي ده چه په دنیا کښې قائم شویوه، لکن په یورپ کښې د امریکې جمهوریت څه خاص اثرات نه وو شوي ځکه یورپ د امریکې نه ډیر لرې دے.

د یورپ په خلقو چه کوم شي اثر کړیو نو هغه د فرانس انقلاب دے. کله چه امریکه د آزادې اعلان وکړو نو د هغه نه دولس کاله روستو په فرانس کښې انقلاب راپیدا شو.

## د فرانس د انقلاب تعارف

دا د ۱۸ صدې د اختتام زمانه وه. د ۱۷۸۹ء پورې په فرانس او ټول یورپ کښې بادشاهي نظام وو. په فرانس کښې په دغه وخت کښې چه کوم بادشاه حکمران وو دهغه لوئي نوم وو. د لوئي په نوم ډیر بادشاهان تیر شویو، دا شپاړسم نمبر لوئي وو. مخکښې تیر شویو چه دې بادشاهانو خپل مجلس شوري جوړ کړیو لکن دوي د خپلې مرضې وو که شوري بئې کوله او که بئې نه کوله، د لوئي هم دغه رنګې د شوري مجلس وو، د سینټ جنرل په نوم پدیکښې درې قسمه خلق وو، ۱ـ د کلیسا ارکان ۲ـ جاګیردار ۳ ـ عوام ـ

د دې درې واړو اجلاسونه بیلا بیل وو، او د دې درې واړو د افرادو تعداد مساوي وو. که دوي به کوم قرارداد پاس کولو نو په عام طور به د کلیسا افرادو او جاګیردارو د یوبل سره جوړ توړ وکړو او د عوامو د خبرې به څه خاص اهمیت نه وو.

بل طرف ته د مجلس راغوښتل د بادشاه په صوابدید وو، که دَ به غوښتل مجلس بۀ رابللو ورنه نه بۀ رابللو. په ۱۷۸۹ء کښ د سینیټ اجلاس جوړشو لکن د یو سل شپاړس کلونو پوري د مجلس شوري کوم مجلس نه وو منعقد شوي. بل طرف ته د جمهوریت افکارپه خلقو کښ خوریدل.

نو دا مطالبه شروع شوه چه ډیر وخت ۱۱۶ کاله وشو د سینیټ جنرل اجلاس دِ را اوغوښتلي شي. بل طرف ته لوئي بادشاه په عیاشي او فضول خرچي کښ ډیر مشهور وو. هغه ته د خپلو خرچو دپاره د ټیکسونو د زیاتولو ضرورت وو. نو چه کله خلقو دا مطالبه وکړه چه د سینیټ اجلاس را اوغواړي نو بادشاه پدے امید اجلاس را اوغښتلو چه څه به د دے اجلاس په ذریعه ټیکسونه زیات کړم، ځکه د مخکښ تجربو مطابق د کلیسا د خلقو نه او د جاګیردارو نه حمایت حاصلول او منظوري کول ګران کار نه وو.

د دے خوش فهمي په وجه بادشاه د سینیټ اجلاس طلب کړو لکن چه کله اجلاس طلب شو نو عوامو شور شروع کړو چه په ټول ایوان کښ د عوامو تعداد دریمه حصه دے، دا نا انصافي ده، لهذا د عوامو تعداد دِ د کلیسا او د جاګیردارو د تعداد بر ابر شي.

عوامو د دے مطالبے دپاره مظاهرے جلسے جلوسونه شروع کړل، آخر کار بادشاه دا مطالبه اومنله چه څه به ستاسو تعداد زیات کړم. عوامو دویمه مطالبه دا شروع کړه چه ځانله ځانله اجلاسونه دِ ختم شي. د ټولو دِ په یو ځاي اجلاس کیږي او د اکثریت په بنیاد دِ فیصله کیږي. بادشاه دیته نه تیاریدو ځکه هغه پوهیده چه د دے په نتیجه کښ عوام غالبه کیږي.

کله چه بادشاه تیار نه شو نو عوامو دا فیصله وکړه چه مونږ خپله قومي اسمبلي جوړه وو. د قومي اسمبلي لفظ په دغه وخت کښ وجود ته راغلي نو دوي ځانله ایوان جوړ کړو. دهغه نوم ئے قومي اسمبلي کیښود چه مونږ به په خپله اجلاس را غواړو او په خپله به فیصلي کوو.

بادشاه پوهه شو چه اوبه د سر نه بره روانې دي نو هغه د تشدد سوچ وکړو. کومِ آبادي ته چه دوي اجلاس طلب کړیو دهغے نه ګیر چاپیره بادشاه فوج مقرر کړو او خلق ئے هلته د تلو نه منع کړل.

عوامو اویل چه مونږ دلته اجلاس نه کوو بل ځاي ټینس کورټ وو چه هلته به ټینس لوبه کیده. هلته دوي د قومي اسمبلي اجلاس مقرر کړو. پدي اجلاس کښ دوي د ملک دپاره نوي دستور پاس کړو او دا دستور ئے په هغه بنیادونو جوړکړو کوم چه د مونټیسکو نظریه وه، تفریقِ اختیارات، یعني مقننه، انتظامیه، عدلیه ئے بیلا بیل کړل او د دوي اختیارات ئے په بیلا بیل شعبو تقسیم کړل، افرادو ته د آزادي ورکولو دپاره چه کوم د بنیادي حقونو باب دے هغه ئے تیار کړو. البته بادشاهت ئے ختم نه کړو. پدے دستورکښ ویلي وو چه بادشاه به وي لکن د بادشاه اختیار به صرف د انتظامیه پوري وي، مقننه او عدلیه به آزاد وي، د بادشاه زیر اثر به نه وي.

دا د فر انس اولني دستوردے چه دیته اولني جمهوریه ویلي شي چه دا دے قومي اسمبلي منظورکړیو.

چه کله دا د قومي اسمبلي اجلاس کیده نو په دغه وخت کښ دوي د بادشاه په محل حمله آور شو۔ بادشاه ئے د خپل محل نه قومي اسمبلي ته راوستلو، د بادشاه په موجودګي کښ دا دستورپاس کړو، د بادشاه نه ئے دسخط واخستلو او دا دستور ئے منظور کړو۔

بادشاه اویل چه کم از کم دانتظامیه اختیارات څما سره شته اګر چه د مقننه او عدلیه اختیارات ختم شو هغه دا خبره غنیمت وګڼړله دسخط ئے وکړو۔ د بادشاه سره دا خطره پیدا شوه چه دا خو اولني قدم دے چه څما نه د عدلیه او مقننه اختیارات واخستلي شو لکن په کوم رفتار چه دا سیلاب ډیریږي که دا مخکښ لاړ شي نو دا خلق زمانه دانتظامیه اختیارات هم اخلي او ما د بادشاهت نه هم محرومه کوي۔

لهذا بادشاه درپرده د جرمني د بادشاه سره رابطه وکړه چه په وخت د ضرورت کښ به ماته فوج راکوي چه خپل عوام پے پائمال کړم۔

په جرمني کښ هم په دغه وخت کښ بادشاهت وو او چه کله د فرانس د بادشاه د ښپو نه تخت وتلو نو د جرمني بادشاه هم سوچ وکړو چه چري دا بلا او مصیبت په مونږ رانه شي۔ لهذا هغه هم د فرانس د بادشاه د امداد دپاره تیار شو او د دے خبري د عملي کولو دپاره د دے دواړو په مینځ کښ څه سازشونه وشو چه کوم انقلابي خلق وو هغویته معلومه شوه چه بادشاه د جرمني سره جوړ توړ کړي۔ دوي بادشاه ګرفتار کړو او په جیل کښ بند کړو۔

د بادشاه د ګرفتاري نه روستو دوي د قومي اسمبلي یو بل اجلاس وکړو، په هغے کښ دویم دستور جوړ کړو، پدے دستور کښ دانتظامیه ذمه داریاني د بادشاه په ځاي یو کمیټي ته وسپارلي، هغے ته ئے د کنونشن نوم ورکړو او دیته دویمه جمهوریه ویل کیږي۔

دے کنونشن په بادشاه د بغاوت مقدمه شروع کړه او په هغه ئے دا جرم ثابت کړو چه دَ د جرمني سره جوړتوړ کړي او د فرانس په عوامو ئے د حملي پروګرام جوړ کړي۔ د دے په نتیجه کښ بادشاه ته سزائے موت مقرر شوه او بر سر عام ئے دهغه سر قلم کړو۔ پدے طریقه د شهنشاهیت خاتمه وشوه۔ کوم انقلابي خلقو چه د بادشاهت خاتمه وکړه د دوي جوش او جذبه خو ډیره وه لکن د دوي سره د حکومت د چلولو هیڅ تجربه نه وه او نه ئے په خپل مینځ کښ د نظم و ضبط څه اصول وو۔

لهذا د دوي په خپل مینځ کښ اختلافات راپیدا شو چه د هغے په وجه د ډیري زماني پوري د دوي په مینځ کښ خانه جنګي شروع شوه او د دهشت ګردي بازار ګرم شو او د لاقانونیت دور شروع شو۔ تردے چه عوامو سوچ وکړو چه د دینه خو بادشاهت ښه وو۔

آخر کار دوي مجبور شو چه په انتظامي امورو کښ د فوج نه امداد حاصل کړي۔ په دغه وخت کښ دفوج سردار نپولین بوناپارټ وو چه دا مشهور فاتح دے۔ پدے وجه نپولین د حکومت واګي سنبهال

کړي۔ ځکه عوامو دا ولیدل چه د کنونشن حکومت ناکام شو، د دینه خو بادشاهت غوره وو پدے وجه نیپولین ئے بادشاه کړو، پدے وجه دوباره بادشاهت شروع شو۔

د نپولین دا امتیازوو چه عوامو په خپله دهغه په سرتاج کیښود۔ هغه ئے بادشاه کړو او هغه ته ئے ټول اختیارات هم ورکړل۔ ددے هر څه باوجود نپولین اویل چه په ماضي کښ کومِ غلطیاني وشوي، دا د انقلابیانو د فکر نتیجه وه۔ پدے وجه څه جمهوري فکر ته ترقي ورکوم۔

نپولین یو کار دا وکړو چه د خپل مینځ خانه جنګي ختمه کړه، د بیروني حمله آورو سره ئے جنګونه وکړل، آسټریا چه دا غټ مدمقابل وو دَ ته ئے شکست ورکړو او مصر ته ورسید۔

بل طرف ته ئے د جمهوري فکر د ترقي ورکولو دپاره دخپلو ملګرو یو جماعت تیار کړو۔ نپولین ډیر ملکونه فتح کړیو لکن چه کله ئے د برطانیه سره ټکر راغلي نو د واټرلو په مقام زبردست مقابله وشوه چه دهغے په نتیجه کښ نپولین ته زبردست شکست وشو او د دے شکست نه روستو هغه وفات شو۔ بیا د نپولین ټول ملګري د انقلابي فکر خاوندان وو۔

لهذا دهغه نه روستو هغوي دوباره د جمهوریت بنیاد شروع کړو، دیته دریمه جمهوریه ویلي کیږي۔ د دے په بنیاد مکمل جمهوري نظام قائم شو۔ بیا د فر انس زیرِ اثر د یورپ په تمام ملکونو کښ انقلاب راغلي۔

دے د فر انس انقلاب په یورپ کښ دري بنیادونه ته ترقي ورکړه:

1. د افرادو آزادي
2. تفریق د اختیار اتو
3. تفریق د مذهب او ریاست

د دے په نتیجه کښ دا تصورات د یورپ په نورو ملکونو کښ رائج شو او لبرل سیکولر جمهوریت په ټوله دنیا کښ متعارف شو۔

دا دانقلاب فر انس او انقلاب امریکه مختصر تعارف وو چه دا دواړه په دنیا کښ د مروجه جمهوریت د قائمولو بنیادي سبب جوړ شویو۔

## د جمهوریت زیرِ اثر قائمیدونکي ادارے

کومِ ادارے چه د جمهوریت زیر اثر قائم شویوي په هغے کښ څلور ادارے خصوصي اهمیت لري:

1. سیاسي جماعتونه
2. انتخابات
3. مقننه
4. دستور

## سیاسي جماعتونه:

د جمهوریت په بنیادي فکرونو او نظریه کښ دا خبره داخل ده چه دملک ټولو اوسیدونکو ته د کوم جماعت یا انجمن جوړولو حق حاصل دے او په کومه ډله یا جماعت څه پابندي نشته۔

بیا په کوم ملک کښ چه کوم انجمن یا جماعتونه قائمیږی هغه دري قسمه دي:

1. د مشترکه مفادو گروپ
2. پریشر گروپ
3. سیاسي جماعت

## د مشترکه مفادو گروپ

د مشترکه مفادو گروپ یعني هغه جماعت یا انجمن چه هغه د مشترکه مفادو د حاصلولو دپاره وجود ته راغلي وي۔ د هغه مقصد اقتدار یا حکومت حاصلول نه وي بلکه دغه جماعت د غیر سیاسي مقاصدو دپاره جوړ شویوي مثلا د یو خاص پیشے والا خلق د خپلو حقوقو د تحفظ دپاره یا د باهمي امداد دپاره کوم جماعت جوړکړي، داسي جماعت ته د مشترکه مفادو گروپ یا انټرسټ گروپ واي۔

## پریشر گروپ

د دے جماعت مقصد اقتدار او حکومت حاصلول نه وي لکن د دے مقصد د حکومت نه بهر اوسیدل او په حکومت دباؤ غورزول وي چه زمونږ فلاني مطالبه منظور کړي یا زمونږ فلاني پالیسي د خپلي پالیسي حصه جوړه کړي۔

## سیاسي جماعت (پولټیکل گروپ یا پارټي)

سیاسي جماعت دهغه افرادو مجموعے یا ډلي ته واي چه هغه د کوم خاص پالیسي د نافذ کولو دپاره اقتدار حاصلول غواړي۔ په جمهوریت کښ د سیاسي پارټي د جوړولو طریقه دا وي چه څه خلق اول دا سوچ وکړي چه د ملک دپاره کوم قسم معاشي یا معاشرتي پالیسي مفید کیدے شي۔

بیا د دے خبري د عملي کولو دپاره خپل یو منشور تیار کړي۔ کچري زمونږ اقتدار راشي نو ملک به د دے منشور مطابق چلوو، په دغه منشور کښ خپل مقاصد بیان کړیوي۔

بیا نور خلق د دے منشور سره متفق کوي او هغویته په خپله پارټي کښ د شمولیت دعوت ورکوي۔ بیا دا ټول یو ځاي شي، د اقتدار د حاصلولو کوشش کوي۔

د دوه سیاسي جماعتونو په مینځ کښ عموما د منشور په بنیاد فرق کولي شي۔ د یو جماعت یو منشور وي د بل جماعت بل منشور وي، په مختلف ملکونو کښ د سیاسي جماعتونو مختلف نظام رائج دے۔

په بعض ملکونو کښ صرف یو سیاسي جماعت وي چه هغې ته جماعتي نظام واي (آن پارټي سسټم)۔ اکثر په کمیونسټ ملکونو کښ دا نظام رائج دے، هلته دویمه پارټي جوړول قانونا منع دي۔

په بعض ملکونو کښ دوه جماعتي نظام رائج وي، په داسي ملکونو کښ په نورو جماعتونو جوړولو قانونا پابندي نه وي لکن د متعدد انتخاباتو په نتیجه کښ وړي وړي پارټیاني یا بالکل ختم شي یا غیر مؤثر شي چه په حقیقت کښ په ملک کښ دوه جماعتونه قابل ذکر وي۔ په دے دواړو کښ کله د یو جماعت حکومت راځي کله د بل جماعت حکومت راځي، لکه په امریکه او برطانیه کښ دا صورت حال وي۔

په بعض ملکونو کښ کثیر الجماعتي نظام رائج دے، هلته وړي او غټي ډیري پارټیاني وي او هغه د اقتدار د حاصلولو کوشش کوي لکن د مخکښ نه دا پیشگوئي مشکل وي چه کوم جماعت به برسر اقتدار راځي۔

اگرچه د جمهوري نظام دپاره د سیاسي جماعتونو وجود لازمي نه دے لکن عملا داسي شوي ده چه چرته جمهوري نظام قائم وي هلته ضرور سیاسي پارټیاني موجود وي۔

د علم سیاست د ډیرو ماهرینو وینا دا ده چه د سیاسي پارټیانو وجود د جمهوریت دپاره مفید نه دے بلکه مضر دے، لکن نن صبا په دنیا کښ داسي جمهوري ملک نشته چه په هغه کښ د سیاسي پارټیانو وجود نه وي۔

## انتخابات

په جمهوري نظام کښ دا ضروري ده چه حکومت د انتخاباتو په نتیجه کښ بر سر اقتدار راځي۔ د دے غرض دپاره په اول کښ د پارلیمنټ د رکنیت دپاره انتخاب کیږي۔ بیا په پارلیماني نظام حکومت کښ چه کوم جماعت دپارلیمنټ د اکثر ارکانو حمایت حاصل کړي نو هغه حکومت جوړیږ۔

په عام طور په جمهوریت کښ د انتخاباتو دوه طریقے دي:

1. بلاواسطه یعني براه راست انتخاب
2. بالواسطه انتخاب

د براه راست انتخاب مقصد دا دے چه هر بالغ ته د ووټ غورزولو حق ورکولي شي که سړي وي که ښځه، بوډا وي که ځوان، تعلیم یافته وي او که جاهل او چه کوم امیدوار د خپلے حلقے د اوسیدونکو زیات ووټونه حاصل کړي هغه منتخب کولي شي۔

د بالواسطه انتخاب مقصد دا دے چه عوام د خپل ووټونو په ذریعه د انتخاب کونکو انتخاب وکړي۔

یعني عوام اول د داسے خلقو انتخاب وکړي چه هغه دپارلیمنټ دپاره د ارکانو د منتخب کولو صلاحیت لري، بیا دغه منتخب شوي افراد د مقننه دپاره د ممبرانو انتخاب وکړي، لکه په پاکستان کښ د صدر

ایوب خان په دورکښ دبنیادي جمهوریت دا نظام وو، لکن پدے وخت کښ په دنیا کښ د براه راست انتخاب طریقه رائج ده۔

## د ووټر د اهلیت صفات

پدے وخت کښ په ټوله دنیا کښ د بالغ رائے دهي په بنیاد د انتخاباتو د کولو نظام رائج دے، یعني چه کوم سړي بالغ وي هغه د ووټ ورکولو حق لري۔

## د انتخاب عامه طریقه

په انتخاباتو کښ عامه طریقه دا ده چه څوک زیات ووټونه حاصل کړي هغه کامیاب وي لکن کچري امیدواران ډیر وي نو هغه سړي هم کامیاب وي چه هغه د خپلي حلقے صرف پینځلس فیصده ووټ حاصل کړي او باقي د پینځه اتیا فیصده خلقو ووټ پدے وجه بے کاره شي چه هغوي مختلف امیدوارانو ته ووټ ورکړو چه په هغوي کښ یو کس هم پینځلس فیصده ووټ نه دے حاصل کړي او صرف یو امیدوار ته د ټولونه زیات یعني پینځلس فیصده ووټ میلاؤ شو نو صرف د پینځلس فیصده خلقو د ووټ په وجه یو سړي د ټولي علاقے نمائنده جوړ شي۔حالانکے پینځه اتیا فیصده خلق دَ لره نمائنده جوړول نه غواړي۔

لهذا عامه طریقه د انتخاب د عوامو حقیقي نمائندګي نه شي کولي او ډیر کرته د اقلیت والا پارټي په اکثریت حکمراني کوي۔

## دوباره انتخاب

د دے خرابي د لري کولو دپاره مختلف ملکونو مختلف طریقے اختیار کړي۔ لکه په فرانس کښ د دوباره انتخاب نظام رائج دے۔ ددے مطلب دا دے چه کچري یو سړي د خپلي حلقے یو پنځوس فیصده ووټ حاصل کړو نو هغه کامیاب دے، ځکه چه د اکثریت اعتماد ئے حاصل کړو۔

کچري یو کس هم یو پنځوس فیصده ووټ حاصل نه کړي نو بیا یوه هفته روستو په دغه حلقه کښ دوباره انتخابات کولي شي او په دے دویم انتخاب کښ صرف هغه خلق ودریږي چه هغوي په مخکښ انتخاباتو کښ دولس نیم فیصده ووټ حاصل کړي وي او چه چا د دینه کم ووټ حاصل کړي وي نو هغه په دویم انتخاباتو کښ شمولیت نه شي کولي، بیا په دے دویم انتخاباتو کښ چه کوم سړي اکثریت حاصل کړي هغه کامیاب وي۔

د دینه علاوه د انتخاباتو نوري طریقي هم شته، لکه دریمه طریقه د متناسب نمائندګي طریقه ده او پدیکښ هم ډیر صورتونه دي۔

بهرحال د ساده اکثریت والا انتخابي نظام کښ چه کومِ خرابیاني دي، د دے خرابي د لري کولو دپاره په مختلف ملکونو کښ د انتخاباتو مختلفے طریقے اختیارشوي لکن د دے مشکل د حل کولو دپاره یو

نظام هم پوره نه دے کامياب شوي۔ پدي طريقو کښ مصارف هم زيات کيږي او د ډيرو ورځو پوري يو غيريقيني کيفيت وي او سل فيصده نمائندګي پکښ هم نه شي کيدے۔

### مقننه

د جمهوريت دريمه اداره مقننه ده۔ دا په جمهوري نظام کښ د ټولو نه زيات اهميت لري۔ دا اداره د ټولو نه بالاتر ګنړلي کيږي او د جمهوريت په مذهب کښ مقننه معصوم عن الخطاء ګنړلي کيږي ګوياکه د دينه هيڅ غلطي نه کيږي۔ د مقننه لفظي معني ده قانون ساز مجلس يعني قانون جوړوونکي مجلس۔ دے ادارے ته پارليمنټ يا اسمبلي واي۔ د پارليمنټ معني ده هغه ځاي چه کوم ځاي خلق کينی او بحث کوي او د اسمبلي معني ده اجتماع ګاه۔

ددے ادارے بنيادي کار قانون سازي ده۔داداره پدے بحث کوي چه په ملک کښ کوم قانون نافذ کول پکار دي۔ بيا په کوم قانون چه د اکثريت حمايت حاصل شي، هغه منظورکړي او نافذ ئے کړي، دا اداره د حکومت په پاليسيانو هم بحث کوي۔

### د مقننه دوه نظامونه

په جمهوري نظام کښ د مقننه دوه قسمه نظامونه مشهوردي:

1. د يو ايو اني مقننه نطام
2. د دوه ايو اني مقننه نظام

د يو ايو اني مقننه نظام واضحه دے چه په ملک کښ د حکومت د چلولو يوه مقننه وي چه هغه قانون سازي کوي او چه کوم قانون منظورکړي هغه به ملک کښ نافذ کولي شي۔

ددوه ايو اني مقننه په نظام کښ يو ايوان زيرين وي او يو ايوان بالا وي۔ ايوان زيرين لکه زمونږ په ملک کښ قومي اسمبلي، په برطانيه کښ دارالعوام، په انډيا کښ لوک سبها، په امريکه کښ کانګريس۔

ايوان بالا لکه زمونږ په ملک کښ سينيټ، په برطانيه کښ دارالامراء، په انډيا کښ راجيه سبها، په امريکه کښ سينيټ۔

### دستور

په جمهوري حکومت او مطلق العنان حکومت کښ بنيادي فرق دا دے چه مطلق العنان حکومت دکوم دستورپابند نه وي او په جمهوري نظام کښ حکومت د دستورپابند وي۔

په عام طور خلق د دستور او قانون فرق نه کوي۔ دستور هغه دستاويز اتو ته واي چه په هغه کښ د حکومت د چلولو قواعد او ضو ابط درج وي، ګويه که دستور د حکومت قانون ته واي او حکومت د دغه قانون لاندي چلولي شي، مثلا دائے پکښ ليکلي وي چه د مقننه به کوم اختيارات وي، د انتظاميه

کوم اختیارات دي، د صدر او وزیر اعظم څه اختیارات دي، انتخابات به څرنګې کیږي، مقننه به یو ایو اني وي یا دوه ایو اني، د اخراجاتو طریقه کار څه ده، د عدلیه به څه اختیارات وي، داټولې خبرې په دستور کښ لیکلې وي۔

قانون دعوامو دپاره وي چه عوام به خپل معاملات د کوم قوانینو د لاندې کوي۔

## وحداني دستور او وفاقي دستور

بیا دستور دوه قسمه دے، وحداني دستور او وفاقي دستور۔ د وحداني دستور مطلب دا دے چه د ټول ملک دپاره یوه مقننه وي، یوه انتظامیه، یوه عدلیه وي او د ټول ملک نظام د مرکز نه چلیږي او ټولې علاقې د حکومت ماتحت وي۔

د علاقائي وحدتونو دپاره لکه صوبے، ضلعے ریاستونه د دے دپاره علیحده حکومت او مقننه نه وي۔ د انتظامي وحدتونو دپاره مثلا د صوبو، ضلعو ریاستونو وغیره د انتظام د چلولو دپاره سرکاري ملازمین مقرر کولې شي، لکه د ښار د انتظام دپاره کمشنر یا ډپټي کمشنر وي، هغه د ښار حاکم وي، هغه سیاسي حکمران نه وي بلکه سرکاري ملازم وي۔

دغه رنګې په صوبو کښ سرکاري ملازم نظام چلوي، دهغے دپاره علیحده اسمبلي یا کابینه یا سیاسي وجود نه وي۔

په عام طوردا نظام په هغه ملکونو کښ جاري کولې شي چه هلته صوبے زیاتي نه وي یا د کومو ملکونو خلق چه د یوے نظریے والا وي۔ هلته وحداني دستور غوره کولې شي، ځکه دهغوي په خپل مینځ کښ مفاداتو ټکراؤ نه وي۔

په برطانیه کښ وحداني نظام حکومت دے، ځکه چه هغوي ځان د یو نظام فکر پابند ګڼړي۔

حالانکے هلته مختلف علاقائي وحدتونه موجود دي او د مختلف علاقو په ثقافت، ژبه، لهجو او د ژوند په طریقه کښ فرق شته۔

## وفاقي دستور

وفاقي دستور هلته نافذ کیږي چه چرته په یو ملک کښ متعدد علاقائي وحدتونه موجود وي۔ د وفاقي حکومت اصل تصور داسې پیدا شویو چه په شروع کښ د هر علاقائي وحدت خپل ځان له حکومت وو۔

یعني د هرے صوبے د یو مستقل ملک حیثیت وو لکن روستو دا حکومتونه یو ځاي شویو، یو اتحادئے جوړ کړو چه دیته وفاق واي۔

پدے طریقه یو مرکزي حکومت جوړ شو چه هغه ته وفاقي حکومت واي او د هرے صوبے ځانله یو ذیلي حکومت قائم شو او هغوي په خپل مینځ کښ اختیارات تقسیم کړل لکن عملا وفاقي دستور یا وفاقي

نظام په هغه ځاي کښ هم جاري کړي شو چه چرته د شروع نه يو غټ حکومت په وجود کښ راشي او په هغې کښ د صوبو په شکل کښ واړه واړه علاقائي وحدتونه وو۔

نو دهغوي د مطمئن کولو دپاره د وحداني طرز حکومت په ځاي وفاقي طرز حکومت اختيار کړي شو۔ د دے دپاره چه د هرے صوبے سره احساس وشي چه زمونږ خپله يو آواز دے او تشخص دے۔

پدے طرز کښ يو وفاقي حکومت وي چه هغه ته مرکزي حکومت واي۔دويم د هرے صوبے خپل صوبائي حکومت وي، لکه په پاکستان کښ يو وفاقي حکومت دے او د هرے صوبے ځانله حکومت دے، د بلوچستان حکومت ځانله دے، پنجاب ځانله، سنده ځانله او د سرحد حکومت ځانله دے۔ دا صوبائي حکومتونه دي، ددے اسمبلياني ځانله دي۔ د دوي کابينه ځانله دي او د دوي انتظاميه ځانله دي۔

په دستور کښ دا خبره فيصله شوي چه په کومو معاملاتو کښ د قانون سازي حق وفاق ته وي او په کومو معاملو کښ د قانون سازي حق صوبو ته وي او په بعض معاملاتو کښ دواړه قانون سازي کولي شي۔

د پاکستان په دستور کښ دوه فهرستونه دي، يو وفاقي، دويم مشترک۔ په وفاقي فهرست کښ هغه امور درج دي چه په هغه کښ قانون سازي صرف وفاق کولي شي او په مشترکه فهرست کښ هغه امور درج دي چه په هغه کښ وفاق او صوبه دواړه قانون سازي کولي شي۔

د دينه علاوه چه څومره اموردي پدے ټولو کښ د قانون سازي اختيارات ټول د صوبو سره وي۔

کله چه د بعض صوبو دطرف نه د صوبائي خود مختاري مطالبه کولي شي نو دهغې مطالبه دا وي چه مشترک فهرست ختم کړي شي او په دغه معاملاتو کښ هم د قانون سازي مکمل اختيار صوبو ته ورکړي شي او په هغې کښ د وفاق هيڅ اختيار نه وي۔

### د دستور بنيادي اجزاء

مخکښ مونږ اويل چه دستوردوه قسمه دے، وحداني او وفاقي۔ هر ملک د خپل حالاتو په لحاظ سره د دستور ترتيب او تدوين په مختلفو طريقو کوي۔ لکن په بنيادي طور په دستور کښ چه کومِ خبري درج وي د هغې څو حصے دي، اوله حصه د د ستور ديباچه ده، دويمه حصه بنيادي حقوق۔ د ستور په اول کښ ديباچه وي چه هغه ته په اردو کښ تمهيد واي او په انګريزي کښ ورته پريمبل واي۔

دا د قانون د متن حصه نه وي، لهذا څوک د حکومت يو اقدام په عدالت کښ پدے بنياد نه شي چيلنج کولي چه دا د فلاني قانون د ديباچے نه خلاف ورزي ده بلکښ په ديباچه کښ هغه اسباب يا حکمت او مصلحت بيانيږي چه دهغې د وجے نه د يو قانون د نافذ کولو ضرورت راځي، مثلا دا قانون د فلاني مقصد دپاره نافذ کولي شي۔ البته ديباچه د متن قانون د تشريح دپاره استعمال کيديشي چه په يو

قانون کښ څه اجمال یا ابهام وي نو دهغې د رفع کولو او تشریح دپاره د پریمبل خبري بنیاد ګرځیدے شي۔

## بنیادي حقوق

د دستوردویمه حصه چه نن صبا په جمهوري دستورونوکښ عموما موجود ده هغه د بنیادي حقوقو حصه ده او جمهوري دستورونه د تولو نه زیات فخرپدے خبره کوي چه زمونږ په جمهوري نظام کښ د انسان د بنیادي حقوقو تحفظ شوے دے۔ په مطلق العنان حکومتونوکښ د افرادو د بنیادي حقوقو څه تحفظ نه وو لکن مونږ انسانانو ته دا حقوق ورکړل۔

پدے وجه په دستورکښ د دغه بنیادي حقوقو ذکر شوي چه هغه ټولو افرادو ته حاصل دي۔

مثلا اول دا چه د هر فرد جان مال او آبرو ته تحفظ۔ یعني حکومت به داسي اقدام نه کوي یا داسي قانون به نه جوړوي چه هغه د فرد په مال جان یا آبرو حمله آوروي۔

دویم دا چه هر فرد ته داظهارراي مکمل آزادي ده۔ د ده چه هر څه راي وي هغه ښکاره کولي شي او په ده هیڅ پابندي نشته۔

دریم دا چه هر فرد ته په خپل خپل مذهب د عمل کولو مکمل آزادي ده۔ دا چه د خپل ځان دپاره کوم مذهب برحق وګڼړي دا په هغه عمل کولي شي۔

څلورم دا چه هر شخص ته د جماعت د جوړولو آزادي ده، یعني دا هر څرنګي جماعت یا انجمن جوړولي شي۔

پینځم حق دا دے چه هر شخص ته د خپل املاکو د تحفظ آزادي ده۔ لهذا د ده په املاکو دویم کس حمله آورنه شي کیدے۔

هر شخص ته د خپل ځان دپاره د حکمران منتخب کولو آزادي ده۔ لهذا دا دخپلي مرضي مطابق د حکمران د منتخب کولو دپاره آزاد دے او د ووټ حق استعمالولي شي۔

برطانیه پدے خبره فخر کوي چه په دنیا کښ د ټولو نه مخکښ د بنیادي حقوقو په متعارف کولو کښ زمونږ حصه ده چه مونږ او زمونږ بادشاه جان دوم په دیارلسمه صدي کښ د میګناکارټا دستاویز جاري کړل چه په هغې کښ خپلو اوسیدونکو ته د حقوقو د ورکولو وعده وه۔

### تبصره

د میګناکارټا دستاویز صرف په ۴۲ صفحو مشتمل دي لکن په هغه کښ د انسان د بنیادي حقوقو په باره کښ صرف دا یوه جمله ده چه یو سړي به د قانون نه په غیر نه ګرفتاریږي او د مقدمې چلولو نه په غیر به هغه ته سزا نه ورکولي شي۔

د دے یوے دفعے نه ماسوا پکښ د انسان د بنیادي حقوقو متعلق بله خبره نشته، حالانکے اسلام او قرآن د انساني حقوقو وضاحت کړي۔

رسول الله صلي الله علیه وسلم د حجة الوداع په خطبه کښ انسان ته دومره واضحه او جامعه حقوق ورکړي چه میګنا کارټا دهغے ګرد و غبار ته هم نه شي رسیدلے۔ لکن دے خلقو سترګي بندي کړي یا قصدا د تجاهل نه کار اخلي، دا نه یادَوي چه اسلام، قرآن او پیغمبر څومره حقوق ورکړي۔

د دینه روستو چه دوي کوم حقوق د زیات وضاحت سره د امریکه د اعلان آزادي په وخت کښ شامل کړي، دهغے آغاز د دے جملے نه کیږي چه انسان دمور د ګیډي نه آزاد پیدا شوي، څوک د ده د غلام جوړولو طاقت نه لري۔ حالانکے دا جمله اول عمر فاروق رضي الله عنه عمرو بن العاص رضي الله عنه ته فرمائلي وه:

مذ کم تعبدتم الناس وقد ولدتهم امهاتهم احرارا (کنز العمال ص:٦٦٠، جز:١٢)

تاسو د کوم وخت نه خلقو له غلامان کړي او د دوي میاندو دوي آزاد زیګولي۔

دغه رنګي ربعي بن عامر رضي الله عنه چه د رستم په دربار کښ کوم تقریر کړي په هغه کښ د رستم د دے سوال په جواب کښ واي چه ستاسو څه مقصد دے، ولي راغلیوي، هغه ورته واي چه مونږ خلقو له د انسانانو د غلامي نه اوباسو د الله تعالي په غلامي کښ داخلوو۔ (البدایة والنهایة ص۴۲ جز:۷)

په حقیقت کښ بنیادي حقوق دغه خلقو ورکړیو لکن دوي هغو ته هیڅ اشاره هم نه کوي او واي چه اول دا حقوق مونږ ورکړي۔ بل دا چه په تمام سیکولر جمهوریتونو کښ د انسان د آزادي ذکر دے لکن د دے آزادي کوم شرط یا حدود او قیود نه دي بیان شوي، نو دا فیصله څوک نه شي کولي چه په فلاني آزادي فلاني پابندي صحیح ده او فلاني پابندي ئے غلطه ده۔ داسي مطلق آزادي خو هم نه ده مراد چه هر چاته دا آزادي شته چه د خلقو په مال جان د حملے کولو تبلیغ شروع کړي۔

حقیقت دا دے چه د لادینه جمهوریتونو سره د دے سوال کوم واضح جواب نه دے موجود۔ کله واي چه دا دقانون تابع ده، کله وي چه دا د ریاست د عمومي پالیسي یا د ریاست د سلامتي تابع ده۔

نو صحیح دا ده چه آزادي د وحي الهي او د شریعت تابع کول پکار دي چه کوم اظهار رائے د وحي الهي مطابق وي نو هغه صحیح ده، ورنه صحیح به نه وي۔

## انتظامیه

انتظامیه دوه قسمه ده، یوه سیاسي انتظامیه او دویمه غیر سیاسي انتظامیه۔سیاسي انتظامیه د حکومت هغه افرادو ته واي چه هغه د انتخاباتو په ذریعه برسر اقتدار راشي او هغه باقاعده ملازم نه وي او د انتخاباتو د مدے پوري خپل فر ائض اور ذمواري اداء کوي، لکه وزیر اعظم او د وزیر انو کابینه۔ غیر سیاسي انتظامیه هغه ته واي چه هغه په سرکاري ملازمینو مشتمل وي، لکه د وزارتونو سیکریټري،

د محکمو سربراهان، دویته تنخواه ورکولي شي، د دوي تعلق د انتخاباتو سره نه وي، بلکه هر حکومت چه راځي دا خپل فرائض اداء کوي۔

په دستور کښ د دے دواړه قسمه انتظامیو دپاره اصول او ضوابط درج دي چه حکومت به څرنګې جوړیږي۔ د دوي اختیارات به څه وي او سرکاري ملازمین به په کوم بنیاد مقرر کولي شي وغیره۔

په عام طور سرکاري ملازمینو ته دا آئیني تحفظ حاصل دے چه دوي د کوم معقول وجے نه په غیر د ملازمت نه نه لرې کولي شي۔

د دے وجے نه سیاسي حکومتونه ځي راځي لکن دا ملازمین په خپل ځای برقرار وي۔ په بعض وختونو کښ په ځکومتونو د دوي عملي ګرفت دومره مضبوط وي چه د حکومت په فیصلو دوي اثر اندازوي۔

په داسي صورت کښ د دوي د اثر او نفوذ نه په افسر شاهي یا نوکر شاهي سره تعبیر کیږي، په انګریزي کښ ورته بیوروکریسي واي۔

عدلیه

د عدلیه آزادي هم د جمهوریت دبنیادي اصولو نه ده۔ د دے وجے نه په دستور کښ دا خبره فیصله شوي وي چه د عدلیه افراد به څرنګې مقرر کولي شي، څوک به د دوي تقرري کوي، د دوي د ملازمت شرطونه په کوم وي او څرنګې به دوي د سرکاري دباؤ نه آزاد ساتلي شي۔

په عام طور په جمهوري نظامونو کښ ددے خبرے کوشش کولي شي چه د جج مقرر کول خصوصا په اعلي عدالتونو کښ د جج مقرر کول د انتظامیه د دباؤ نه آزاد وي۔

لکه په امریکه کښ د دے دپاره د سینیټ منظوري لازمي ده لکن په ډیرو ملکونو کښ وزیر اعظم یا صدر هم د جج تقرري کولي شي۔

البته چه کوم جج باقاعده مقرر شي نو انتظامیه هغه نه شي معزول کولي۔ دا د دے دپاره کچري جج د انتظامیه خلاف فیصله وکړي نو آزاد به وي۔ دهغه سره به دا ویره نه وي چه انتظامیه به ما معزول کړي۔ البته دهغه معزوله کولو دپاره ځانله ځانله طریقے په دستورونو کښ موجود دي، په امریکه کښ د سینیټ په ذریعه معزولي کولي شي۔

زمونږ په ملک کښ یو سپریم جوډیشل کونسل جوړ شوي دے۔ د دے مقصد دا دے کچري د جج خلاف څه الزام وي نو هغه به د دے تحقیق کوي۔ که الزام صحیح ثابت شو نو هغه د جج د معزول کولو اختیار لري۔

بهرحال ددے کوشش کولي شي چه جج ته تحفظ ورکړي شي۔

دغه رنګې په دستور کښ د فوج متعلق هم قواعد او ضوابط وي او دا پکښ هم وي چه د حکومت اخراجات به په کوم بنیاد کیږي، بجټ به څرنګې جوړولي شي او د دے دپاره څه اصول وي۔

## د جمهوريت عملي نظام

د جمهوري نظام په عملي صورت کښ د څلور ملکونو طريق کار ذيات مشهور دے او پدے څلور ملکونو کښ جمهوريت مضبوط ګڼړلي شي، برطانيه، امريکه، فر انس، سوئزرليند

## د برطانيه پارليماني نظام

د برطانيه جمهوري نظام ته پارليماني نظام واي او مونږ د ډيرے زمانے پوري د برطانيه غلامان پاتي شويو، د دے وجے نه زمونږ په ملک کښ په هر شي کي د برطانيه د نقل کوشش کولي شي۔

د دے وجے نه زمونږ سياسي نظام په پارليماني بنيادونو قائم دے او زمونږ دستور پارليماني دستور دے۔

## دپارلېماني نظآم مقصد

د پارليماني نظام مقصد دادے چه اصل قوت حاکمه پارليمنټ دے او دا عجيبه خبره ده چه د جمهوريت بنياد به تفريق داختيار اتو دے چه مقننه انتظاميه عدليه به بيلا بيل وي۔ لکن د برطانيه د پارليمنټ په سستم کښ مقننه او انتظاميه په يو بل کښ ضم شوي، ځکه پارليمنټ قانون سازي هم کوي او حکومت او کابينه هم جوړوي او وزير اعظم د دے کابينے سربراه وي۔ پارليمنټ ته دا اختيار شته چه کله اوغواړي نو وزير اعظم او کابينه معزول کولي شي او نوي کابينه جوړولي شي۔

د دے نظام بنياد پدے خبره وي چه د رياست سربراه ځانله وي او د ا نتظاميه سربراه ځانله دے۔ په برطانيه کښ د رياست سربراه بادشاه دے اوس ملکه ده او د انتظاميه سربراه وزير اعظم وي۔ په برطانيه کښ د بادشاه يا ملکه څه عملي اختيارنه وي، صرف مشوره ورکولي شي۔

دا بادشاهت موروثي دي، په انتخاب سره نه دي او څه خاص ضرورت ورته هم نه دي، لکن په انګريز انو کښ دا يوه طريقه ده چه کوم ادارے د دوي په کار کښ رکاوټ نه وي نو دهغوي د باقي پريښودلو کوشش کوي۔

## برطانوي پارليمنټ

د بارطانيه په پارليمنټ کښ دوه ايو انونه دي، يو دارالعوام چه په انګريزي کښ ورته هاؤس آف کامنز واي۔ دويم دار الامراء چه هغے ته هاؤس آف لارډز۔ دار العوام داسے دے لکه زمونږ د ملک قومي اسمبلي يعني د هغے ارکان د بالغ رائے دهي په بنياد منتخب کيږي او بيا د خپلو ارکانونه د انتظاميه سربراه يعني وزير اعظم منتخب کوي، بيا نور وزيران منتخب کيږي۔

## دار الامراء

دويم ايوان دار الامراء دے چه هغے ته هاؤس آف لارډزواي۔ دا يو عجيب قسم موروثي ايوان دے چه د ډيرو صدو نه روان دے۔ د دے د ممبر انو يو لوي تعداد موروثي دے، انتخاب ئے نه وي شوي، بلکه څو

صدي مخکښ چه څوک ممبر کړي د هغه د انتقال نه روستو دهغه ځوي رکن شي چه کله ئې د ځوي انتقال وشي نو نمسي رکن شي۔

البته پدے ایوان کښ د زنانوو رکنیت نشته، ځکه په عیسائي مذهب کښ زنانه وارثه نه گرځي۔

د دے ایوان یوه حصه داسي ده چه د هغې ارکان د ملکه د طرف نه مقرر شوي، ځکه ملکه ته دا حق حاصل دے چه یو چا له د دار الامراء رکن جوړ کړي۔ دا یو عجیب قسم اداره ده، په دنیا کښ د دے مثال مشکل دے او د دے ادارے څه خاص فائده هم نشته۔

د برطانیه په سیاسي نظام کښ یوه دلچسپ خبره دا ده چه دهغوي څه تحریري دستور نشته۔ دا صرف رو ایت او رواج دے او دغه رواج ته آئیني حیثیت حاصل دے، یعني څومره خبري چه د آئین سره متعلق دي دا ټول رو ایات او رواجونه دي او دا رواجونه دومره مضبوط دي چه د دے شان د یو تحریري دستور نه کم نه دے۔عدالتونه د دغه رواجونو په بنیاد فیصلے کوي۔

په برطانیه کښ داپوزیشن او سرکاري حکومت همیشه مخالفت وي، که لبرل پارټي حکمران وي نو کنزروټیو پارټي مخالفت کوي او که کنزروټیو برسر اقتداروي نو لبرل ئې مخالفت کوي، لکن د مخالفت سره هره پارټي د خپل رو ایاتو پوره خیال ساتي، د یو بل د حقوقو احترام کوي، د دے وجے نه برطانیه د پارلیمنټري سسټم امام گڼلي شي۔

## د امریکه صدارتي نظام

د برطانیه نظام حکومت ته پارلیماني نظام واي او د امریکه نظام ته صدارتي نظام واي چه دا د برطانیه د پارلیماني نظام بالمقابل دویم غټ نظام دے۔ په دواړو نظامونو کښ ډیر فرق دے۔ اول دا چه د برطانیه نظام وحداني دي او د امریکه آئین وفاقي دے۔

دویم دا چه په برطانیه کښ مقننه او انتظامیه د یو حد پوري یو دي او د امریکه په نظام کښ مقننه انتظامیه عدلیه بیلا بیل ادارے دي۔ دري واړه خود مختاره دي۔

د انتظامیه سربراهي صدرکوي او مقننه چه هغې ته کانگریس واي په دوه ایو انونو مشتمل ده۔ یو ایوان ذیلي چه هغې ته ایوان نمائندگان واي، دویم ایوان بالا یعني سینیټ۔ د انتظامیه سربراهي صدر کوي او د صدر تعین مقننه یا اسمبلي یا پارلیمنټ یا کانگریس نه کوي بلکښ دهغه انتخاب براه راست کیږي او د انتخاب نظام ئې هم پیچیده دے۔ د صدر انتخاب دوباره کیږي، یو ځل انتخاب په عام ووټونو سره کیږي چه هغه د براه راست انتخاب یو شکل دے او دیم ځل انتخاب انتخابی اداره کوی چه دا د مختلف ریاستونو په افرادو مشتمل وی۔ په دواړو انتخاباتو کښ د کامیابیدو نه په غیر صدر نه منتخب کیږي۔

وجه دا ده چه امریکه یو وفاقي ریاست دے چه دا په دوه پنځوس ریاستونو مشتمل ده، پدے وجه ورته ریاست هائے متحده واي، او د هرریاست نه په دے انتخابي اداره کښ افراد شته۔

د صدر په انتخاب کښ دومره اهتمام ځکه کيږي چه د امريکه د صدر سره اختيارات ډير زيات وي۔ د انتظاميه سربراهي کوي خپله کابينه په خپله منتخب کوي۔ د رياست سربراهي هم کوي، حکومت چلوي، بيروني پاليسياني جوړي، اعلان جنګ کوي، البته هر پاليسي دکانګريس نه منظور کوي، او مخکښ بيان شويو چه د برطانيه طريقه د دينه بدل وه۔

حاصل دا دے چه د پارليماني نظام او صدارتي نظام په طريقو کښ د يو بل سره ډير فرقونه دي۔

## د فرانس پارليماني نظام

دا خبره مخکښ ذکر شو يوه چه په يورپ کښ د جمهوريت په قيام کښ د ټولو نه لويه حصه د فرانس د انقلاب وه، لکن عجيبه خبره دا ده چه د فرانس نه دا انقلاب راپورته شو چه د هغے په بنياد د جمهوريت تحريک شروع شو او په نورو ملکونو کښ مضبوط جمهوري نظام قائم شو۔

لکن فرانس په خپله د ديري مدے پوري د ډير زبردست دستوري کشمکش شکار شو، وخت په وخت په دستور کښ بدلون راتلو، لکن په آخر کښ دوي د پارليماني نظام په بنياد يو دستور جوړ کړو، څرنګي چه په برطانيه کښ پارليماني نظام وو۔

پدے وجه د ۱۹۵۸ء نه لږ مخکښ دغه سسټم وو چه وزير اعظم بااختياره وو او د صدر سره څه خاص اختيار نه وو۔ بادشاه د تاش د بادشاه په شان برائے نام بادشاه وو۔ نو د برطانيه او د فرانس بادشاهان براي نام وو، د وزير اعظم د تصديقي دستخط نه په غير ئے څه نه شو کولي۔

په پاکستان کښ بهتو صاحب هم ۱۹۷۳ء په دستور کښ دا نظام مقرر کړيو چه کله چوهدري فضل الهي صاحب صدر جوړ شو نو هغه به د وزير اعظم د دستخط نه په غير څه نه شو کولي۔

پدے وجه د صدر او وزير اعظم په مينځ کښ اختلافات هم روان وو، لهذا ۱۹۵۸ء کښ چه کله جنرل ډيګال صدر جوړ شو نو هغه نوي دستور جوړ کړو او په هغه دستور کښ د صدر او د وزير اعظم په مينځ کښ د اختياراتو د توازن قائمولو کوشش وکړو او بيائے دغه دستور د اسمبلي په ځاي د ريفرنډم دپاره د عوامو مخے ته پيش کړو چه د هغے په نتيجه کښ په ډير زيات اکثريت سره هغه دستور کامياب شو۔ پدے وجه د ۱۹۵۸ء نه روستو دا دستور نافذ شو۔ د اصل په اعتبار دا نظام پارليماني دے، لکن د صدر سره هم څه اختيارات شته، مثلا دا د اسټيټ سربراه وي، دغه د ملحق رياستونو يعني فرانس چه د افريقے په کومو رياستونو قبضه ده نو دهغے هم سربراه وي۔ د کابينو د اجلاسونو صدارت هم کوي نو په انتظاميه کښ في الجمله دخل شته۔ دغه رنګي چه په قانون کښ د ترميم ضرورت وي نو هغه قانون دستوري کونسل ته حواله کولي شي چه هغه اوګوري چه دا د دستور سره موافق دے او که نه۔

د فوج د سربراه تعين هم کولي شي، د وزير اعظم د مشورے نه په غير که اسمبلي د آئين مطابق کار نه کوي نو هغه هم ماتولي شي لکن د وزير اعظم د مشورے نه روستو، اګرچه د وزير اعظم د مشوري پابند

نه دے او یو لوي اختیار ئے دا هم دے که په ملک کښ ایمرجنسي صورت راشي نو د ملک د حفاظت په خاطر هر مناسب اقدام کولي شي۔ دا د برطانیه او د فرانس د بادشاه بنیادي فرق دي۔

## د سویټزرلینډ د حکومت نظام

د دے ملک نظام حکومت د ټولو نظامونو نه بالکل مختلف دے۔ د علم سیاست مصنفین او مفکرین واي چه په صحیح معنو سره جمهوریت په سوئیټزرلینډ کښ دے۔ دا ملک د رقبے په اعتبار تقریبا د سنده هومره دے، آبادي تقریبا شپیته لاکه ده او رقبه ئے هم زیاته په غرونو کښ راګیر ده، په دومره وړوکي ملک کښ تقریبا ۲۲ صوبے دي، هره صوبه په انتظامي طور خود مختاره ده۔ د هرے صوبے ځانله حکومت، ځانله اسمبلي او ځانله کابینه ده۔ د دوي په مینځ کښ وفاقي حکومت دے، انتظامیه، عدلیه، مقننه دري واړه بیلا بیل دي۔

وفاقي اسمبلي په خپل مینځ کښ د اوه افرادو انتخاب کوي، هغے ته فیډرل کونسل واي۔ دا اوه افراد د څلورو کالو دپاره وي او دوي د انتظامیه سربراه وي، یو کس سربراهي نه کوي۔ ددے افرادو په انتخاب کښ دا کوشش کوي چه پدیکښ د مختلف صوبو مختلف ژبو مختلف مذاهبو خلق شامل وي۔ دوي د ټول ملک وفاقي نظام چلوي۔ چونکه پدے ملک کښ ۲۲ صوبے دي او د دوي اختیارات ډیر دي، پدے وجه وفاقي معاملات کم وي۔

مخکښ زنانو ته د ووټ ورکولو حق نه وو، اوس زنانو ته هم د ووټ ورکولو حق شته۔ د دے نظام یو اهم خصوصیت دا دے چه پدے نظام کښ د ډیرو قوانینو او حکومتي پالسو د منظوري دپاره ریفرنډم کول ضروري دي۔ لهذا پدے ملک کښ ریفرنډم زیات وي۔ په بعض خبرو کښ ریفرنډم لازمي دے، لکه د دستور په تبدیلیانو کښ د ریفرنډم نه په غیر په دستور کښ تبدیلي نه کیږي، او په بعض خبرو کښ ریفرنډم ضروري نه دے، لکن کچري یو لاکه کسان په څه خبره د ریفرنډم کولو تجویز پیش کړي نو په حکومت ریفرنډم کول لازمي وي۔

## په جمهوریت تبصره

د دے ځاي پوري مونږ مختلف سیاسي نظریات او د مختلف سیاسي نظامونو مختصر تعارف وکړو او په آخر کښ مونږ د جمهوریت بنیادي فکرونه او د جمهوریت قائم کړي شوي ادارے او د جمهوریت د لاندي قائم کړي شوي د مختلف طرزونو حکومتونه بیان کړل۔

هر کله چه په موجوده وخت کښ د جمهوریت نه علاوه نور سیاسي نظریات د دنیا نه تقریبا ختم شوي او په موجوده وخت کښ د ټولونه زیاته سیاسي نظریه سیکولر جمهوریت دے نو پدے وجه مونږه په جمهوریت تبصره کوو۔

مفتي مولانا تقي صاحب واي ناپوهه خلق واي چه په دنیا کښ مختلف نظامونه تجربه شو لکن په ټولو کښ بهترین نظام سیکولر جمهوریت دے، تردے چه داسي هم ویلي شي چه د دینه بهتر نظام په وجود کښ نه شي راتلي۔

د امریکه د وزارت خارجه د یو لوي افسر د طرف نه یو کتاب شائع شوي، د هغه ترجمه ده "د تاریخ خاتمه او د آخري سړي"، دهغه خلاصه دا ده چه د تاریخ ترقي انتهاء ته رسیدلي، د سیکولر جمهوریت د معلومولو نه روستو او د لبرل جمهوریت د تیارکولو نه روستو ښائسته نظام په وجود کښ نه شي راتلي۔

دا داسي پیش ګوئي ده لکه چه کارل مارکس ویلیو چه اشتراکي نظام د دنیا آخري نظام دے او د دینه روستو کوم بهتر نظام په وجود کښ نه شي راتلي۔

پدیکښ خو څه شک نشته چه د جمهوریت نه مخکښ مطلق العنان حکومتونه او بادشاهتونه یا ډکټیټر شپ وو۔ په هغه کښ چه کوم جبر او تشدد وو یا په افرادو ناروا پابندیاني وي، په جمهوریت کښ د ډیر حد پوري د هغې خاتمه شوي او په مجموعي لحاظ افرادو ته آزادي میلاؤ شوي لکن جمهوریت د بنیادي تصور په لحاظ په حقیقت کښ په یو سنجیده فکر نه دے بنا۔ بلکښ دا د هغه خود ساخته نظامونو رد عمل دے چه مغرب په سوونو کاله په خلقو جابر انه حکومت کولو۔

دغه رنګي جمهوریت د پوپ دهغه ذاتي تصوراتو رد عمل دے چه دغه تصورات خلقو معصوم ګڼړل او د مذهبي حکم په طور نافذ شویو او په هغه کښ د خلقو حقوق پائمال شویو۔

د دے په رد عمل کښ د جمهوریت والا د مذهب بیخ کندي وکړه او دا تصور ئے قائم کړو چه حاکمیت اعلي د عوامو حق دے او د دے سره ئے د سیکولر ازم تصوریو ځاي کړو چه د ریاست په معاملاتو کښ د کوم دین او مذهب پابندي نشته۔ مذهب دانسانانو ذاتي معامله ده چه د دوي دانفرادي زندګي سره تعلق لري لکن په سرکاري معاملاتو کښ د دے هیڅ کار نشته بلکښ عوام په خپل حاکم وي، په حکومتي معاملاتو کښ دوي د کوم الهي قانون پابند نه وي بلکښ دوي به په خپله فیصلي کوي چه کوم شي ښه دے او کوم شي بد دے۔ د دے وجے نه آزاد جمهوریت یا لبرل ډیموکریسي د سیکولر ازم نه په غیر نه شي چلیدے۔

پدے نظریه کښ اوله خبره دا ده چه ټول عوام حاکم دي نو محکوم څوک دے، آیا زمکه محکوم ده او که د ملک عمارتونه یا جمادات یا نباتات، ځکه د حاکم کیدو لازمي نتیجه دا ده چه څوک بئ محکوم وي۔

د جمهوریت په تعریف کښ دا جمله مشهوره ده چه ګورنمنټ آف الخ

یعني د عوامو حکومت د عوامو په ذریعه دعوامو دپاره۔ د دے مطلب دا دے چه عوام په خپله حاکم هم دي او په خپله محکوم هم دي او دا کیدے نه شي چه یو کس د هم حاکم وي او هم محکوم او دهغه په ذریعه دِ حکومت هم کولي شي۔

لهذا د عوامو د حاکمیت بنیادي تصور مفقود دے۔

په جمهوریت کښ بله خبره دا ده چه پدیکښ نه داخلاقو پابندي شته نه پکښ آسماني هدایت شته بلکښ د دے ټول دارومدار د عوامو په خپل مرضي او خواهش دے۔ د دے وجے نه چه څومره بدتر او ناکاره کارونه دي هغه ته د آزادي په نوم د جواز سند ورکړي شوي ، لکه د برطانیه پارلیمنټ دهم جنس پرستي د جواز سند ورکړو او د دے جواز قانون ئے د لاسونو به پړقولو سره منظور کړو او د دینه روستو د یورپ په بعض ملکونو کښ د هم جنسو ودونه په قانوني طور تسلیم کړي شو۔امریکه هم دغه قانون جوړکړو او اوس په امریکه او یورپ کښ د دوي باقاعده جماعتونه دي چه هغوي ته هم جنس پرست واي۔

دغه رنګي د دوي په قانون کښ غیر شادي شده زنانه ته اجازت وو چه هر څه کولي شي لکن شادي شده زنانه به زنا نه کوي ځکه د دینه د خاوند حق پامال کیږي بیا دا مطالبه شروع شوه چه دا پابندي هم هم ختمول پکاردي۔ د دے وجے نه یورپ او امریکه اکثر خلق غیر ثابت النسب دے۔

حاصل دا دے چه هر بدتر او ناکاره کار په جمهوریت کښ جائز دے، ځکه د عوامو حاکمیت دے او هغه دا کارونه خوښوي۔

الله تعالي په دوي د عذاب په طور ایډز بیماري مسلط کړه او دا بیماري د دوه وجونه پیدا کیږي، یو د هم جنس پرستي د وجے نه او دویم دا چه یو سړي د ډیرو زنانوو سره یا یوه زنانه د ډیرو سړو سره جنسي تعلق قائم کړي۔

په ډیرو نکاحونو ئے پابندي لګولي او که د لس فحاشه زنانوو سره تعلق جوړي نو اجازت دے۔

دا ټول د عوامو د هغه ـے لګامه حاکمیت نتیجه ده چه کوم سیکولر جمهوریت پیدا کړي، بل دا چه په حقیقت کښ د عوامو حاکمیت لفظ هم یوه غټه دوکه ده، ځکه پدے لفظ خو عوام خوشحاله کولي شي چه تاسو حاکم ئیوي لکن عملا په اکثر ځایونو کښ عوامو ته پته هم نه وي چه حکومت څه کوي۔

شیخ عبد الهادي په خپل کتاب عالم اسلام پر فکري یلغار ص ۱۳۷ کښ وائ چه ددي کفري دین فلاسفر او پیروکار دا غواړي چه دا په عقل جوړ شوي دین په باقي ټولو اسماني مذهبونو غالب شي او د ژوند په هر مور کښ مخکښ شي او ټول انسانان په جبري طور ددے نوي دین په منلو آماده کړي او چه څوک جمهوریت نه مني نو هغه ته انسان ویل هم مناسب نه دي۔

مثلا امریکه د مسیحي مذهب ملک دے لکن که هلته څوک د مسیحي دین نه انکاروکړي نو د حکومت د طرف نه هغه ته څه مشکلات نه پیدا کیږي لیکن که څوک د جهوریت نه انکاروکړي نو هغه په امریکه کښ دا وسیدو حق نه لري او دا حال د نورو مسیحي ملکونو هم دے لکه برطانیه فر انس جرمني اټلي اسټریلیا دغه رنګي که څوک په اسر ائیلو کښ یهودیت نه مني نو هلته اوسیدے شي لیکن چه جمهوریت نه مني هلته نشي اوسیدے۔ دغه رنګي د دنیا د ټولو ملکونو دا حالت دے تردي چه په یو اسلامي

جمهوري ملک کښې يو سړے اسلام نه مني مرتد شي نو څه خبره نشته ليکن که څوک جهوريت نه مني نو هغه د هر قسم انساني حقوقو نه محرومه کولے شي.

**جمهوريت دوه قسمه دے غربي او اسلامي:**

مولانا عبد الباقي په خپل کتاب د اسلام سياسي او اداري نظام ص ۴۱۰ ج ۱ کښې وائ چه جمهوريت دوه قسمه دے يو غربي جهوريت دويم اسلامي جمهوريت غربي جمهوريت ديته وائ چه دعوامو حکومت د عوامو په ذريعه په فائده او خواهش د عوامو.

پدي قسم حکومت کښې مقتدار اعلي د عوامو رائ او خواهش وي د عوامو هر خواهش به په ملي قانون کښې روا وي او د عوامو هر ناخوښ به حرام او بند وي.

پدي حکومت کښې مجلس شوریٰ يعني پارلمان چه د عوامو د خواهشاتو نمائندگي کوي د شارع حيثيت لري د خلقو د ژوند دپاره د قانو ن جوړولو حق ځان ته ورکوي او کوم مادے چه په قانون کښې تصويب شي هغه به د مملکت د خلقو دپاره قانون وي اگر که په اسماني اديانو کښې ددے دپاره هيڅ گنجائش نه وي بلکه ددے بنياد په بے دينۍ وي د اکثريت فيصله قطعي وي او د مذهب دپاره پکښې هيڅ د خل نه وي.

**اسلامي جمهوريت:**

اسلامي جمهوريت ديته وائ چه د رعيت د خواصو په فيصله جوړ حکومت د الله تعالی د رضا په خاطر- پدي کښې مقتدر او حاکم اعلی عوام نه وي او نه د دوئ نمائننده گان يعني پارليمان بلکه پدي نظام کښې اعلی حاکم د الله تعالی ذات وي ان الحکم الا الله حکومت خو صرف يوائې د الله تعالی حق دے.

او مجلس شوریٰ د الٰهي نظام د تنفيذ او تطبيق دپاره طريقه کار جوړوئ او په الٰهي نظام کښې د بدلون حق نه لري که د مجلس شوریٰ يعني د پار لمينټ ټول اراکين يا د ټولي دنيا مسلمانان راجمع شي نو يو قطعي حرام حلال يا حلال حرام نه شي گرځولے.

**د جمهوريت بنيادونه**

شيخ دوست محمد رحمه الله په نداء الفرسان ص:۹ کښې او شيخ گوهر رحمن په اسلامي سياست ص:۸۶ کښې واي، حاصل ئے دا دے چه د جمهوريت يا ديموکريسي شپږ غټ بنيادونه دي او هر يو بنياد د کفر او الحاد بنياد دے، سيکولرازم، لبرل ازم، حکم بالاکثريت، کيپيټل ازم، نيشنل ازم او پارټي ازم.

اولني بنياد سيکولر ازم دے يعني د دين او سياست ترمينځ پوره بيلوالي. د سيکولر ازم تعريف دا دے چه لادين في السياسة ولاسياسة في الدين يعني په حکومتي کارونو کښې د دين څه حق نشته او په ديني کارونو کښې د حکومت څه کار نشته، لکه د عربي يوه مقوله ده اعطوا القيصر ما للقيصر والکليسا ما للکليسا يعني په جمهوري حکومت کښې هيڅ رسمي دين وجود نه لري الخ (اسلامي سياست ص:۸۶)

**دا خلق د دے آيت مصداق کيدے شي چه نُؤۡمِنُ بِبَعۡضٖ وَنَكۡفُرُ بِبَعۡضٖ، لکه سورة النساء:۱۵۰ او ۱۵۱ او په بقره ۸۵ کښ واي أَفَتُؤۡمِنُونَ بِبَعۡضِ ٱلۡكِتَٰبِ وَتَكۡفُرُونَ بِبَعۡضٖ**

**ابن تيميه رحمه الله واي:**

اذا كان بعض الدين لله وبعضه لغير الله وجب قتالهم حتي يكون الدين كله لله (مجموع الفتاوي ص:۱۲۹)

**سورة حجر کښ واي:**

**ٱلَّذِينَ جَعَلُواْ ٱلۡقُرۡءَانَ عِضِينَ** (الحجر:۹۰)

**د عضين په تفسير کښ مفسرين واي:**

اقتسموا القرآن وجعلوه اعضاء فامنوا ببعضه وكفروا ببعضه۔ (كسائي ابوعبيده وابن عباس، زاد المسير ص:٤٦ ج:۴)

**اوس تاسے قضاوت وکړي چه يو سړي د دين پوره نيمه حصه نه مني هغه څرنګې مسلمان پاتي کيدے شي۔**

**مفتي تقي عثماني صاحب واي:**

ان هذه النظرية في الحقيقة نوع من انواع الاشراك بالله تعالي **(تکمله فتح الملهم ص:۲۷۲ ج:۳)**

**يعني دا نظريه په حقيقت کښ د شرک يوه نوعه ده۔**

**د جمهوريت دويم بنياد لبرل ازم دے، يعني بے قيده او بے واګو خپلواکي۔ د لبرل ازم تعريف دا دے چه** الحرية المطلقة في الفكر والعقيدة والبيان والمذهب والصحافة وقضاء الشهوات۔ **يعني د فکر آزادي او د عقيدے او د بيان آزادي او د تعين د مذهب آزادي، د صحافت آزادي، د جنسي تعلقاتو آزادي۔ يعني انسان ته په خپله زندګي کښ مطلق العنان آزادي ده۔ د کفري فکر د کفري عقيدے آزادي ده۔ د کفرياتو د بيانولو آزادي ده، د لادينيت د اختيارولو آزادي ده، د کفري کلماتو د ليکلو آزادي ده، د زنا کولو آزادي ده، شيخ ګوهر رحمن رحمه الله واي الله او رسول ته کنځل کولي شي، د مور خور لور سره جنسي تعلق کولي شي، بربنډ ګرځيدلي شي، په لارو کوڅو کښ د خلقو په مخکښ زنا کولي شي۔ که مور او پلار پے اعتراض کوي هغه نيولي کيږي، بندي کيږي، جزا سزا هم ورکولي شي، پدے وجه چه د يو چا په شخصي ژوند کښ مداخله کول قانوني جرم او د جمهوري حقوقو خلاف کاردے۔ دسياسي خپلواکي په نوم تحريک چلول ، مظاهره او احتجاج کول اورلړول ګټي ويشتل، تخريبي کار کول، جمهوري حق ګڼړل کيږي۔**

لبرل ازم یواځې د بادشاه یا پوپ د غلامي نه آزادي ته نه واي بلکه د دے سره د الله تعالي د هدایاتو او د رسول الله د اخلاقو نه آزادي ته هم ویلي کیږي او دا هغه خپلواکي او آزادي ده چه د جمهوریت جنډه پورته کونکي ئے د خپل ځان دپاره فخر او ناز ګڼړي لکن په حقیقت کښ دا قسم جمهوریت او آزادي د حیوانیت دویم نوم دے او بس۔ العیاذ بالله لکن بل طرف ته د جهاد فرضیت بیانول قرآن بیانول بند دے چه دا دهشت ګردي ته وده ورکوي، په شرعي پرده پابندي ده، په اسلامي اصولو د کلک ودریدلونه پابندي ده۔

## د مطلق حریت او آزادي دعوه صحیح نه ده

جمهوریان واي چه حریت او آزادي ده، نو د مطلق آزادي خبره بالکل صحیح نه ده، ځکه مطلق آزادي به کله د قانون خلاف وي، مثلا په اکثر ملکونو کښ د سړک په چپ طرف تلل کیږي اوس یو سړي په ښي طرف ګاړي روان کړي چه آزادي ده ، خپله خوښه ده، نو دا څوک نه مني۔

یا یو سړي ـے تیپوسه په یو ځاي کښ کور یا دکان جوړئ چه آزادي ده نو دا څوک نه مني او مطلق آزادي به کله د عرف خلاف وي، مثلا په یو کور کښ د مړي تعزیه کیږي او یوه زنانه ورشي د ریښمو جامي اغوستي په شوشا کښ وي چه آزادي ده نو دا زنانه هر څوک بده ګڼړي، ځکه دا طریقه د عرف نه خلاف ده۔

او مطلق آزادي کله د عام ذوق او مزاج نه خلاف وي، مثلا یو سړي دال او الوګان وخوري او د خلقو مخې ته هوا اوباسي چه آزادي ده نو د خلقو عام مزاجونه دا بده ګڼړي۔

## د لبرل ازم نومونه:

شیخ نور محمد رحمه الله په خپل کتاب جمهوریت عقل و نقل کے آئنے میں ص:۵۵ کښ واي چه د لبرل ازم دپاره په عربي اردو کښ متعدد اصطلاحي نومونه ایجاد شوي، مثلا وسیع النظري، وسیع المشربي، اعتدال پسندي، روشن خیالي، ترقي پسندي، آزاد خیالي، وغیره۔

او چه څوک په دین عمل کوي او په الله او رسول مضبوط یقین لري نو دهغوي دپاره ئے هم نوي نوي نومونه او اصطلاحات ایجاد کړي مثلا قدامت پسند، رجعت پسند، فرسوده خیال، مذهبي جنون۔

د جمهوریت دریم بنیاد حکم بالاکثریت دے یا د عوامو حاکمیت چه اکثر خلق څه خواهش لري او څه غوښتنه کوي هغه به قانون وي۔ حالانکے قرآن کریم واي چه وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ (الانعام:۱۱٦) یعني اکثریت د ګمراهانو دے او الله تعالي واي:

وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِنْ عَهْدٍ وَإِنْ وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ (الاعراف:۱۰۲)

یعني اکثریت دیے لوظو او فاسقانو دے۔ او الله تعالي واي:

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ (الاعراف:۱۷۹)

یعني اکثریت دجهنمیانو دے او دهغه خلقو دے چه دهغوي اسباب د فهم بند شوي او اکثریت د هغه خلقو دے چه هغه د ډنګرو په شان دي بلکه د ډنګرونه هم زیات ګمراه دي۔ الله تعالي واي:

وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (الاعراف:۱۸۷)

یعني اکثریت د بے علمو دے

وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ (الاعراف:۱۷)

وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ (الشعراء)

یعني اکثریت د بے ایمانو دے۔

وَأَكْثَرُهُمْ كَاذِبُونَ (الشعراء:۲۲۳)

یعني اکثریت د دروغ جنو دے۔

په حدیث کښ راځي چه په زورو کسانو کښ به یو کس جنت نه ځي او یو کم زردوزخیان دي۔

وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ (یوسف:۱۰۳)

وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ (یوسف:۱۰۶)

بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ الْحَقَّ فَهُمْ مُعْرِضُونَ (الانبیاء:۲۴)

أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ أَوْ يَعْقِلُونَ إِنْ هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا (الفرقان:۴۴)

لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلَى أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ (یس:۷)

فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ (حم سجده:۴)

وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ (البقرة:۲۴۳)

حدیث کښ راځي چه ان من الانبياء من لم يصدقه من امته الا رجل واحد (مسلم)

که اکثریت همیشه په حق وي نو د بعض انبیاء سره د ټول قوم په مقابله کښ صرف یو ملګري وو او رسول الله صلي الله علیه وسلم د غرباء په باره کښ واي:

ناس صالحون قلیل في ناس سوء کثیر ومن یعصیهم اکثر ممن یطیعهم

**یعني غرباء لږ نیکان وي په ډیرو ناکاره خلقو کښې د دوي نافرمان ډیروي د دوي د منونکو نه۔**

**او حدیث کښې راځي:**

انما الناس کالابل المئة لا تکاد تجد فیها راحلة **(متفق علیه)**

یعني د اخري زماني مسلمانان به داسي وي لکه سل اوښان وي او یو پکی د بار والا نه وي

## د جمهوریت څلورم بنیاد کفټلیزم دے یعني سرمایه داري او ماده پرستي:

**دیته آزادي ملکیت هم واي۔ د کفټلیزم تعریف دادے چه** تمول علی خلاف الشرع **یعني د شرعي احکامو د لحاظ نه په غیر مال حاصلول په هره طریقه چه وي که د سود او رشوت د لاري نه وي اوکه په عصمت پروشي سره وي اوکه په غصب او غلا سره وي۔**

**یعني په هره طریقه چه ته مال ګټلے شي وي ګټه، د دین او روحانیت نه د سرکشۍ لازمي نتیجه داده چه انسان د ګیډې غلام شي د الله تعالی د بندګي په ځائ د زوربنده شي ددي وجه په غربي نظامونو کښې د سود اوګټي نه په غیر چا ته قرض هم نه ورکول کیږي او الله تعالی وای:**

**وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ** (البقره ۱۸۸)س

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ** (النساء:۲۹)

**د شعیب علیه السلام او دهغه د قوم په مینځ په اختلافي مسائلو کښې یوه امتیازي مسئله آزادي د ملکیت وه۔ قوم دا غوښتله چه د اقتصادیاتو او د ملکیت په باره کښې مونږ ته مکمل آزادي وي چه مونږ څرنګي غواړو هغسي بۓ ګټو او خرچ کوو، پدیکښې دِ مونږ ته مکمل حریت او آزادي وي چه نن صبا د مروجه جمهوریت دا یو بنیادي رکن دے لکه قوم ویل:**

قَالُوا يَا شُعَيْبُ أَصَلَاتُكَ تَأْمُرُكَ أَنْ نَتْرُكَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا أَوْ أَنْ نَفْعَلَ فِي أَمْوَالِنَا مَا نَشَاءُ **(هود:۸۷)**

**او شعیب علیه السلام پے پابندیاني لګولي:**

فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ **(الاعراف:۸۵)**

## د جمهوریت پینځم بنیاد د نیشنلزم دے اود نورو قومونو بیخ کندي:

**یعني قوم پرستي یو قوم بما هو قوم معیار د فضیلت ګرځول او نورو ته په ټیټو سترګو کتل د خپل قوم د ګټو دپاره نور قومونه لوټ کول فخر کنړي د خپل وطن ناکاره سړے خپل رور ګڼړي الله تعالی وائ:**

**يَاأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا** (الحجرات: ١٣)

**يعني قوميت صرف د پيژاندلو دپاره دے نه د فخر او يا د بل امتياز دپاره نو هر هغه چغه او کلمه حرام ده چه هغه اسلامي اخوت او وحدت پاره پاره کوي۔**

**لکه د پښتون او پنجابي چغه يا د سندي او بلوچ چغه او کلمه يا پښتون او فارسيوان يا تاجک او ازبک۔**

**لکه يوځل صحابه کرام وران شول او د مهاجر او انصاري چغه وشوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل دعوها فانها منتنة دا کلمه او چغه پريږدئ دا بد بوداره ده**

## د جمهوريت شپږم بنياد پارټي ايزم دے يعني ډلي او گوندونه:

**يعني کم از کم دوه پارټياني يا دري يا زياتي به وي چه په انتخابي مهم کښ د يوبل سره مقابله وي د مقتدر پارټي او مخالف پارټي مقابله وي د يوبل په راپرځولو کښ وخت تيرئ که مقتدر ډله ښه فيصله هم وکړي خو اپوزيشن يئ مخالفت کوي پدي وجه چه دا ځما د پارټئ موقف نه دے د پارټئ موقف د حق معيار وي ددے وجه نه د انتخاباتو په وخت کښ چي پارټي څوک مقرر کړي نو د هغه تائيد ضروري دے که هغه هر څومره نا اهله وي بدکاره بد معاش وي بد اخلاقه وي۔**

**حالا نکي دا انتخابي مهم په ډيرو محرماتو مشتمل وي، لکه مشري غوښتل د يوبل غيبت کول د دروغو وعدي کوّل وغيره۔**

**او هغه جهوريت نه دے چه هلته ډيري سياسي پارټئ وجود نه لري حالا نکے د تحزب او تفرق شرعاً حرام دے الله تعالى و ائي:**

**وَإِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً** (المؤمنون:٥٢، الانبياء:٩٢)

**وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا** (ال عمران:١٠٣)

**وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ** (ال عمران:١٠٥)

**مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ** (الروم:٣٢)

**حاصل دادے چه په جمهوريت کښ دين او اسلام ته شا کول دي او په هر څه کښ د غربي طاغوت تقليد کول دي۔**

**او د جمهوريت خشتِ اول او بنيادونه خراب دي**

**ے خشت اول چون نهد معمار کج تاثريا ميرود ديوار کج**

## جمهوريت محض انتظامي طريقه کار نه دے بلکه دا يوه نظريه ده

جمهوريت صرف يو انتظامي طريقه کار نه دے بلکه دا باقاعده يوه نظريه او عقيده او نظام دے او دا خبره د جمهوريت د بنيادونو او د ترکيبي اجزاء نه معلوميږي چه د جمهوريت بنيادونه کوم کوم دي او جمهوريت دکومو اجزاء نه جوړ دے۔

## د جمهوريت د علم بردارو بنيادي عقيدے

د جمهوريت اصول او بنيادي عقيدے مخکښ هم بيان شويوي خو مونږ ئے بعض بنيادي عقيدے دوباره ذکر کوو۔

۱۔ عوام هميشه صحيح فيصلي کوي۔

۲۔عوام هميشه په حقه وي۔

۳۔ د خلقوژبه د خداي تعالي نغاره ده۔

۴۔ عوام هيڅکله غلطي نه کوي۔

۵۔ د طاقت سرچشمه عوام دي۔

اوس تاسو انصاف وکړي د قرآن کريم دغه مذکوره آياتونه اوګوري او د جمهوريت دغه فاسدے عقيدے او بنيادونه اوګوري۔

ببين تفاوت راه ازکجاست تابکجا

# دريم باب:د جمهوريت مفاسد او د شرعي نصوصو سره تضاد

## د جمهوريت د اسلام سره تضادات

۱ـ په اسلام کښې قانون ساز صرف الله تعالي دے او په جمهوريت کښې اصل قانون ساز پارليمنټ دے، تردے چه قرآن هم د پارليمنټ د منظوري نه په غير قانون نه دے۔

۲ـ په اسلام کښې چه يو سړي د يو ضروري بنيادي عقيدے نه يا د يو حکم نه انکاروکړي هغه کافر دے او په جمهوريت کښې چه پارليمنټ چا ته کافر او نه واي هغه کافر نه دے لکه ملحدين۔

۳ـ په اسلام کښې مرتد واجب القتل دے په جمهوريت کښې نه دے بلکښې مذهبي آزادي ده اقليت ته به خپل حقوق ورکولي شي۔

۴ـ په اسلام کښې مسلمان او کافر عالم او جاهل، نيک عمله او بد عمله بر ابر نه دي، په جمهوريت کښې بر ابر دي او که يو ووټ ئے زيات شي نو کافر جاهل او بد عمله بهتر دي۔

۵ـ په اسلام کښې مشري د نارينه حق دے زنانه مشري نه شي کولي، په جمهوريت کښې دواړه بر ابر دي، زنانه هم هر قسم مشري کولي شي، لکه قضا، وزارت دفاع، ددولت مشري۔

۶ـ په اسلام کښې چه څوک عهده غواړي هغه نااهله دے په جمهوريت کښې د عهدے د حاصلولو دپاره به هر ممکن کوشش کوي۔

۷ـ په اسلام کښې داسي پارټي بازي حرام ده چه د مسلمانانو تقسيم او تفرق ورسره راځي۔ په جمهوريت کښې داسي پارټي بازي قانوني حق دے او د دغه پارټيانو مشر انو ته سيکورټي ورکول د رياست ذمه داري ده۔

۸ـ په اسلام کښې خپل صفت کول منع دي، په جمهوريت کښې د دے هيڅ باک نشته۔

۹ـ په اسلام کښې امير تاحيات اميروي، په جمهوريت کښې امير د محدود وخت دپاره وي۔

۱۰ـ په اسلام کښې د حق معيار قرآن او سنت دي، په جمهوريت کښې اکثريت دے۔

۱۱ـ په اسلام کښې د حزب اقتدار او حزب اختلاف تقسيم غلط دے، په جمهوريت کښې دا تقسيم ضروري دے۔

۱۲ـ په اسلام کښې هر کس و ناکس د راي اهل نه دے، په جمهوريت کښې هر هغه څوک راي ورکولي شي چه هغه شناختي کارډ لري۔

۱۳ـ په اسلام کښې په ارتداد، فسق، بدعاتو او د گمراهي په خورولو پابندي ده، په جمهوريت کښې د اظهار راي آزادي ده۔

۱۴- په اسلام کښې زنا مطلقا ناروا ده، په جمهوریت کښې په رضامندي سره روا ده.

۱۵- په اسلام کښې په جواري سود وغیره پابندي ده، په جمهوریت کښې پې هیڅ پابندي نشته.

۱۶- په اسلام کښې د هر ناروا قانون احترام حرام دے، په جمهوریت کښې د ټول ملکي قوانینو احترام لازم دے.

۱۷- په اسلام کښې تحلیل او تحریم صرف د الله تعالي حق دے، په جمهوریت کښې حلال حرام کیدے شي او حرام هم حلال کیدے شي.

۱۸- اسلام د انسانانو جوړ کړي شوي نظام نه دے او جمهوریت د کافر انو جوړ کړي شوي مادي نظام دے.

۱۹- په اسلام کښې حاکم اعلي الله تعالي دے او حقیقي او اعلي حاکمیت الله تعالي لره دے. په جمهوریت کښې حاکم اعلي عوام دے، حقیقي او اصلي حاکمیت د عوامو دے، ځکه په جمهوري نظام کښې هر څه په خلقو پوري مربوط دي.

۲۰- په اسلام کښې کافر په مسلمان حاکم کیدلے نه شي، په جمهوریت کښې هر څوک حاکم کیدیشي، مسلمان وي او که کافر هیڅ پروا نشته.

۲۱- د اسلام سیاسي نظام همیشه د نیکانو خلقو په لاس کښې وي ځکه د امت امامت عظیم امانت دے، هر څوک د دے اهل نه وي او د جمهوریت سیاسي نظام همیشه د ناکاره خلقو په لاس کښې وي ځکه د جمهوریت بنیاد اکثریت دے او اکثریت د ناکاره خلقو وي.

۲۲- اسلام په هیڅ صورت کښې باطل نه برداشت کوي قل جاء الحق وزهق الباطل ان الباطل کان زهوقا. ددے وجه نه مرتد به وجلي کیږي. په جمهوریت کښې مکمل آزادي ده که څوک کوم دین خوښوي هیڅ پابندي نشته او نه کومه سزا شته.

۲۳- د باطل ختمول د اسلام فریضه ده او د دے دپاره به جهاد جاري وي. په جمهوریت کښې د باطل سره د جهاد کولو تصور نشته بلکه جهادي فریضه ختمول غواړي.

۲۴- په اسلام کښې ایمان تقوي علم امانت عدالت صداقت ته اعتبار دے، که په یو چا کښې دا صفات وي نو دا د مشري حقدار دے او ډیر غوره دے دهغه یو لاکه کسانو نه چه په هغه کښې دا صفات نه وي او په جمهوریت کښې اکثریت له اعتبار دے چه د چا ووټونه ډیر وي که په ټګي او رشوت سره وه او که په بله دوکه سره وي هغه د مشري حقدار دے. یعني حق او ناحق معیار نه دے بلکه اکثریت او اقلیت معیار دے.

۲۵- په اسلام کښې په خپله خپل ځان منتخب کول روانه دي بر ابره خبره ده که د پارلمان دپاره وي او که د حکومت د ریاست دپاره وي، ځکه چه یو خو پدیکښې د ځان تزکیه او په نورو ځان غوره ګڼړل دي او

الله تعالي واي فلا تزکوا انفسکم (النجم:۳۲) مه پاکوي ځانونه خپل۔ دویم پدیکښ د منصب غوښتنه ده۔ رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:

انا والله لا نولي علی هذا العمل احدا سئله ولا احدا حرص علیه (مسلم، کتاب الامارة)

او په جمهوریت کښ د هر دولتي منصب غوښتل د هر چا قانوني حق دے۔

۲۶۔ په اسلام کښ شوري د خواصو او پوهه خلقو وي، په جمهوریت کښ د عوامو وي۔

۲۷۔ په اسلام کښ به ووټریعني دووټ ورکونکي تول کولي شي چه دا د ګواهي اهل دے او که نه دے او په جمهوریت کښ تول نشته چه آیا دا د ګواهي اهل دے او که نه دے بلکه صرف شمار له اعتبار دے۔

۲۸۔ په اسلام کښ بعض عبادتونه فرض او واجب دي، لکه مونځ، روژه، حج، زکوة، جهاد، دا فرض او واجب التعمیل دي۔ او په سیکولر جمهوریت کښ دا عبادتونه مباح دي، ستا خوښه ده که کوي او که نه ۔ د اقیمو الصلوٰة حکم انسان ته متوجه نه دے او په انسان د الله تعالي کوم حکم نه دے فرض۔

۲۹۔ د اسلام په معاشرتي نظام کښ بعض پابندیاني دي چه دا به خوری، دا به نه خوری، دا به اغوندی، دا به نه اغوندی، شرعي حجاب به کوي، د ده سره به تعلق او رشته ساتي او د ده سره بۀ نه ساتي۔

او په سیکولر جمهوریت کښ آزادي او اجازت دے چه هر څنکه لباس وي، خوراک، څکاک وي هر څنکه ولاړه ناسته وي د غیر دینه یا د پردو خلقو سره تعلق ساتلي شي، هیڅ قیدو بند او پابندي نشته۔

۳۰۔ د اسلام په معاشي نظام کښ چه په کتاب البیوع وغیره کښ ذکر دے، خصوصي هدایات دي چه په حلاله طریقه به روزي او روپي ګټلي کیږي، او په سیکولر ازم کښ رأسمالیه یعني سرمایه داري ده۔ پدے نظام کښ د شریعت نه آزادي ده او د روپي او اشرفي بندګي ده چه څومره ګټلي شي او په کومه طریقه او په کوم کار ئے ګټلي شي۔

### د جمهوریت د شرعي نصوصو سره تضاد:

۱۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم وائ:

من بدل دینه فاقتلوه (البخاري)

چه چا خپل دین بدل کړو هغه قتل کړئ او په جمهوریت کښ قتل نشته بلکه هر چا ته مذهبي آذادي ده۔

۲۔ د قرآن او حدیث په ډیرو نصوصو کښ د امر با المعروف او نهي عن المنکر فریضه ذکر شوي لکه تأمرون با المعروف وتنهون عن المنکر وغیره۔

لیکن په جمهوریت کښ امر بالمعروف او نهي عن المنکر هیڅ ګنجائش نشته او په جمهوریت کښ معروف او منکر شخصي اموردي او د چا په شخصي امورو کښ هیچا ته د مداخلت اجازت نشته که څوک زناء کوي که هم جنس پرستي کوي سړي د سړي سره او ښځه د ښځي سره واده کولی شي د مغربي ملکونو په قوانینو کښ ددے ټولو کارونو اجازت دے۔

۳۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم واي:

اخرجوا الیهود والمشرکین من جزیره العرب (البخاري)

مشرکین او یهود او نصاري د جزیرة العرب نه اوباسي۔ پدے وجه عمر رضي الله عنه په خپل خلافت کښ ټول یهود او نصاري د جزیرة العرب نه ایستلي وو۔ لکن په جمهوریت کښ د دوي ویستل نشته ځکه په جمهوریت کښ هر چا ته د اسیدو په باره کښ د آزادئ حق دے۔ که یو کافر په مکه یا مدینه کښ اوسیږي څوک ئے نشي منع کولي۔ که څوک د یهودو یا نصاري وو یا د بل کافر د جزیرة العرب نه د ویستلو مطالبه کوي نو دا مجرم دے، د دے دقتل جواز پیدا کیږي، ځکه د جمهوریت مخالفت ئے اوکړو۔

۴۔ قرآن وائ چه د هر طاغوت او طاغوتي نظام نه به انکار کوي:

وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ (النساء:۶۰)

او الله تعالی وائ:

فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى (البقرة:۶۰)

او الله تعالی وای:

وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ (النحل:۳۶)

او په جهوریت او مجوده حکومتونو کښ د آئین دپاسدارئ او احترام حلف پورته کولي شي۔

۵۔ الله تعالی واي:

وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا (النساء:۱۴۱)

دا ایت دلیل دے پدي خبره چه کافر په مسلمانانو حکمراني او مشري نه شي کولے بلکه د مسلمانانو مشر به مسلمان وي او په جمهوریت کښ هر قسم کافر که یهودي نصراني وي او که بل وي په مسلمانانو حکمراني کول شي۔

۶۔ الله تعالی وائ:

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ (النساء:۳۴)

یعني مشري د نارینه حق دے زنانه حکمراني نه شي کولے بلکه د مسلمانانو مشر او حکمران به نارینه وي او رسول الله صلی الله علیه وسلم وائ:

لن یفلح قوم ولوا امرهم امرأة (البخاري)

هغه قوم نه شي کامیابیدے چه زنانه یے مشري کوي۔

او په جمهوریت کښ زنانه مشري کولے شي نارینه او زنانه دواړه برابر دي لکه د افغانستان د اساسي قانون په ۳۳ ماده کښ لیکي چه د افغانستان خوینده په انتخاباتو کښ د حصے اخستلو او د منتخب کیدو حق لري۔

۷۔ الله تعالی وائ:

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ (الانفال:۳۹)

د کفارو سره وجنګیږئ تردي چه فتنه پاتي نه شي او دین پوره پوره د الله تعالی دپاره شي۔

او رسول الله صلی الله علیه وسلم وائ:

امرت ان اقاتل الناس حتی یقولوا لا اله الا الله (الحدیث)

ددي نصوصو نه معلومیږي چه د اسلام د ټولو نه لوئ خصوصیت دادے چه اسلام په خپله مقابله کښ د بل دین او نظریے برتري نه مني او اسلام د ټولو نه اعلی دین دے خپل تابعدارو ته حکم کوي چه د هغه وخته پوري د کفارو سره وجنګیږئ چه د کفر فتنة ختمه شي او د الله تعالی کلمه د ټولو نه په اوچت حیثیت اومنلي شي۔

لکن جمهوریت ټولو ادیانو ته په یو نظر ګوري په کفر او اسلام کښ د فرق قائل نه دے ددے وجه نه په جمهوریت کښ مسلمان او کافر ته یو شان انتخابي حقوق حاصل دي او کافر د کفر دوجے نه د حکمرانئ نه نه محرومه کوي۔

بلکه په جمهوریت کښ دا خبره عملاً په نظر راځي چه مسلمان د مسلمانئ د وجے نه د حکمرانئ نه محرومه کولے شي او کافر ته په مسلمان فوقیت ورکولے شي او د اسلام او د کفر په مینځ فرق نه کول لوئ کفر دے۔

۸۔ الله تعالی وای:

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (الزمر:۹)

أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا لَا يَسْتَوُونَ (سجدة:۱۸)

أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ (القلم: ٣٥)

أَفَمَنْ يَعْلَمُ أَنَّمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمَى (الرعد:١٩)

أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِنْهَا (الانعام:١٢٢)

قُلْ لَا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ (المائدة:١٠٠)

**حاصل ددي اياتونو دادے چه عالم او جاهل مؤمن او فاسق مسلمان او مجرم نه دے برابر او په جمهوريت او انتخاباتو کښ دا ټول يو شان دي۔**

**۹۔ الله تعالی وای:**

وَاللَّهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ (الرعد: ٤١)

**يعني د الله تعالی د فيصلو او قانون د رد کولو هيچا ته اختيار نشته او په جمهوري نظام کښ پارلمينټ ته دا حق حاصل دے او الله تعالی وای:**

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ (الاحزاب: ٣٦)

**يعني مؤمنانو له د الله تعالی په فيصلو کښ خپل اختيار نشته خپله خوښه به نه کوي او په جمهوري نظام کښ پارلميټ ته اختيار دے که د الله تعالی فيصله قبلوي او که رد کوي۔**

**او الله تعالی وای:**

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ (الحجرات:١)

**يعني د الله او رسول نه ځانونه مه مشران کوئ د الله تعالی او د رسول الله د حکم په مقابله کښ د هيچا درائ له اعتبار نشته په جمهوريت کښ د عوامو رائ له اعتبار دے۔**

**۱۰۔ رسول الله صلی الله عليه وسلم عبد الرحمن بن سمرة رضي الله عنه ته وای:**

لا تسئل الامارة فانك ان او تيتها عن مسئلة وُكِلت اليها وان او تيتها من غير مسئلة اعنت عليها

(البخاري كتاب الايمان)

**د امير د جوړيدو طلب مه کوه ځکه که ستا په مطالبه تا ته امارت درکړے شي نو ته به ديته حواله کړے شي او که ستا دمطالبے نه په غير تا ته امارت درکړے شي نو ستا مدد به کولے شي۔**

**او ابو موسی اشعري رضي الله عنه وائ چه زمونږ د قبيلے دوه کسانو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته اويل چه مونږ ته په حکومت کښ څه منصب راکړے شي، رسول الله صلی الله عليه وسلم اويل:**

انا لا نولي هذا من سئله ولا من حرص عليه (البخاري)

مونږ داسي سړي ته منصب نه ورکوو چه هغه ددي طلب کوي یا پدي پسي حرص کوي۔

ددي احادیثو نه ښه په صراحت سره دا خبره واضحه کیږي چه امارت په خپله غوښتل ناروا دي او چه څوک ددي طلب کوي هغه په حقیقت کښ ددي منصب اهل نه دے او مولانا تقي صاحب په اسلام او سیاسي نظریات ص ۱۹۹ کښ ددي وجه دا بیان کړے چه حکمراني یو مسئولیت دے حق نه دے نو ددینه دا اصول را اوزي چه ددي طلب کول نا جائز دي۔

بهر حال ددي احادیثو په وجه امارت حکمراني منصب ووټ غوښتل ناروا دي او چه څوک عُهده غواړي هغه نا اهله دے او په جمهوریت کښ روا دي او چه څوک عُهده غواړي هغه نا اهله نه دے۔

۱۱۔ الله تعالي واي:

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ (الانعام:۵۷، یوسف:۴۰)

أَلَا لَهُ الْحُكْمُ (الانعام:۶۲)

یعني حاکمیت اعلي صرف الله تعالي لره دے او په لادیني جمهوریتونو کښ د اقتدار او حاکمیت سرچشمه عوام دي، لهذا عوام د کثرت راي په وجه د الله تعالي د حکمونو خلاف فیصله کولي شي۔

۱۲۔ الله تعالي واي:

وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ (المائدة:۴۴)

او الله تعالي واي:

فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ (المائدة:۴۸)

د دینه معلومه شوه چه د قرآن او سنت خلاف به هیڅ قانون نه منظوریږي او نه به باقي پریښودلي کیږي او نه به د قرآن او سنت خلاف کوم انتظامي حکم کولي شي او په جمهوریت کښ د کثرة الرأي په بنیاد د قرآن او سنت خلاف قانون منظوریږي۔

۱۳۔ الله تعالي واي:

الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ (الحج:۴۱)

یعني د اسلامي حکومت په بنیادي مقصدونو کښ یوه خبره دا ده چه هغه به د مسلمانانو دپاره د عبادتونو د اداء کولو انتظام کوي، په نیکو به خلق آماده کوي، د بدو کارونو نه به خلق منع کوي۔ او په

جمهوریت کښ دا د خلقو شخصي کارونه دي، پدیکښ د حکومت یا د بل چا د مداخلت هیڅ حق نشته.

۱۴. الله تعالی واي:

**وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ** (البقرة:۲۵۱)

یعني د اسلامي حکومت او مسلمانانو دا فرض دي چه هغه ټولې داخلي او خارجي فتنې او فساد ختم کړي او په جمهوریت کښ د فتنو نه دفاع او د فتنو تحفظ کیږي.

۱۵. الله تعالی وايَ:

**إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ** (النساء:۵۸)

د حکومت ټولې عهدې او منصبونه دغه رنګي مالونه د حکمرانانو په لاس کښ امانت دې. د دې وجه نه د حکومت دا زمواري ده چه دا امانتونه د دې مستحقینو ته ورسوي او په جمهوریت کښ د اهلیت او مستحقینو هیڅ لحاظ نشته.

۱۶. الله تعالی واي:

**إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ** (الحجرات:۱۳)

یعني مدار د کرامت په تقوي دې.

او واي:

**إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ** (الحجرات:۱۰)

یعني مدار د اخوت په ایمان دې او په جمهوریت کښ مدار د کرامت او اخوت په قومیت دې.

۱۷. الله تعالی واي:

**لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ** (البقرة:۱۲۴)

او الله تعالی واي:

**إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ** (البقرة:۲۴۷)

د دینه معلومه شو چه د مملکت سربراه به مسلمان وي، رشتیني به وي او په علمي او عملي صلاحیتونو به متصف وي. او په جمهوریت کښ د مملکت سربراه کافر، منافق، جاهل او دروغجن هم کیدې شي.

۱۸. الله تعالی واي:

**وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا** (النساء:۱۴۱)

**يعني كافر به مسلمان مشري نه شي كولي او په جمهوريت كښ كولي شي، ځكه مذهب شخصي معامله ده، د حكومت او مشري سره ئے هيڅ تعلق نشته۔**

**۱۹۔ الله تعالي واي:**

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا** (ال عمران:۱۱۸)

**د دينه معلومه شوه چه غير مسلم ته به په مملكت كښ څه داسي كليدي عهده نه وركولي كيږي چه هغه د مسلمانانو د رازونو سره تعلق لري او په جمهوريت كښ پدے هيڅ پابندي نشته۔**

**۲۰۔ الله تعالي واي:**

**لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ** (الانعام:۱۱۵)

**د دينه معلومه شوه چه د دستور هغه خبري چه هغه براه راست د قرآن او سنت نه اخستلي شويوي هيڅ كله په هيڅ طريقه پكښ تبديلي نه شي كيدے۔**

**او په جمهوريت كښ د راي ګانو د ډيروالي په وجه تبديلي كيدلي شي۔**

**۲۱۔ الله تعالي واي:**

**وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا** (ال عمران:۱۰۳)

**او ټول مضبوط ونيسي د الله تعالي رسي او پارټي بازي مكوي۔**

**او الله تعالي واي:**

**إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ** (الحجرات:۱۰)

**بے شكه مسلمانان رونړه رونړه دي۔**

**او الله تعالي واي:**

**وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ** (الانفال:۴۶)

**او په خپل مينځ كښ لانجي مكوي پس تاسو به بزدله شي او ستاسو رعب به لاړ شي۔**

**دغه رنګي:**

**يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا** (الحجرات:۱۳)

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ (ال عمران:۱۰۵)

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ (الانعام:۱۵۹)

ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ (حم سجده:۳۴)

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ (ال عمران:۱۵۹)

د قرآن کريم د دے تعليماتو نه ظاهريږي چه دين اسلام د الفت، اخوت، د صلح او دوستي دين دے، د خپل مينځ دشمنياني ختموي۔ او د دے ے مثاله نموني دي۔

بل طرف ته جمهوريت وحدت او اخوت ټوټي ټوټي کوي، رور د رور سره جنګوي۔

## حزب الله او حزب الشيطان

البته په اسلام کښ د ابتداء نه د آدم عليه السلام د وخت نه دوه پارټي دي، حزب الله او حزب الشيطان۔ او دا دواړه د يو بل سره برسر پيکار دي، لکه الله تعالي واي:

وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ (البقرة:۳۶)

او اويل مونږ چه کوز شي (په داسي حال کښ) چه تاسو به د يو بل دشمنان ئيوي۔ او الله تعالي واي:

هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ (الحج:۱۹)

خلاصه دا ده چه اسلام مسلمانانو ته په خپل مينځ کښ د وحدت او اخوت حکم کوي او د ډله بازي، ګروه بندي د نظريه نه ئے منع کوي او بيا دغه متحده محاذ ته د حزب الله نوم ورکوي۔ او بيا په هره زمانه او هر مکان او هر محاذ کښ ورته د حزب الشيطان د مقابلے حکم کوي۔

بل طرف ته د دين جمهوريت بنياد پدے اصول دے چه هر حزب اقتدار بر ابره خبره ده چه هغه سو فيصد متشرع اسلامي او په حقيقي طور په قرآن او سنت جوړ شوي وي۔ د دے خلاف به اپوزيشن جوړولي شي چه هغه به په قرآن او سنت مبني آئين او د منصوصي احکامو او نظام خلاف قولا او عملا سرګرم عمل وي۔

او د يو يو حکم خلاف به د حقارت آميز بيانونو په اسمبلي، سينيټ نشرو اشاعت، جلسو جلوسونو کښ اجازه وي، بلکه دا کار به د هغوي کمال ګڼړلي شي۔

او چه کله د مسلمانانو دا حالت وي چه هغه د قرآن او سنت خلاف د جمهوريت د بقاء دپاره ښکاره ميدان د مقابلے ته را اوزي او د اسلام بيخکندي کوي۔ نو د غير دينو نه به څه ګيله وي۔

چون کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلماني

۲۲ـ الله تعالی واي:

وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ (المائدة:۲)

او امداد کوي د يو بل سره په نيکي او پرهيزګاري کښې.

او الله تعالی واي:

وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا (النساء:۱۰۵)

او د خيانت کونکو د طرف نه جګړه کونکي مه کيږئ.

د دينه معلومه شوه چه د يو بل سره د تعاون او همکاري بنياد تقوي ده، د نيکي په هر کار کښې به يو مسلمان د بل دپاره مدد ګار جوړيږي، که هغه د خپلي پارټي نه وي او که د بلي پارټي نه وي.

د دے برعکس په جمهوريت کښې بنياد د تعاون او همکاري خپله پارټي ده، د خپلي پارټي او دهغے د منشور او لائحه عمل حمايت او تائيد به کوي، بر ابره خبره ده که هغه په حقه ده او که په باطله. ځکه د قرآن او سنت د صريح نصوصو مخالفت وي او که مو افقت وي، او د مخالف پارټي مخالفت به کوي، بر ابره خبره ده که هغه په حقه وه او که په باطله وي. او که داسي نه کوي نو تا مجرم ګرځوي، رکنيت دِ ختموي، بلکه ممبري او وزارت ئے هم ختموي.

۲۳ـ الله تعالی واي:

اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ (الانعام:۱۰۶)

يعني د قرآن او سنت تابعداري وکړه او الله تعالی واي:

قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ (يونس:۱۵)

او وايه نشته مالره چه ځه دخپل طرف نه پدے کتاب کښې ځه تغير تبديل وکړم ځه صرف د وحي تابعداري کوم.

د دينه معلومه شوه چه معيار د حق او باطل قرآن او سنت دے او هيڅوک د الله تعالی په کتاب کښې تغير تبديل نشي کولي او ښه او بد، روا او ناروا متعين دي.

بل طرف ته په دين جمهوريت کښ معيار د حل او حرمت، د حق او باطل، د جواز او عدم جواز، د ښه او د بد دپاره عوام دي، او د عوامو طاقت لامحدود دے او ښه او بد متعين نه دي، بلکې ښه او بد، روا او ناروا د اکثريت د نفساني خواهشاتو تابع دي، پديکښ تغير او تبديلي کيدے شي۔

او په جمهوري ملکونو کښ د دے ډير مثالونه دي، مثلا په امريکه کښ پارليمنټ يو ځل شراب بند کړه، لګه زمانه روستو ئے بيا آزاد کړل۔ په ډنمارک کښ د هلکانو سره د نکاح باقاعده قانون جوړ شو۔ په لندن کښ لواطت قانونا جائز کړو، ځکه دا د اکثريت راي وه۔ په لندن کښ يو انګريز د خپلي سپي سره په ډيره ګڼړګونړه کښ نکاح وکړه او په پاکستان کښ يوے زنانه مطالبه وکړه چه د يوے زنانه دپاره دِ د څلور سړو سره نکاح قانونا جائز شي، خو د اکثريت راي د دينه خلاف وه۔

۲۴۔ الله تعالي واي:

وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (الجاثية:۱۸)

او تابعداري مکوه د خواهشاتو د هغه کسانو چه نه پوهيږي۔

د دے آيت نه معلومه شوه چه څوک بے علمه وي، جاهلان وي نو د هغوي راي به رد کولي شي او که جاهلان هره فيصله وکړي، هغه خواهشات دي او خود غرضي او نفس پرستي ده او د داسي راي فيصلے او ووټ قبلول او منل هم جهالت او خود غرضی ده۔

رقم بر خود به ناداني کشيدي چون نادان را بصحبت برگزيدي

بل طرف ته د جمهوريت په اصولو کښ يو اصل بالغ رائے دهي ده، يعني چه يو سړي يا ښځه بلوغ ته رسيدلي وي نو د هغه راي معتبره ده، اګر که هغه لوي جاهل او بے علمه وي، نو قرآن واي چه د جاهلانو راي معتبر نه ده او جمهوريت واي چه معتبر ده۔

او د جمهوريت د دے باطل اصل مطابق د يو جاهل او د يو ماهر فيصله او سوچ يو شان دے، ځکه دواړه بالغان وي۔

دغه رنګي د يو غل او ډاکو او د يو قاضي القضاة فيصله بر ابر ده۔ دغه رنګي د يو ډم او د ملک د صدر او وزير اعظم فيصله بر ابر ده او د يو شر ابي زاني سود خور جوارګر او د ملک د مفتي اعظم فيصله يو شان قدر او قيمت لري۔ او د يو اجرتي قاتل او جر ائم پيشه فيصله او د يو مذهبي او روحاني امام اعظم فيصله يو شان بر ابر وزن لري، ځکه دا ټول يو شان بالغان دي۔

جمہوریت ایک طرز حکومت ہے کہ جس میں بندوں کو گنا کرتے ھیں تولا نہیں کرتے

گریز از طرز جمہوری غلام پخته کارے شو که از مغز دو صد خر فکر انسان نمی آید

بهرحال دوي واي چه هرکس في کس فيصله کولي شي، ووټ او راي ورکولي شي، صرف بلوغ شرط دے، د بلوغ نه علاوه د علم، فضل، سعادت، مهارت، هنر، تقوي، شرافت، خدا پرستي هيڅ ضرورت نشته۔

هزارخنده کفرست بر اين مسلماني

توصيه

د ټولو علماء او حقيقي مسلمانانو دا فرض دي چه د جمهوريت نه خپل لمن محفوط کړي او د دے باطل نظريے ترديد وکړي او د اسلام د نفاذ دپاره جهاد شروع کړي او د رسول الله صلي الله عليه وسلم د درويشت کالو زندګي خپله مشعل راه اوګرځي۔

تا تهه و بالا نه ګردو اين نظام　　　دانش و تهذيب دين سودائے خام

## د جمهوري او اسلامي طريقے د بعض تضاداتو تفصيل

### د اسمبلي د ممبرانو په انتخاب کښ د شرعي طريقي او جمهوري طريقي د يو بل تضاد

د پارليمنټ او د اسمبلي د ممبرانو نه په شريعت کښ مختلف تعبيرات کيږي، لکه په قرآن کښ داسي تعبيرات دي ، اولوالامر، ملأ القوم، النقباء۔ په احاديثو کښ ورته العرفاء واي۔ فقهاء کرام ورته اهل الحل والعقد واي، علامه ماوردي رحمه الله ورته اهل الاختيار واي، ابو يعلي رحمه الله ورته اهل الاجتهاد واي، امام بزدوي رحمه الله ورته اهل الراي والتدبير واي۔ او بعض اسلامي ملکونو کښ ورته مجلس وکلاء او مجلس نمائندګان هم واي۔

هر کله چه اسلام يو شورائي نظام حکومت دے لکن مشوره د ټول ملت نه نه اخستلي کيږي بلکه مشوره د ملت داعتمادي خلقو نه اخستلي کيږي او د هغوي فيصله د ټول ملت فيصله ګڼړلي کيږي، ځکه هغه عزتمند او مخوريز خلق وي، مشران وي، علماء وي، نيکان وي او دښائسته صفاتو خاوندان وي نو د ملت پے اعتماد وي چه هغويته اولوالامر، ملأ القوم، النقباء، العرفاء او اهل الحل والعقد، ارکان شوري نمائندګان قوم، وکيلان قوم، ممبران اسمبلي ويلي کيږي۔ دا ټول اصطلاحات په عرف او شريعت تقريبا تقريبا په يوه معني او مفهوم کښ استعماليږي، دا د قوم او ملت نمائندګي کوي۔

بيا د داسي مشرانو په انتخاب کښ دوه طريقي دي، يوه جمهوري طريقه ده او دويمه شرعي طريقه ده۔ پدے دواړو طريقو کښ د يو بل سره ډير تضاد دي۔

### جمهوري طريقه

په جمهوري طريقه کښ د دے مشرانو په انتخاب کښ د دين او مذهب د اخلاقو او کردار او د ديانت امانت اهليت هيڅ قسم لحاظ نشته، بلکه د دوي په انتخاب کښ د انتخاب کونکو د سرونو او کثرت لحاظ کيږي۔ مزيد برآن د دوي انتخاب هم د بيلټ پيپر (دراي کاغذ) په ذريعه کيږي۔ اګر چه په دغه

بیلټ پیپر کښې هر څومره جعلسازي او ضمیر فروشي هم وي. پدے طریقه هر کس و ناکس هر کدو کریلا منتخب کیدے شي اګر چه د قوم بیره غرقوي او بیا هغه د قوم حقیقي نمائنده او مشروي.

## شرعي طریقه

په شرعي طریقه کښې دغه اراکین شوري او مشران اهل الحل والعقد وي بلکه د اسلامي مملکت دپاره روح روان وي او په دین اسلام کښې دا ډیره درنه فریضه، زمواري او امانت دے.

پدے وجه د دے د اهلیت دپاره ډیر مضبوط شرطونه لازمي دي که دغه شرطونه په آقا او مولي کښې موجود نه وي او په آزاد شده غلام کښې موجود وي نو آقا د دغه منصب اهل نه دے او آزاد شده غلام د دغه منصب اهل دے. بیا دغه شرطونه چا ډیر ذکر کړي او چا کم ذکر کړي خو بنیادي شرطونه د امیدوار او د مشر د انتخاب دپاره دري دي:

۱. ایمان

۲. عدالت

۳. علم

باقي شرطونه د دے تفصیل او تشریح ده.

## د اراکین شوري او ممبرانو دپاره شرطونه

### اول شرط: ایمان او یقین

یعني د دین اسلام په قطعي او ضروري احکامو بئ مضبوط ایمان او یقین وي ایمان بئ متزلزل نه وي.

دا ایمان او یقین بئ وي چه قرآن کریم کامل او مکمل او غیر محرف دے او دا ایمان او یقین بئ وي چه اسلامي نظام د هر دور او زماني دپاره بر ابر او فټ دے او باعث د فلاح او کامیابي دے. د ختم نبوت یقین بئ وي او د ده په افعالو، اقوالو او تحریر او تقریر کښې به داسي خبره نه وي چه هغه د ایمان سره منافي وي او د کفر او ارتداد سبب وي. په جمهوري طریقه کښې د داسي ایمان او یقین هیڅ لحاظ نشته.

### دویم شرط: عدل او تقوي

د شوري رکن به عادل او متقي وي یعني د مونځ روژے حج زکوة او د نورو اسلامي فر ائضو او اعمالو به پابند وي او د ټولو کبیره ګناهونو نه به ځان ساتي. په جمهوري طریقه کښې د داسي تقوي هیڅ ضرورت نشته.

**دريم شرط: علم**

**د شوري ركن به عالم وي، ضروري علم به ورسره وي كچري جامعه علم ورسره نه وو لكه نن صبا په امت كښ د داسي اركان شوري وجود ناممكن دے چه د هغه سره علم جامعه مانعه وي۔ نو د دے دپاره متبادل او آسان صورت دا دے چه د ملک د ضروري شعبو دپاره بيلا بيل اركان شوري متعين كړي او په هره شعبه كښ داسي ماهرين مقرر كړي چه هغه د دغه شعبي متعلقه كارونو او مسائلو د حل دپاره استنباط كولي شي۔ دهرے شعبي متعلق د غه شعبي دپاره د منتخب شوي اركانو راي معتبر كړي شي۔ په قرآن كريم كښ ديته اشاره شوي چه واذا جائكم امر من الامن (النساء:۸۳)**

**او چه كله د دوي خوا ته يو خبر (يا مسئله) د امن او بد امني راشي نو هغه مشوره كوي او كچري دوي دغه خبره رسول الله صلي الله عليه وسلم يا د خپل جماعت ذموارانو ته پيش كړي نو ماهرينو او محققينو به د دے تحقيق كړے وے او دا بۀ حل كړيوے۔**

**د اهل الحل والعقد تعريف**

**په الموسوعة الفقهية الكويتية ص:۱۱۵ جز:۷ كښ داسي تعريف كوي:**

يطلق لفظ اهل الحل والعقد علي اهل الشوكة من العلماء والرؤساء ووجوه الناس الذين يحصل بهم مقصود الولاية وهو القدرة والتمكين وهو ماخوذ من حل الامور وعقدها ۔

**د اهل الحل والعقد د لفظ اطلاق كيږي په خاوندانو د قوت چه هغه علماء مشران او مخوريز خلق دي۔ هغه خلق چه په هغوي د حكومت مقصد حاصليږي چه هغه طاقت او ځاي حاصلول دي او دا ماخوذ دے د كارونو د پر انستلو او تړلو نه۔**

**بيا واي چه د تاريخي و اقعاتو نه داسي معلوميږي چه په اهل الشوري كښ امتيازي صفت علم دے او په اهل الحل والعقد كښ امتيازي صفت قدرت دے۔**

**فائده:**

**ځومره علماء چه د اهل الحل والعقد تعريفونه كړي نو دا خبره پكښ ضروري دي چه هغه علماء وي، مشران وي او اعتمادي خلق وي۔**

**امام ماوردي رحمه الله او امام ابو يعلي رحمه الله د اراكين شوري او ممبرانو دپاره دري شرطونه ذكر كوي۔ هغه واي:**

فاما اهل الاختيار فالشروط المعتبرة فيهم ثلاثة احدها العدالة الجامعة لشروطها والثاني العلم الذي يتوصل به الي معرفة من يستحق الامامة علي الشروط المعتبرة فيها والثالث الراي والحكمة المؤديان

الي اختيار من هو للامامة اصلح وبتدبير المصالح اقوم واعرف (الاحكام اسلطانيه للماوردي ص:۱۸، الاحكام السلطانيه د ابو يعلي رحمهم الله ص:۱۹)

هر چه اهل الاختيار دي (چه ديته اهل الحل والعقد واي زمونږ په زمانه کښ ورته د اسمبلي ممبران واي) د دوي دپاره دري شرطونه دي يو عدالت دے (چه فرائض اداء کوي او د گناهونو نه ځان ساتي) دويم شرط علم دے هغه علم چه د هغه په ذريعه د امامت حقدار او د امامت هغه شرطونه پيجني چه کوم د امامت دپاره ضروري دي۔ دريم شرط داسي راي او حکمت دے (عقل دے) چه دهغې په ذريعه دهغه چا ترجيح کولي شي چه هغه د امامت دپاره ډير صلاحيت لري او د فائدو په تدبيره ښه برابر او پوهه وي۔

په مروجه جمهوري نظام کښ دا يو شرط هم ضروري نه دے۔

د مروجه اسمبلي ممبران اولو الامر او اهل الحل والعقد نه دي او نه هغه څوک امام او حاکم دے چه دوي ئے انتخاب وکړي۔

د مخکښ تفصيل نه معلومه شوه چه په مروجه جمهوري نظام کښ کوم اراکين پارليمنټ او د اسمبلي ممبران وي نو هغه نه اولو الامر او اهل الحل والعقد دي او نه هغه څوک شرعي حاکم او اولو الامر دے چه دوي ئے انتخاب وکړي او دوي ځکه اولوالامر نه دي چه په دوي کښ هغه شرطونه نشته چه کوم علماء کرامو د اولو الامر دپاره ضروري گرځولي او په انتفا، دشرط سره انتفاء د مشروط راځي۔ هرکله چه دوي اهل احل والعقد نه شو نو د دوي انتخاب هم صحيح نه دي که دوي يو څوک د ملک دپاره صدر او وزير اعظم مقرر کړي نو هغه شرعي امير حاکم او اولو الام نه دے لکه چه يو سړي ېے اودسه مونځ وکړي نو مونځ نه کيږي او نه د ده د ذمه نه فرض ساقطيږي۔

بله وجه دا ده چه په مروجه جمهوري نظام کښ د اسمبلي په ارکانو کښ زنانه هم وي او زنانو ته دا حق نشته چه هغه د امام او حاکم انتخاب وکړي، لکه علامه جويني رحمه الله واي:

ان النسوة لا مدخل لهن في تخيير الامام وعقد الامامة (غياث الامم)

د زنانو دپاره د امام په خوښولو کښ او د امامت په تړلو کښ هيڅ حق نشته او نه د زنانو دپاره دا حق شته چه هغه د اسمبلي ممبره شي ځکه د اسمبلي ممبرانو ته د حکمران په انتخاب کښ مراجعه کيږي او د حکمران انتخاب کوي او زنانه دا انتخاب نشي کولي لکه مخکښ ذکر شو او نه په ټول اسلامي تاريخ کښ زنانو ته د حکمران په انتخاب کښ مراجعه شوي لکه علامه جويني رحمه الله واي **فانهن ما روجعن قط** (غياث الامم) زنانو ته هيڅکله (په اسلامي تاريخ کښ ) مراجعه نه ده شوي۔

## په مروجه طريقه زنانه رکن شوري جوړيدل يا ووټ ورکول او پديکښ د جمهوري طريقي او اسلامي طريقي د يو بل سره تضاد

### د مروجه طريقي وضاحت

اول مونږ د مروجه طريقي وضاحت کوو چه په دے مروجه طريقه کښ څومره بے حسابه منکرات دي نو نن صبا د هيچا نه د اپټه نه ده چه په مروجه طريقه کښ ډير زيات منکرات دي۔ مثلا په مروجه اليکشن کښ بدمعاشي، ګډوډي د يو بل ذليله کول د يو بل خلاف نعره بازي، د پوليسو لاټي چارج، فائرنګ، قتل و قتال، ډهول او باجي وهل، رقص او ګډا کول، د هلکانو او جينکو لاس پړقول، ګاني سندري وهل، تصويرونه ويستل او د منصوبي تحت د پړق پړوق لباس اغوستل، د حسن نمائش کول او پدے باندے ووټران ځان ته کهينچ کول۔ دا ټول منکرات په اليکشن کښ معمول جوړ شوي۔

د بے حيائي دا حالت دے چه روزانه په اخبارونو کښ په غټو سرخيانو سره دا خبرونه چهاپ کيږي چه د فلاني غټ شخصيت بي بي يا لور او خور په زبردستي سره اغوا کړي شوه او څو کسانو دهغے سره په اجتماعي طور بدکاري وکړه او د فلاني ښار په بلدياتي انتخاباتو کښ اميدواره زنانه اغواء کړي شوه او د هغے بے عزتي وکړي شوه۔ دا ټول و اقعات د انتخاباتو په ورځو کښ عملا مخي ته راځي۔

د هر کور کلي او محلي ووټران (ووټ غورزونکي) نارينه او زنانه په يوه کوڅه يو سړک او بازار کښ تګ راتګ کوي او ذهني شوق او اشتهاء يو بل ته ډير نزدي شي۔

شوق در هر دل که باشد رهبرے درکار نيست

سيل بے رهبر بدريا ميرساند خويش را

پدے وجه د جينکو حيا سوزو اقعات مخي ته راځي او د سرکاري څوکيدارو په ذريعه هم د دے سد باب ممکن نه دے ځکه پيشو د مږو څوکيداري نشي کولي۔ او د دے خو داسي مثال دے چه خرد وربشو رشے ته اوتړئ او ورته او ايه چه دا مه خورا نو خر خامخا هغه خوري۔ روزمره چه په ميډيا کښ د زنا بالجبر او قتل و غارت کوم و اقعات مخي ته راځي نو اکثر پکښ سرکاري حفاظتي عمله شريک وي۔

بيا د اسمبلي او سينټ په اجلاسونو کښ چه کومِ منتخب زنانه وي نو اکثر بربنډ سر وي او ميک اپ ئے کړيوي۔

چه کله يو مسلمان رکن شوري او عالم دين د زنانو په باره کښ بعض امتيازي احکام بيانوي چه په هغے سره د بے حيائي دروازي بنديږي مثلا:

۱۔ د زناء متعلق د کوړو او يا سنګسارولو حکم

۲۔ د شرعي پردے حکم

۳- په میراث کښ د زنانو دنیمې حصې بیان

۴- یا د زناء د اړو او د زنانو د ګډا او سرودنو متعلق د شریعت دپابندي احکام بیانول

۵- د زنانو ګواهي د نارینو د ګواهي په نیمه مقررکول او د دے متعلق قر آني آیاتونه بیانول

۶- یا د ملک په اندرون او یا د ملک په بیرون کښ دزنانو لوبے کول او د نارینو تماشه کول په دي د اسلامي پابندي خبره کول۔

۷- یا د نارینو او د زنانو د مخلوط تعلیم په باره کښ د پابندي خبره کول۔

مقصد دا چه د مذکوره حکمونو متعلق چه هر څوک د الله او د رسول خبره کوي یا د ننګ او د غیرت کومه خبره کولي شي نو دغه ممبران زنانه لمبه او غصه شي، ودریږي او چغي شروع کړي او کله یو خوا بل خوا په غصي سره ګوري او د خورو ورو زلفو سره سر ته جتکي ورکي او د رقص او ګډا کیفیت پیدا کړي او بیا د باران په شان خبري شروع کړي چه دا د ملیانو دقیانوسي او ظالمانه قو انین دي او دا د نارینه او زنانو د مساوات خلاف غیر منصفانه قو انین دي، مونږ پدے ملک کښ ملا ازم نه شو برداشت کولي۔ د دے ملیانو د زنانو د مخالفت نه په غیر څه کار نشته او نه ورته د زنانو د مخالفت نه په غیر بله فتوي ورزي۔

داسي خبري کوي چه ګویه دغه حکمونه بالکل د الله او د رسول خبره نه وي بلکه دا د ملیانو د تنګ نظري په نتیجه کښ د ملیانو خود ساخته حکمونه دي۔ او بیا دغه زنانه د ملا ازم په بهانه په ټوله دنیا کښ د ذر ائع ابلاغ او میډیا په ذریعه د قرآن او حدیث خلاف توهین آمیز او نفرت انګیز شور مشور راپورته کړي او واي چه مونږ د ملا ازم خلاف یو او په حقیقیت کښ دا د قرآن او حدیث خلاف وي۔ په ملک کښ د الله او د رسول د قر آني پابندونه باغي زنانه جلسے جلوسونه او مظاهري شروع کړي چه ملیانو د زنانو د حقوقو د غصب کولو اراده کړي۔

## اسلامي طریقه

د دے ځاي پوري مونږ د مروجه طریقي وضاحت وکړو اوس اصل مقصد ذکرکوو چه په مروجه طریقه په اسلام او شریعت کښ زنانه رکن شوري جوړیدي شي او که نه او ووټ ورکولي شي او که نه ۔

نو په اسلام او شریعت کښ هیڅکله د زنانو دپاره د مروجه طریقي د ووټ ورکولو یا د رکن شوري د جوړیدو اجازت او جواز نشته۔ ځکه مخکښ مونږ دا وضاحت وکړو چه په مروجه طریقه کښ بے شماره منکرات دي او دا هغه حقائق او منکرات وو چه پدیکښ مبالغه نشته۔ بلکه د دینه پکښ علاوه نور هم ډیر منکرات شته۔

نو آیا د دے هر څه باوجود یو باعمله او غیرتي عالم یا یو غیرتي مسلمان د زنانو د ووټ ورکولو یا د رکنیت شوري د جواز فتوي ورکولي شي۔ بلکه د دے علاج دا آیت دے چه الله تعالي واي:

وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ (الاحزاب:۳۳)

په خپلو کورونو کښې اوسيږي او د جاهليت قديمه په شان په ډول سنګار کښې د خپلو کورونو نه مه اوزي.

## د مولانا مودودي صاحب وينا

مولانا مودودي صاحب د دے آيت او بعض احاديثو په رنړا کښې داسي استدلال کوي او واي چه د قرآن مجيد د دغه واضحه حکم په موجوديت کښې د دے هيڅ ګنجائش نشته چه مسلماني ښځي د شوري ګانو او پارلمانونو رکن شي او د کور نه بهر د ټولني او اولس په کارونو کښې حصه واخلي، په دولتي ادارو کښې د نارينو سره يو ځاي کاروکړي، په يونيورستيو کښې د هلکانو سره يو ځاي تعليم حاصل کړي، د نارينو په هسپتالونو کښې د نرسو وظيفه اجراء کړي، په جهازونو او ريل ګاړو کښې ميزباني او مسافر پالونکي وټاکل شي. د زده کړو او تعليمونو دپاره يورپ او امريکه ته وليږل شي. (تفهيم القرآن ص:۹۰ ج:۴ سوره احزاب:۳۳)

زنانه جوماتونو ته په غير د شرطونو نه نشي تلي نو د پارلمان د تلو اجازه د کوم ځاي نه ده. امام نووي رحمه الله واي چه زنانه د جوماتونو نه منع کول روا نه دي مګر دا اجازه هم په لاندي شرطونو مشروط ده چه دغه شرطونه علماء د نورو احاديثو په رنړا کښې بيان کړي.

۱. عطر به نه استعمالوي

۲. ډول او سنګار بئ نه وي کړي.

۳. په لاسونو او ښپو کښې بئ داسي زيورات نه وي چه آواز کوي.

۴. ښائسته لباس بئ نه وي اغوستي.

۵. په صفونو او لارو کښې به د سړو سره اختلاط او ګډون نه وي.

۶. داسي ماحول به نه وي چه د فتني او فساد مبتلا کيدو خطره او ويره لري. (نووي شرح مسلم باب خروج النساء الي المساجد)

فائده:

نو هر کله چه د الله تعالي کورته په غير د داسي سختو شرطونو نه نه شي تلي نو پارلمان او نورو ځايونو ته تلل به د کوم طرف نه روا وي.

## د مولانا مودودي صاحب وينا

مولانا مودودي صاحب واي چه د اسلام په باره کښ د دے تصور هم نشي کيدے چه په تعليمي ادارو، دفترونو، کلبونو او غونډو کښ د ښځو او سړو د اختلاط او ګډون اجازه ورکوي۔ (تفهيم القرآن ص:۳۹۰ ج:۳، سوره نور)

دغه رنګي د مولانا مودودي صاحب د کتاب "اسلامي رياست ص:۴۵۳ ج:۲" په اتم باب کښ د اسلامي دستور لس بنيادي اصول بيان شوي دي چه په هغه کښ شپږم اصل د ښځو منصبونه د عنوان د لاندي داسي بيان کوي۔

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ (النساء:۳۴)

سړي حاکمان دي په ښځو

او لن يفلح قوم ولوا امرهم امرأة (بخاری)

هغه قوم هيڅ کله کاميابي نشي مونده چه خپل کارونه ئے ښځو ته سپارلي۔

دغه دواړه نصوص پدے باره کښ قطعي حکم کوي چه د مملکت د مسئوليت منصب که هغه صدارت وي يا وزارت يا د شوري رکنيت يا د مختلفو ادارو مديريت وي، ښځو ته نشي سپارل کيدے۔ پدے خاطر د يو اسلامي ملک په دستورکښ ښځو ته داسي منصبونه ورکول او دهغے دپاره ځاي پيدا کول د صريحي نصوصو نه خلاف دي او د الله تعالي او دهغه د رسول اطاعت کونکي رياست د دے په خلاف د تللو جواز نه لري۔

ا د دے تفصيلي تشريح د اسلامي رياست ص:۵۹۹ ج:۲ يولسم باب عنوان په داخلي سياست کښ د ښځو رول۔ پدي عنوان کښ مولانا مودودي صاحب واي، حاصل ئے دا دے چه په اوسني زمانه کښ دپارليمنټ کار يوازي قانون جوړول نه دي بلکه پارليمنټ د ټول ملکي سياست کنټرول په لاس کښ لري، دوي کابينه جوړئ او ورانئ۔ دوي د نظم نسق پالسي جوړوي، دوي د مالياتو او اقتصاد قانون جوړئ، د دوي په لاس کښ د جنګ او صلح ټول واک وي، د ټول ملک واک لري او دغه رنګي د ملک د واک دارټاکنه کوي۔

بيا واي چه الله تعالي په الرجال قوامون کښ د واکداري مقام نارينو ته ورکړي، د هيواد د سياست او نظم مسئوليت ښځو ته سپارل د اسلام خلاف کاردے۔

د مذکوره آيت نه معلومه شوه چه زنانه د يو کور واکداري نشي کولي نو د لکونو او ملينو کورونو واکداري به څه وکړي۔

بيا روستو په ص:۶۰۷ د اسلامي رياست کښ واي پاتي شو هغه خلق چه د هغوي په نيز د حق معيار صرف د دنيا د غالبه قومونو طريقه او طرز عمل دے، په هر حال هغه طرف ته ځي چه کوم طرف ته اکثريت ځي نو هغويته چا ويلي چه خامخا اسلام د ځان سره ورانئ. چرته چه دهغوي زړه ځي هم هغه طرف ته دِ لاړشي مگر کم ازکم پکار ده چه دومره رشتيا او واي چه په چاپسي روان دي، دهغه نوم دِ په جرأت سره واخلي او اسلام ته هغه خبري منسوب نه کړي چه قرآن او سنت او د صحابه کرامو او تابعينو تاريخ دهغه په ښکاره طريقه انکار کوي.

او واي چه اسلام په اصولي طور د نارينو او زنانو د مخلوط تولني مخالف دے. او واي چه ښځي خو لا پريږده چه د موجوده پارليمان نارينه ارکان هم داهليت په شرعي معيارونو بر ابر نه دي. د دے پارلمانونو ټول نظام دغربي جمهوريت په اصولو ولاړ دے او مونږ د دے پارلمانونو په ځاي د اسلام شورائي نظام راوستل غواړو.

دا اقتباسات مونږ د اسلامي رياست نه نقل کړل او دا اقتباسات د مولانا گوهر رحمان په کتاب اسلامي سياست کښ هم شته.

فائده:

د مخکښ نه معلومه شوه چه د بعض خلقو دا غلطي وي چه په جمهوريت پسي روان وي، دويم دا چه دوي د ځان سره اسلام ورانئ ځکه د دے جواز په اسلام کښ گوري.

دريم دا چه د قرآن او سنت او پيغمبر او صحابو او تابعينو په ځاي دوي د فر انس په انگريز انو پسي روان دي چه هغه وولټائر او روسو او مونټيسکو وو او د موجوده عصر په طواغينتو پسي روان دي لکه امريکه وغيره.

## جمهوري طريقه

دويمه جمهوري طريقه ده، په جمهوري طريقه کښ زنانه ووټ ورکولي شي او د شوري رکنيت کولي شي بلکه د حکومت مشري هم کولي او د ملک صدر او وزير اعظم هم جوړيدلي شي او دا د دوي بنيادي حق گنړل شي.

ځکه په جمهوريت کښ د جائز او ناجائز دپاره د ټولو نه لوي دليل د عوامو نفساني خواهشات دي او د غربي جمهوريت بنياد په عوامي حاکميت دے. په جمهوريت کښ اصل مقصود او مطلوب دا دے چه په هر ځايکښ نارينه او زنانه اوگه په اوگه د يو بل دپاره باعث د تسکين او لذت وي.

که يو سړي په ملازمت کښ افسر وي نو پکار ده چه جيني ورسره اسسټنټ (معاونه) وي او که نارينه پائلټ وي نو پکار دا چه زنانه ورسره ميزبانه ائيرهوسټس وي او که نارينه د اسمبلي او سينټ اسپيکر او چيرمين وي نو لازم ده چه زنانه ډپټي اسپيکر او ډپټي چيئرمين وي.

د جمهوریت پرستانو د ټول دین خلاصه هم دغه ده چه زنانه قیمتي سامان او مال غنیمت جوړ کړي. تردي چه د انساني ضروریاتو د روز مره استعمال په څیزونو ئې هم بربنډ تصویرونه لږولي او بې تصویره مزه نه کوي.

کچري دتې وي او سینما د پردې نه زنانه لري کړي شي نو کیدے شي چه څوک ئې سهوا هم اونه ګوري او حقیقت هم دا دے چه کله انسان د الله تعالي د بندګي نه آزاد شي او د نفس او خواهش بنده جوړ شي. خو دهغه دپاره هر محفل په غیر د زنانه د ملګرتیا نه خفګان وي. او هر سپرلي ورله خزان وي او هره تفریح او لوبه بې مزے وي او هر نعمت کده غم کده جوړه شي.

د دے وجے نه په جمهوریت کښ د رنګینو زنانووننه په غیر الیکشن بې مزي وي او د اسمبلي اجلاس هم په غیر د تورو شوو سترګو نه او په غیر د سرو شونډو او په غیر د مشکبار زلفو نه بې مزي وي.

په جمهوریت کښ صرف جائز نه بلکه دا فرض دي چه نارینه او زنانه د یو بل سره اوګه په اوګه شي او د یو بل په لاس کښ لاس وارچوي او پیش قدمي شروع کړي.

## په مجلس شوري کښ د فیصلو کولو په طریقه کښ د جمهوریت او اسلام د یو بل سره تضاد

دا بحثونه مخکښ هم ذکر شویو اوس ئې دوباره تکرار کوو چه خبره ښه واضحه شي. په جمهوریت کښ د فیصلو کولو طریقه بیناد او معیار اکثریت دے. او په اسلام کښ د فیصلو کولو طریقه بنیاد او معیار قوت او صحت د دلیل دے.

یعني په جمهوریت کښ د اسمبلي د اراکینو اکثریت چه کوم طرف ته وي نو هغه خبره حقه وي او هغه به د ملک قانون وي اګرچه هغه ښکاره حماقت او واضحه بې دیني او بې حیائي وي.

او په اسلام کښ د فیصلو بنیاد په قوت او صحت د دلیل دے. یعني چه کومه فیصله د قرآن او سنت او د اجتهاد په رنړا او نتیجه کښ اقرب الي الحق وي نو هغې له به اعتبار وي هغه به فیصله او قانون وي، اګرچه د دے دباره کښ راي ورکونکي په ډیر اقلیت کښ وي او مخالفت کونکي په ډیر اکثریت کښ وي.

البته کچري دواړه طرفونه په صحت او قوت د دلیل کښ برابر وي نو بیا به ترجیح اکثریت لره وي. خو دا خبره دِ واضحه وي چه د اسلامي احکامو په باره کښ د هر رکن شوري راي له اعتبار نشته بلکه د قرآن او سنت او فقه د ماهرینو راي له اعتبار دے، ځکه په دلیل او د دلیل په صحت او قوت دوي پوهیږي. هر رکن شوري پے نه پوهیږي.

### په جمهوریت کښ د پارلیمنټ کردار

په جمهوري ریاست کښ پارلیمنټ هغه اداره ده چه کوم ځاي ته عوام د ووټ په ذریعه خپل نمائنده ګان لیږي. د دے دپاره چه د عوامو په مفادو کښ قانون سازي وکړي، خو دا ظاهري خبره ده. په

حقیقت کښ د حکم او حکومت ټول هغه اختیارات چه هغه په الله تعالي پوري خاص دي نو ارکان پارلیمنټ هغه خپل ځان لره خاص کوي او یو قسم له د ځان نه خدایان جوړکړي۔

پارلیمنټ ته دا اختیاروي چه دوي کوم قانون غواړي نو جوړولي شي اګرچه د کتاب الله مخالف وي۔

پدے وجه پارلیمنټ د کتاب الله د رد کولو مرکزوي او د انسانانو د حاکمیت اعلي او اقتدار اعلي مظهر وي او د فحاشي او عریاني او د زناء او شرابو د تحفظ او د ترقي اداره ده۔

الله تعالي واي:

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ (یوسف:۴۰)

او الله تعالي واي:

قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ (ال عمران:۱۵۴)

## آخري فیصله به امیر مجلس کوي او پدیکښ د جهوریت د اسلام سره تضاد

په مجلس شوري کښ چه کله په څه خبرو بحث وشي او د بحث نه روستو د اراکینو د طرف نه متضاد او مختلفے راي ګاني راشي نو په آخري فیصله کښ دوه متضاد طریقي دي۔ یوه جمهوري طریقه ده دویمه اسلامي طریقه ده۔

جمهوري طریقه دا ده چه فیصله به خامخا په اکثریت کیږي او دغه فیصله به د ملک سربراه صدر یا وزیر اعظم ته لیګلي شي او هغه به خامخا په دغه فیصله دستخط کوي او دهغے تائید به کوي اګرچه دغه فیصله دهغه د راي نه خلاف وي۔ د دینه علاوه امیر مجلس یعني سربراه ته هیڅ اختیار نشته۔

او اسلامي طریقه دا ده چه آخري فیصله د امیر مجلس او د سربراه اختیار دے۔ هغه د اکثریت تابع نه دے بلکه هغه به فیصله په قوت د دلیل او صحت د دلیل کوي۔

او کچري د مجلس شوري په یو اجلاس کښ د سربراه په یو طرف پوره اطمنان رانغلي چه داسي فیصله مفیده او حق بجانب ده نو مجلس شوری په هغه خبره په دویم او دریم ځل هم بحث کولي شي۔ دغه رنګي د شوري د اراکینو نه علاوه د متعلقه مسئلے د ماهرینو نه راي اخستلي شي۔ ترڅو چه ورته مسئله پوره واضحه شوي نه وي فیصله به نه کوي۔

د خیر القرون په زمانه کښ ډیرے شورا ګاني داسي شوي چه په هغے کښ فیصله په اکثریت نه ده شوي بلکه په قوت د دلیل او صحت د دلیل شوي۔ د دے تفصیل د مولانا نور محمد صاحب په کتاب (جمهوریت عقل و نقل کے آئنے میں) ص:۳۸۳ کښ شوي ۔

البته دا خبره مخکښ ذکر شویوه چه په دین اسلام کښ په بعض ځایونو کښ په اکثریت فیصله کولي شي، لکه د خلیفه په انتخاب کښ یا چه کله په یوه مسئله کښ د قرآن او سنت کوم نص نه وي او په

دغه مسئله کښ د دواړو طرفونو دلائل يو شان وزن لري نو په دغه صورت کښ امير يا قائد ايوان په اکثريت د راي ګانو فيصله کولي شي۔ لکن دا فيصله به په دے وجه نه وي چه اکثريت بذات خود يو دليل شرعي دے او په اکثريت فيصله ضروري ده بلکه د دے حيثيت د قرعه اندازي وي، دا صرف د تطييب القلوب دپاره وي۔

## د بالغ رائے دهي په بنياد په انتخاباتو کښ د جمهوريت او اسلام يو بل سره تضاد

په جمهوريت کښ د ووټ ورکولو بنياد په بلوغ دے چه هر بالغ راي او ووټ ورکولي شي، که هغه مسلمان وي او که کافر، عالم وي او که جاهل، نيک عمله وي که بد عمله وي، نارينه وي او که زنانه وي، او که په هغه کښ امانت، عدالت، صداقت وي او که نه وي، هيڅ تول نشته، په دوي کښ د هر يو فيصله او راي يو شان ده، ځکه هر يو بالغ دے۔

دغه رنګي د يو جاهل بانډچي او د قاضي القضاة فيصله او ووټ يو شان دے او د يو شرابي زنا کار، سود خور، جوارګر او د ملک د مفتي اعظم يو شان قدرو قيمت لري او د يو اجرتي قاتل او جرائم پيشه او د يو مذهبي روحاني امام اعظم فيصله يو شان وزن لري، ځکه هر يو بالغ دے۔

او په اسلام کښ د ووټ او راي ورکولو بنياد صرف په بلوغ نه دے بلکه د راي د اهليت په صفاتو دے چه په ده کښ د راي او ووټ ورکولو د اهليت صفات شته او په ده کښ نشته يعني تول او چانړ به کيږي۔

مثلا د خليفه انتخاب به د اهل الحل والعقد په ووټ او راي سره کولي شي او د اهل الحل والعقد دپاره ډير صفات ضروري دي، يواځي بلوغ کافي نه دے، لکه اهل الحل والعقد دپاره دا صفات ضروري دي چه په هغوي کښ به علم وي، عدالت به وي، داسي صحيح راي به وي چه د صحيح کس انتخاب کولي شي۔

دا دري شرطونه امام ماوردي رحمه الله او ابويعلي حنبلي رحمه الله ذکر کړي۔ د دينه علاوه بعض علماء نور شرطونه هم ذکر کړي، لکه په نهاية المحتاج الي شرح المنهاج ص:۳۷۰ ج:۷ کښ واي:

قد تناقل كثير ممن جاء بعد الماوردي وابي يعلي رحمهما الله هذه الشروط: الاسلام والحرية والتكليف والعدالة والمروءة

د امام ماوردي او ابو يعلي رحمهما الله نه روستو ډيرو علماء دا لاندي شرطونه ذکر کړي:

۱۔ مسلمان به وي

۲۔ آزاد به وي

۳۔ مکلف يعني عاقل بالغ به وي

۴۔ عادل به وي

۵- د مروءت خاوند به وي.

**امام بخاري رحمه الله واي:**

كانت الائمة بعد النبي صلي الله عليه وسلم يستشيرون الامناء من اهل العلم في الامور المباحة ليا خذوا باسلهلها فاذا وضح الكتاب او السنة لم يتصدوه الي غيره اقتداء ابالنبي صلي الله عليه وسلم (بخاري كتاب الاعتصام ص:۹۵ ج:۲) باب قول الله تعالي وامرهم شوري بينهم

د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روستو امامانو به دهغه علماء سره مشوره کوله چه دهغوي په امانت، دیانت به اعتماد وو او دا مشوره به په هغه مباح کارونو کښ وه (په کومو کښ چه نص نه وو راغلي)، د دے دپاره چه په آسانه او ګټوره لار عمل وکړي خو چه کله به دویته د قرآن او سنت نه حکم واضح شو نو دوي به د دینه تجاوز نه کولو او دا کار د دوي د نبي صلي الله علیه وسلم د تابعداري په بنیاد وو.

**فائده:**

د دينه معلومه شوه چه د شوري رکن به عالم وي او د علم سره به اعتمادي او امانت داروي او دا ترینه هم معلومه شوه چه د په یوه خبره کښ د قرآن او سنت نص معلوم شي نو دهغے خلاف به نه کیږي او نه پکښ مشوري ته ضرورت شته.

د دينه داهم معلومه شوه چه د هر چا نه به مشوره نه اخستلي کیږي، یوازي بلوغ کافي نه دے، لکه څرنګي چه جمهوري طریقه ده.

امام شيزري رحمه الله المتوفي ۵۸۹ ھ په المنهج المسلوک في سياسة الملوک ص:۴۸۴ نه ۴۸۷ الباب التاسع في بيان اوصاف اهل الشوري وحكايات لائقة کښ واي:

ينبغي ان يجتمع في اهل الشوري سبعة شروط الخ

حاصل ئے دا دے چه د شوري (او پارلمان) ارکان له پکار دے چه په دوي کښ اوه صفات وي:

۱- پوهه او زیرکتیا

۲- امانت

۳- رشتیني لهجه یعني چه په خبرو کښ رشتیني وي.

۴- د شوري د اراکینو په مینځ کښ به بغض او حسد نه وي.

۵- د نورو خلقو سره بۓ دشمني نه وي.

۶- نفسي خواهشات به پکښ نه وي.

۷- مشران به وي

فائده:

د دينه هم معلومه شوه چه يوائي بلوغ كافي نه دے- نو په جمهوريت كښ تول نشته، هر سړي ووټ وركولي شي او په اسلام كښ به تللي كيږي چه دا ووټ او مشوري وركولو اهل دے او كه نه- بل دا چه كه صرف بلوغ بنياد وګرځي نو د ډيرو هغه نصوصو خلاف راځي چه په هغه كښ د نر او ښځي د عالم او جاهل، د مسلمان او كافر او د متقي او فاجر فرق ذكر شوي- ځكه كه صرف بلوغ بنياد اوګرځي نو د دے ټولو ووټ يو شان وزن لري-

## سربراهي، وزارت، ممبري حقوق دي او كه ذمواري ده او پديكښ د جمهوريت او اسلام تضاد

په جمهوريت كښ سربراهي، حكمراني وزارت ممبري حقوق دي او هر دولتي منصب غوښتل د هر چا قانوني حق دے- او د دے د حاصلولو دپاره به هر ممكن كوشش كوي او دا مفاد ګڼړلي كيږي او كه يو سړي ته حكمراني ميلاؤ شي نو دا خوش قسمته دے او كه څه منصب ورته ميلاؤ نشي نو دا محرومه او بدقسمته دے- هر ملكي باشنده د دے طلب كولي شي يعني هر كس و ناكس نارينه زنانه هيڅړا جاهل، فاسق، فاجر د دے طلب كولي شي-

او په اسلام كښ دا مسئوليت او زمواري ده او يو امانت، فريضه او بوج دے، حقوق نه دي او نه به د دے د حاصلولو دپاره كوشش كيږي او نه به مفاد ګڼړلي كيږي او نه منصب حاصلول خوش قسمتي ده- ځكه رسول الله صلي الله عليه وسلم واي:

الامام راع ومسئول عن رعيته (بخاري كتاب الجمعه)

د حكومت سربراه نګران دے او د چا نګراني چه د ته سپارلي شويوي نو دهغوي په باره كښ به د ده نه تپوس كيږي-

پدي حديث كښ مشر ته او د حكومت سربراه ته مسئول او ذموارويلي- نو معلومه شوه چه دا بوج او زمواري ده- او د دينه حتي الامكان ځان ساتل بهتر دي، البته كه د ضرورت او مجبوري په صورت كښ چا ته مشري او حكمراني حواله شي نو دا به يو امانت اوزمواري ګڼړي، لكه نبي صلي الله عليه وسلم ابو ذررضي الله عنه ته ويلي وو انها امانة (رواه مسلم باب كراهية الامامة بغير ضرورة) دا حكمران يو امانت دے-

دغه رنګي نبي صلي الله عليه وسلم ابو ذر رضي الله عنه ته ويلي وو لا تامرن علي اثنين (ابو داؤد و جامع الاصول) د دوه كسانو مشري هم مكوه-

او ابو هريره رضي الله ته رسول الله صلي الله عليه وسلم ويلي وو انكم ستحرصون علي الامارة وستكون ندامة يوم القيامة فنعمت المرضعة وبئست الفاطمة (بخاري و نسائي باب مايكره من الحص علي الامارة)

يقينا تاسو به حرص كوي په امارت پسي حالانكې دا د قيامت په ورځ د پښيمانتيا سبب جوړيږي، ځكه شوده وركونكي ډيره ښه ده او شوده كټ كونكي ډيره بده ده.

يعني امارت او حكومت په اول كښ په سړي ښه لګي، لكن چه كله د دے حساب كتاب كيږي نو په هغه وخت كښ به پته لږي چه دا څومره مشكل كار دے.

د دے وجې نه رسول الله صلي الله عليه وسلم د مقدام بن معدي كرب رضي الله عنه په اوګو لاس كيښود او ويويل:

افلحت يا قديم ان مت ولم تكن اميرا ولا كاتبا ولا عريفا (مسند احمد وابو داؤد وجامع الاصول)

اي قديم ته به كامياب ئے كچري تاله په داسي حالت كښ مرګ راشي چه ته نه امير ئے نه (د حكومت) كاتب او نه د يو قوم نمائنده ئے.

فائده:

معلومه شوه چه حكمراني څه د ګلونو هار نه دے بلكه دا د ازغو بستره ده او دا د اوسپني بش او د اوسپني نيني دي.

د دے وجه نه خلفاء راشدين د دے زمداري نه ډير لړزيدل، لكه عمر رضي الله عنه چه كله د شهادت نه مخكښ خلقو د ده صفتونه وكړل نو هغه اويل:

وددت ان ذالك كفاف لا علي ولا لي (بخاري باب قصة البيعة و الاتفاق علي عثمان)

زما دا خوښه ده چه څه (د دے حكومت او مشري د زمواري نه) سر بر خلاص شم چه نه په ما څه ګناه وي او نه ما ته څه ثواب ميلاؤ شي.

### د امير او سربراه دپاره وخت او مده مقرر كول او پديكښ د جمهوريت او اسلام تضاد

په جمهوريت كښ منصب يعني امير او سربراه يا ممبر د محدود وخت دپاره وي، څلور پينځه كاله روستو نوي انتخابات كيږي او په اسلام كښ سربراه يا بل څه منصب د محدود وخت دپاره نه وي بلكه د ژونده پوري وي چه كله په دغه منصب دار شخص كښ د اهليت شرطونه او د كار كولو استعداد وي. او كچري په صدر يا وزير اعظم يا بل منصب دار كښ دغه شرطونه او صلاحيتونه نه وي نو هغه په ډيره لږه مده كښ معزوله كيدے شي خو خاص وخت ورله نه دے مقرر او كه په اسلامي معيار بر ابر وو نو د ډيري زماني پورے په دغه عهده او مسئوليت پاتي كيدے شي.

مثلا د خلفاء راشدین په دور کښې هر خلیفه د وفات او شهادت پورې په خپله مشرې پاتې وو او یو صحابي ﷺ دا اعتراض نه دے کړې چه تاسو د مدے او وخت تعین ولې نه کوې نو دا د صحابه کرامو اجماعي او اتفاقي فیصله ده چه یو مشر د ژوند پورې په خپله مشرې پاتې کیدے شي۔

البته که د حکومت سربراه په دے امانت کښې خیانت وکړي خواهش پرستي او فسق و فجور شروع کړي غیر اسلامي حکمراني کوي نو هغه په لږو ورځو کښې د معزوله کیدو مستحق ګرځي۔ او مسلمانانو له پکار دي چه معزوله ئے کړي خو په دوه شرطونو، یو دا چه د ده د معزوله کیدو نه غټه فتنه نه پیدا کیږي، دویم دا چه د ده په ځاي د ده نه بل ناکاره په مسئولیت نه راځي۔

ځکه الله تعالي واي **لاینال عهدی الظالمین** نو فاسق فاجر سربراهي نه شي کولې او د دے تفصیل جصاص رحمه الله په احکام القرآن ص:۲۹ نه ۷۱ کښې کړې۔

او په جمهوریت کښې سربراهي، وزارت، ممبري په حقوقو کښې شمارئ۔ بعض خلق دا حق حاصل کړي او بعض انتظار کوي چه دا غنیمت به مونږ ته کله میلاویږي، د دے وجے نه د حزب اقتدار او حزب انتظار په مینځ کښې لانجه روانه وي۔ د دے حرص او د خواهش د لګام دپاره جمهوریانو څلورپینځه کاله مده مقرر کړیوي او په دے مده کښې چه اهل اقتدار هر څومره خود سري او کجروي کوي نو دهغوي د وخت نه مخکښې معزوله کول د جمهوري اصولو نه خلاف دي، بلکه د جمهوري اصولو اطاعت او پیروي فرض ده۔ نو یو فرق دا شو چه په جمهوریت کښې د منصب دپاره مده مقرر ده او په اسلام کښې نه ده۔ دویم دا چه د فسق و فجور په وجه په جمهوریت کښې د وخت نه مخکښې معزولي نشته او په اسلام کښې شته۔

## د حزب اختلاف په باره کښې د جمهوریت او اسلام تضاد

په جمهوري نظام کښې د حزب اقتدار او حکومت په مقابله کښې د حزب اختلاف وجود شرط دے۔ او په اسلام کښې د شرعي او عادلانه سیاست او حکومت په مقابله کښې د حزب اختلاف او اپوزیشن کردار اداء کول د مسلمان دپاره حرام او ناجائز دي او چه کله ظالمانه او غیر شرعي سیاست او حکومت وي نو دهغه په مقابله کښې د حزب اختلاف او اپوزیشن کردار اداء کول په ټولو مسلمانانو فرض او لازم دي۔ ځکه دین اسلام مسلمانانو ته د خپل حکمرانانو او امیرانو د سمع او طاعت دعوت ورکوي او د تفرق او اختلاف او د امیر د نافرماني نه ئے منع کوي۔

او دا دعوت او سبق هم ورکوي چه د ګناه په کارونو کښې د هغوي سمع او طاعت نشته او د دے دواړو خبرو په باره کښې ډیر نصوص موجود دي، لکه:

أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ

او

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ

**وغيرذالک**

**اورسول الله صلي الله عليه وسلم واي:**

السمع والطاعة علي المرء المسلم فيما احب وكره مالم يؤمر بمعصية واذا امر بمعصية فلا سمع ولا طاعة

(متفق عليه)

**په هر مسلمان (د خپل امير انو) خبره اوريدل او منل لازم دي دهغه وخته پوري چه د ګناه امر ورته نه کيږي او که د ګناه امرورته کيږي نو بيا د اميرد خبري اوريدل او منل نشته۔**

**او د دے سره پدي هم ځان پوهه کول پکار دي چه حکومتونه دوه قسمه دي، يو شرعي او عادلانه او دويم غيرشرعي او ظالمانه۔**

**او منافقانه سياست هم غيرشرعي او ظالمانه دے۔**

**او زمونږ د علم مطابق مروجه سياست او حکومتونه ټول غير شرعي او ظالمانه دي، ځکه ټول کفري سياست او کم ازکم منافقانه سياست کوي، نو ټول مسلمانانو له پکار دي چه د مروجه حکومتونو په مقابله کښ شرعي او عادلانه حکومتونه قائم کړي۔**

**او دا صحيح نه ده چه يو غير شرعي ظالمانه حکومت ختموي او بل دغه رنګي غير شرعي او ظالمانه حکومت يا د سابقه نه زيات ناکاره قائموي۔**

## د حکومت د سربراه په مقررکولوکښ د جمهوريت د اسلام سره تضاد

**د ملک د سربراه په مقررکولوکښ هم د اسلامي طريقي او جمهوري طريقي د يو بل سره په ډيرطريقو تضاد دے۔ اول دا چه په اسلامي طريقه کښ به د سربراهي د اهليت صفاتو او شرطونه کتلي شي چه پدے سربراه کښ د اهليت صفات او شرطونه شته او که نه۔**

**او شرطونه او صفات ورله ځکه ضروري دي چه د ملک او حکومت مشري ډيرغټ کاردے۔ خطره ئے ډيره زياته ده۔ او چه کله يو کارغټ وي نو شرطونه ئے زيات وي او دغه شرطونه چاډيرذکرکړي او چا کم، مثلا دا چه د ملک سربراه به:**

**۱۔ مسلمان وي ۲۔ نارينه وي ۳۔ عالم ۴۔ عادل ۵۔ عاقل ۶۔ بالغ ۷۔ بهادر ۸۔ مدبر ۹۔ آزاد به وي ۱۰۔ روغوالي د حواسو او اندامونو به وي وغيره وغيره**

**او په جمهوريت کښ د دے شرطونو او صفات هيڅ لحاظ نشته۔**

دويم فرق دا دے چه په اسلامي طريقه کښ د سربراه انتخاب هغه اهل الحل والعقد کوي چه هغه په خاص صفاتو سره موصوف وي۔

او په جمهوري طريقه کښ د اهل الحل والعقد دپاره دغه صفات شرط نه دي۔ مخکښ تفصيل ذکر شويو۔

## د سربراه په کارونو او مسئوليتونو کښ د جمهوريت د اسلام سره تضاد

په اسلام کښ حکمر اني ټوله نيابتي وي، يعني حکمران د الله تعالي نائب وي، د الله تعالي په مخلوق کښ به د الله تعالي فيصلے کوي او نافذ کوي بۀ۔

مثلا شرعي نظام به قائموي، تطبيق د احکامو به کوي، د خلقو په مينځ کښ به عدل او انصاف کوي، حقدارو ته به د هغوي حقونه رسوي، کمزوري به د ظلم او دهوکي نه خلاصوي۔

ټول خلق به يو شان په امن او سکون کښ وخت تيروي، حدود به قائموي، د اسلام د خورولو او د اعلاء کلمة الله د پاره به د مجاهدينو تشکيلونه کوي، زکاتونه به راټولوي او هغه به په خپل ځايونو کښ خرچ کوي، د سرحدونو حفاظت به کوي، امر بالمعروف او نهي عن المنکر به کوي او اقامت د حجونو او جمعو او اخترو به کوي، په شرعي طريقه به د رعيت صحيح نګر اني کوي۔

او په جمهوريت کښ حکمر اني د الله تعالي نيابت نه دے او د دغه مذکوره خبرو هيڅ لحاظ پکښ نشته۔ په تشريع کښ رئيس جمهوريت اولس مشر د الله او رب او معبود مرتبه لري۔

ځکه اولس مشر او پارلمان ورله شريعت او قانون جوړئ او په دغه قانون دويته تربيه او روزنه ورکوي او سزا او جزا د دغه قانون مطابق ورکوي او د دغه قانون په منلو يا د دغه قانون مطابق په ژوند تيرولو ئے مکلف کوي۔

او اولس مشر د الله تعالي سره شريک وي په ربوبيت او حاکميت کښ۔ ځکه ربوبيت او حاکميت دوه قسمه دے، تکويني او تشريعي۔ نو دا د الله تعالي سره شريک دي په تشريع کښ، څرنګي چه الله تعالي واي دا حلال دي او دا حرام، دا کوه دا مه کوه، دا خوره دا مه خوره، دا اغونده دا مه اغونده، نو د دے په مقابله اولس مشر تحريم تحليل کوي چه دا روا دي او دا ناروا، دا کوه دا مکوه، دا خوره دا مه خوره، دا اغونده دا مه اغونده۔ مثلا الله تعالي واي شراب، سود، جواري، زناء حرام دي ، دوي واي حلال دي حرام نه دي، د مهاجر او مجاهد سره همکاري الله تعالي فرض کړي، دوي پے پابندي لګوي او د دوي په قانون کښ دا کار حرام دي۔

اسلحه ساتل او ګرځول الله تعالي فرض کړي، د دوي په قانون کښ حرام دي، الله تعالي غيرشرعي لباس حرام کړي، دوي حلال کړي بلکه په بعض ملکونو کښ په شرعي لباس سخته پابندي وي۔

دغه رنګي نورکارونه پدے قياس کړه۔

نو په اسلام کښ د سربراه کارونه مسئولیت او ذمواري معلومه ده چه هغه د الله تعالي نيابت دے په احکامو کښ، د الله تعالي حکمونه به نافذ کوي او د ځان نه به حکمونه نه جوړئ. او په جمهوریت کښ د سربراه د دغه زمواري هيڅ لحاظ نشته، سربراه د الله تعالي نائب نه دے او د الله تعالي حکمونه نه نافذ کوي، بلکه د الله تعالي د حکمونو په مقابله کښ نور حکمونه جوړئ. نو شرعي حکمر اني او جمهوري حکمر اني بيلا بيل دي. د دواړو په مينځ کښ ډير فرق دے او د يو بل سره ئے تضاد دے.

## د اقليتونو د رکنيت شوري (پارلمان) په باره کښ د جمهوريت د اسلام سره تضاد

اقليت د اکثريت په مقابل کښ د کم تعداد والا گروپ ته واي. مذهبي اقليت يوه اصطلاح ده چه په يو ملک يا صوبه علاقه وغيره کښ د مذهب پيروکار وي په هغوي کښ د کم تعداد والا ته مذهبي اقليت واي، لکه په پاکستان کښ د نوي فيصد نه زياته ابادي د مسلمانانو ده نو د دوي په مقابل کښ مسيحيت اقليتي مذهب دے. او په آسټريا کښ اسلام د مسيحيت په مقابل کښ کم دے نو هلته اسلام اقليتي مذهب دے.

په جمهوريت کښ اقليتونه د پارلمان رکنيت کولي شي او دا خبره ئے د پاکستان د ۱۹۷۳ء په آئين کښ هم ليکلي، او واي چه دويته به هر قسم تحفظ وي.

او په اسلام کښ اقليتونه د پارلمان رکنيت نه شي کولي، ځکه په اسلام کښ د پارلمان (مجلس شوري اهل الحل والعقد) دارکانو دپاره ډير شرطونه دي، يو بنيادي شرط پکښ اسلام دے، لکه دا خبره مخکښ تفصيلا ذکر شويوه او کوم چه غير اسلامي اقليتونه دي، لکه په پاکستان کښ هندوان، سکان، عيسايان په دوي کښ اسلام نشته نو دوي د پارلمان ارکان نشي جوړيدے او د پارلمان رکنيت نشي کولي.

او امام الحرمين رحمه الله په غياث الامم ص:۶۲ کښ واي چه اهل ذمه (يعني اقليتونه) د پارلمان رکنيت نشي کولي، واي چه پدي دټول امت اجماع ده او پدي خبره کښ هيڅ پټوالي نشته او دا د علم انتهاء ده.

د امام الحرمين رحمه الله عبارتونه اوګورئ، هغه چه کله د اهل الاختيار يا په بل تعبير د اهل الحل والعقد او په بل تعبير د پارليمنټ د ارکانو صفات ذکر کوي نو هغه واي:

فلتقع البداية لمجال الاجماع في صفة اهل الاختيار

يعني مونږ اول د اهل الاختيار هغه صفات ذکر کوو چه په هغه د ټول امت اتفاق دے، بيا واي:

ولا مدخل لاهل الذمة في نصب الائمة

يعني زميانو لره د حکمر انانو به مقرر کولو کښ هيڅ دخل او اختيار نشته، بيا واي:

فخروج هؤلاء عن منصب الحل والعقد ليس به خفاء

یعني د ذمیانو وتل د اهل الحل والعقد نه (د پارلمان د رکنیت نه) پدیکښ هیڅ خفاء نشته، بیا واي:

فهذا مبلغ العلم علي هذا الفصل

یعني پدي مسئله کښ دا د ټول علم انتهاء ده.

حالانکې په براي نام اسلامي ملکونو کښ موجوده اقلیتونه د ذمیانو نه هم ډیر ناکاره دي، ځکه په اسلام کښ چه د ذمیانو دپاره کوم اصول او شرطونه دي هغه په دوي کښ نشته.

دغه رنګي په نهایة المحتاج الي شرح المنهاج ص:۳۷۱ ج:۷ چه د اهل الحل والعقد (په بل تعبیر د مجلس شوري او په بل تعبیر د پارلیمنټ د رکنیت) دپاره اسلام شرط دے او په موجوده اقلیتونو کښ اسلام نشته.

## په انساني مساوات کښ د جمهوریت د اسلام سره تضاد

په جمهوریت کښ د انساني حقوقو په باره کښ واي چه د ټولو انسانانو په مینځ کښ به مساوات وي. د مساوات مطلب دا دے چه ټول انسانان برابر دي. نارینه، زنانه، عالم، جاهل، نیک عمله، بد عمله، متقي او ډاکو. د یو په بل څه فوقیت (اوچتوالي) نشته. هر انسان د ممبر جوړیدو اهل دے. هر انسان د ترقي په کار کښ شرکت کولي شي، د هر انسان ووټ مراعات برابر دي، دټولو حقوق زمدارياني د انساني حقوقو د عالمي چارټر مطابق ټول انسانان د قانون په نظر کښ برابر دي.

په اسلام کښ د داسي مساوات هیڅ تصور نشته، ځکه اسلام په نارینه، زنانه کښ فرق کوي، په عالم او جاهل کښ فرق کوي، هر سړي په هره خبره کښ د راي ورکولو اهل نه دے.

اسلام واضحه فرقونه کړي، لکه:

وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ مِمَّا عَمِلُوا، وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ، لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ، لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ، هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ

نو جمهوري مساوات د اسلام سره په مکمل طور متصادم (ټکراؤ) دے.

په اسلام کښ مساوات او عدل اعطاء کل ذي حق حقه ته واي، یعني هر حقدار ته د هغه حق ورکول.

## دپارلمان حقیقت

پارلمان د خلقو د منتخب نمائندګانو هغه اداره ده چه هغه د خلقو دپاره قوانین جوړئ او د شریعت سازي یعني د تحلیل او تحریم مطلق العنان (بې واګو) حق او اختیار لري او په پارلمان کښ قانون دیته واي چه د پارلمان د دواړه ایوانونو نه منظور شي او صدر مملکت ئې منظور کړي.

## پارلمان طاغوتي غیرشرعي اداره ده او د پارلمان منکرات او خلاف شرع کارونه

۱ـ په جمهوریت کښ تشریع یعني حلالول او حرامول دپارلمان د طرف نه وي ځکه د پارلمان ارکانو ته د قوانینو د جوړولو کلي حق ورکول شي. پدے وجه دیته قانون ساز هم ویلي شي. او په اسلام او په شریعت کښ دا حق صرف او صرف د الله تعالي دے، لکه الله تعالي واي:

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ (الشوري:۲۱)

آیا د دوي دپاره داسي شریکان شته چه هغوي د دوي دپاره هغه دین جوړ ځ چه دهغے الله تعالي اجازت نه دے ورکړي.

۲ـ د پارلمان د قوانینو احترام او تقدس د قرآن او سنت نه زیات وي، ځکه که په یوه خبره د قرآن او سنت نه ډیرزیات دلائل ذکرکړي لکن چه د آئین مطابق نه وي نو پارلیمان هغه رد کوي او نه ئے قبلوي یعني پارلیمان ته د قرآن او سنت د فیصلو د رد کولو اختیارشته. حالانکے د الله تعالي فیصله هیڅوک نشي رد کولي. وَاللَّهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ (الرعد:۴۱)

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ (الاحزاب:۳۶)

۳ـ په پارلیمان کښ فیصله په اکثریت کیږي او په اسلام کښ فیصله په قوت د دلیل کیږي اگر چه ددلیل خاوند یو کس وي.

۴ـ د جمهوري پارلمان رکنیت هر څوک کولي شي، که هغه مسلمان وي او که یهودي عیسائي هندو کمیونسټ او ملحد وي او په اسلام کښ د مجلس شوري او اسمبلي رکنیت هغه څوک کولي شي چه هغه صحیح سمجدار مسلمان وي. په قرآن کښ چه کله د شوري ذکر کیږي نو هلته شوري دهغه مؤمنانو په صفت کښ ذکر کوي چه هغوي نهه صفات لري، لکه سوره شوري:۳۶ نه تر ۳۹ پوري وما عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَى لِلَّذِينَ آمَنُوا وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (36) وَالَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ (37) وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ (38) وَالَّذِينَ إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُونَ (39) ـ

۵ـپارلمان ته د تشریع او قانون سازي او ووټنگ او مشوري ورکولو حق حاصل وي په منصوصي او غیر منصوصي ټولو امورو کښ. او په اسلام کښ مشوره صرف په هغه امورو کښ کیږي چه په هغے نص موجود نه وي او چه په کومو خبرو کښ نص موجود وي نو په هغے د مشوري کولو هیڅ ضرورت نه وي.

۶ـ په جمهوري پارلیمان کښ اکثریت د اله مرتبه لري د اکثریت د مرضي مطابق به قوانین جوړیږي او په قوانینو جوړولو کښ د وحي (قرآن او سنت) د مداخلت هیڅ حق نه وي او په اسلام کښ د شوري او

اسمبلي ممبر د آسماني وحي پابند وي او د خپل امیر په اطاعت مکلف وي او امام او امیر په هره مسئله کښ د اکثریت تابع نه وي بلکه اکثریت د امیر په اطاعت مکلف دے۔

۷۔ د جمهوري پارلیمان رکنیت یو جاهله او بے علمه سړي کولې شي او په اسلام کښ د پارلیمان رکنیت جاهله او بے علمه سړي نشي کولې بلکه د مجلس شوري رکن به عالم وي، لکه د دے تفصیل مخکښ ذکر شویو۔

۸۔ د مروجه پارلیمان رکنیت زنانه هم کولې شي او په اسلام کښ د پارلیمان رکنیت زنانه نشي کولې بلکه د پارلیمان رکن به نارینه وي او امام الحرمین رحمه الله واي چه پدے د ټول امت اجماع ده او د دے تفصیل هم مخکښ ذکر شویو۔

## مروجه پارلمان مقرر کول کفر دے

ځکه مروجه پارلمان ته د تشریع حق ورکړي شوي او د الله تعالی نه ماسوا بل چا له د تشریع حق ورکول یا منل کفر دے او مروجه پارلمان ته د تشریع حق ځکه ورکړي شوي چه د پارلمان تعریف په آکسفورډ په قاموس کښ داسي شوي چه پارلمان په جمهوریت کښ د خلقو د منتخبو استاذو هغه اداره ده چه د خلقو دپاره د قوانینو جوړولو د تحلیل تحریم مطلق حق لري او بل چا له د تشریع حق ورکول یا منل کفر دے، ځکه دا شرک في الربوبیة دے او بیا دغه قوانین په مینه محبت سره منل او دهغے اطاعت او احترام کول شرک في الالوهیة دے، ځکه دا د غیر الله عبادت دے۔

او واضحه دلیل پے دا آیت دے چه اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ (التوبة:۳۱) او نور بحث پے مخکښ تیر شویو چه جمهوري پارلمان د کتاب الله د رد کولو مرکز دے، د انسانانو د حکمیت اعلي او اقتدار اعلي مظهر دے، د کفري او شرکي اقتدار منبع ده، د فحاشي عریاني، زناکاري، شراب خوري، اباحیت د تحفظ او ترقي اداره ده۔

## فائده: جمهوریت یا ووټ شوري نه ده

بعض خلق جمهوریت یا ووټ ته د شوري نوم ورکوي او واي چه دا مشوره ده یا جمهوریت او ووټ د شوري یو جدید شکل دے او په اسلام کښ خو شوري شته او اسلام یو شورائي نظام دے او یا جمهوري پارلمان د اسمبلي داسي دي لکه په اسلام کښ چه مجلس شوري وي۔

نو د مخکښ بحث نه معلومه شوه چه په مابین د مروجه پارلمان یا جمهوریت او ووټ کښ او په مابین د اسلامي شوري کښ ډیر زیات فرقونه دي نو د مروجه پارلمان یا جمهوریت او ووټ قیاس په شوري یا مجلس شوري صحیح نه دے۔

## خلاصه د سابقه بحثونو

د جمهوريت متعلق چه کوم بحثونه وشو نو دهغې خلاصه او نتيجه دا ده چه جمهوريت يو غير اسلامي کفري شيطاني دين دے چه د انساني زندګي ټول طرفونه ئې راګير کړي۔

او جمهوريت په حقيقت کښې د الله تعالي نه د انسانيت دپاره د هر قسم نظام او قانون جوړولو حق اخستل دي او الله تعالي دقانون سازي په باره کښې بے واکه کول دي (نعوذ بالله)

او جمهوريت په مغرب کښې د مسيحيت نه د انحراف او الحاد په وجه وجود ته راغلي په جمهوريت کښې هر څه د ديني پابندي نه آزاد دي او هر څه د انسانانو په خپله خوښه کيږي۔ په جمهوريت کښې د الله تعالي منل او نه منل دواړه برابر دي ځکه د الله تعالي د منلو په صورت کښې هم د الله تعالي قانون او شريعت منل د جمهوريت د اصولو خلاف کار دے۔

جمهوريت د مغرب د ملحد فلسفې د افکارو او نظرياتو په بنياد قائم دے او د دے د اسلام سره هيڅ مشابهت او رابطه نشته۔ لکن مغرب زده سيکولر او بے دينه عناصر او دهغوي نه بعض متاثر او غوليدلي مسلمانان دا کوشش کوي چه عامو مسلمانانو ته په دروغو او دوکه د اسلام او جمهوريت په مينځ کښې روابط او مشابهتونه ولټي۔ د دے دپاره چه عام مسلمانان د جمهوريت په خلاف د مبارزي او جهاد نه راوګرځي۔

جمهوريت په اسلامي دنيا د مغربي استعمار او تسلط د هميشه ساتلو يوه خطرناکه منصوبه ده۔ هغه تسلط او قبضه چه مغرب ئې د زور، زر، زندان او مرګونو په مټ او طاقت په اسلامي دنيا دخپل غلام حکومتونو په ذريعه هميشه ساتل غواړي۔

او ددے د خورولو او نافذ کولو دپاره په زرګونو مليون ډالر په فوجونو او فوجي وسائلو خرچ کوي او د دے مصارفو په ذريعه د جمهوريت په خلاف د مزاحمت او جهاد د ختمولو دپاره په اسلامي ملکونو کښې د لکونو مسلمانانو قتل عام کوي او اسلامي جماعتونه او پارټي صرف پدے وجه ختموي او ترقي ته ئې نه پريږدي چه چري دوي مظلوم او متاثره مسلمانان د جمهوريت دناکاره حقيقت او بنيادونو نه خبر نه کړي۔

اوس چه کله افغانستان د مغرب په قبضه کښې راغلي نو دلته ئې هلاکت خيز او تباهي کونکي جنګ ځکه مسلط کړو چه پديکښې جمهوريت نافذ کړي، نو دا صليبي جنګ نه بلکه په حقيقت کښې جمهوري جنګ دے۔ ټولو مسلمانانو له پکاردے چه د خپل دشمن د فکري، اعتقادي او اخلاقي حقيقت نه ځان خبر کړي او د دشمن بنياد د هرے زاويے نه معلوم کړي۔

## د انتخاباتو مفاسد او ناروا کارونه

د انتخاباتو مطلب دا دے چه يو کس يا ډير کسان د يو مجلس د مشري يا رکنيت دپاره غوره کول۔

د انتخاباتو مروجه طريقه د شريعت نه خلاف ده او پديکښ ډير مفاسد منکرات او ناروا کارونه دي، مثلا:

۱ـ په مروجه طريقه انتخابات کول طاعت د کافرانو دے او طاعت د کافرانو حرام دے، ځکه الله تعالي واي:

وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ (الاحزاب:۱)

او دا طاعت د کافرانو ځکه دے چه دا انتخابات د جمهوري نظام حصه ده او جمهوري نظام کافرانو د اسلام دشمنانو جوړ کړي چه مسلمانان د الله تعالي د نازل کړي شوي نظام نه واړئ د مخلوق جوړ کړي شوي نظام ته.

۲ـ په مروجه انتخاباتو کښ عقيده د ولاء او براء په بل تعبير حب في الله او بغض في الله ختميږي، ځکه د دوستي او محبت او د دشمني او بغض بنياد په پارټي او په ووټ ورکولو او په ووټ نه ورکولو وګرځي. د الله تعالي دپاره دوستي او محبت او دشمني او بغض ختم شي، د چا اسلام او کفر ته نه ګوري، د چا تقوي او فسق ته نه ګوري، د چا د بے ديني او بيلمازي هيڅ تپوس نه وي. حالانکے عقيده دولاء او براء په بل تعبير عقيده دحب في الله او بغض في الله د ايمان اهم جز دے او په حديث کښ ديته اوثق عري الايمان ويلي شوي يعني د ايمان د ټولونه مضبوطه کړي، د الله تعالي د پاره مينه کول او د الله تعالي دپاره بغض کول دي.

او د دے په باره کښ ډير ګڼ آياتونه او حديثونه دي. مثلا:

أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ (المائدة:۵۴)

أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ (الفتح:۲۹)

وغيره

۳ـ په انتخاباتو کښ بے ځايه وختونه او مالونه ضائع کيږي، حالانکے وخت او مال لوي غنيمت او نعمت دے او د وخت د يويو سيکنډ او د مال د يوے يوے روپي حساب کتاب به کيږي. مال او وخت بے ځايه ضائعه کيږي، د الله تعالي د راضي کولو په ځاي الله تعالي ناراضه کړي، لکه خلق واي هندو سټړي او خداي ناراضه، او سالک واي:

ترسم بکعبه نه رسي اي اعرابي کين راه که تو ميروي بترکستان ست

۴ـ په انتخاباتو کښ د کم لحاظ وي خو د کيف هيڅ لحاظ نه وي، يعني صرف د افرادو اکثريت او تعداد ته کتلي شي او د دغه افرادو د صفاتو هيڅ لحاظ نه وي.

او په شریعت کښې کیفیت یعني د افرادو صفات ضروري دي، لکه د اهل الحل والعقد خاص صفات دي او دا بحث مخکښې تیر شویو۔

۵۔ په انتخاباتو کښې غیر شرعي مساوات کولي شي، لکه د مسلمان او کافر ووټ برابروي۔ دغه رنګي د عالم او جاهل ، د نارینه او زنانه د متقي او فاسق د اهل الحل والعقد او د ډم غل ډاکو او دا قسم مساوات دډیرو آیاتونو او حدیثونو نه خلاف دے۔

۶۔ په انتخاباتو کښې زنانه شرکت کوي، ځکه په جمهوریت کښې دا د دوي حق دے او په جمهوریت کښې د نارینه او زنانو په مینځ کښې مساوات دے او د زنانو شرکت ډیره لویه فتنه ده۔

۷۔ په انتخاباتو کښې تصویرونه ډیر زیات وي، په مختلف شکلونو، مختلف تصویرونه وي، په لارو کوڅو کښې په کورونو، دیرو کښې په دکانونو او بازارونو کښې۔

په شریعت کښې د دے په باره کښې ډیر سخت سخت وعیدونه راغلي، لکه په بخاري او مسلم شریف کښې په روایت د عائشې رضي الله عنها راځي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:

ان اشد الناس عذابا یوم القیامة المصورون

د قیامت په ورځ به د ټولونه سخت عذاب د تصویرونو والا وي۔ په بل حدیث د بخاري او مسلم شریف کښې په روایت د ابو طلحه رضي الله عنه راځي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:

لاتدخل الملائکة بیتا فیه کلب ولا صورة (ملائک هغه کور ته نه داخلیږي چه په هغه کښې سپي یا تصویر وي۔)

## د جمهوریت او انتخاباتو فسادات او نقصانونه په بل تعبیر

دا نقصانونه ددے دپاره بیانوو چه خلق د انتخاباتو نه ځان بچ کړي او د خپل ایمان حفاظت وکړي او د همیشه دپاره د جمهوریت او انتخاباتو نه توبه وکړي او نور خلق هم د جمهوریت او انتخاباتو د تباهي او نقصانون نه خبر کړي۔

۱۔ د تصویر په حرمت د علماء اتفاق دے ځکه په حدیث کښې راځي چه د قیامت په ورځ به سخت عذاب د تصویر جوړونکو وي لکن نن حال اوګوري چه څه کیږي غټ غټ تصویرونه جوړولي شي۔

۲۔ د قرآن او حدیث مطابق غیبت لویه ګناه ده لکن د انتخاباتو په ورځو کښې په لاکونو او کروړونو غیبتونه کیږي، په زرګونو جلسو کښې په سټیجونو غیبتونه کیږي او بیا لاسونه پرقولي شي او د غیبتونو تحسین کیږي حالانکې د ګناه تحسین څومره خطرناکه ګناه ده۔ ملیان صاحبان هم په سټیجونو دیو بل غیبتونه کوي او لاندي ناست خلق د الله اکبر په عرو سره د هغې تحسین کوي۔ دا څومره لوي جاهلیت دے چه د ګناه تحسین د الله اکبر په لفظ سره کولي شي۔

۳- د دینه علاوه په یو بل د بهتانونو سیلاب بهیږي او دهغې تحسین کولي شي، د دے وجه نه انتخابات ډیره خطرناکه بیماري ده-

۴- په انتخاباتو کښ د یو کورد بل کور سره د یو محلے د بلے محلے سره د یو جمات د بل جمات سره د یو کلي د بل کلي سره بغض او نفرت پیدا کیږي- دیو بل سره دشمني او خفګان ډیریږي، رور د رور سره ناراض وي، وراره د تره نه جاړي، استاذ د شاګرد نه بیزاره وي، پلارد ځوي نه خفه وي، امام د مقتدي نه و بالعکس د جماتونو او مدرسو ماحول خراب وي-آیا دا ټول حقائق اوو اقعیتونه نه دي-

۵- په انتخاباتو کښ بے حسانه مالونه خرچ کولي شي چه دیته تبذیرواي او قرآن واي چه د بذروالا د شیطان رونړه دي-

۶- په انتخاباتو کښ دروغ ډیرزیات خوریږي، د دروغو په وعدو سره شنه باغونه ښودلي کیږي، دعوامو نه بے وقوفه جوړولي شي او عوام په دے دروغو کښ اخته وي چه د هر یو سره وعدے کوي چه ځما ووټ ستا دے حالانکے ووټ یو کس ته ورکولي شي-

۷- په انتخاباتو کښ د علماء عزت پائمالیږي ځکه په جمهوریت کښ دوه رنډي د یو شیخ او مفتي او عالم نه غوره وي- دوه فاسقان فاجران د یو عالم او متقي نه غوره وي- حالانکے یو دینداره انسان د یو لاکه بلکه د یو کروړ بے دینه خلقو نه غوره دے او کوم عالم چه پدے میدان کښ قدم ګدي نو د ټولونه مخکښ هغه په خپله خپل عزت د خپلو ښپو د لاندي کوي- ځکه دغه عالم پدے مو افقه کړیوي چه دا دیو رنډي سره بلکه د یو فاسق سره بر ابر دے بلکه د یو کافر سره بر ابر دے-

۸- په انتخاباتو کښ د الله تعالي د بهترینو نعمتونو بے قدري او ناشکري کیږي، لکه د ایمان، اسلام، علم تقوي وغیره- ځکه په جمهوریت کښ دغه مسلمان مؤمن عالم متقي د یو کافر سره او د یو جاهل سره بر ابر ګڼړلي شي او یو شریف د رذیل سره او هوښیار او عاقل د یو بے عقله سره بر ابر ګڼړلي شي-

۹- د خلقو محبت او نفرت د ایمان او تقوي په ځاي د پارټي په وجه وي، لکه هر یو د خپلي پارټي کامیابي غواړي اګر که هغه هندو یا نصر اني یا شیعه وي او د مقابل پارټي ناکامي غواړي اګر که هغه صحیح العقیده مسلمان عالم وي او دا د مشاهدے خبره ده او دا د ایمان مرګ دے او د عصبیت بدترین صورت دے چه د دینه رسول الله صلي الله علیه وسلم بر ائت کړي او دیته ئے جاهلیت ویلي-

۱۰ جمهوریت شرک في الحکم دے او د توحید في الحاکمیت نه انکار دے او چه څوک توحید في الحاکمیت نه مني نو د هغوي سره الله تعالي د قتال امر کړي لکه قرآن کریم واي:

قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ (التوبة:۲۹)

پدے آیت کښ الله تعالي د قتال دري اسباب بیان کړي یو عدم ایمان په الله تعالي او قیامت دویم عدم تحریم د حرامو دریم عدم عقیده د دین اسلام۔ په جمهوریت کښ د الله تعالي حرامو ته حرام نه ویلي کیږي او په جمهوریت کښ په اسلام عقیده نه وي بلکه په اکثریت وي۔

## د جمهوریت او انتخاباتو فسادات او نقصانونه په بل تعبیر

د انتخاباتو په ذریعه اقتدار ته د رسیدلو پوړي د عوامو ووټ دے۔ د دے وجے نه د زیات عوامي حمایت حاصلولو دپاره هر چل ول او سازش کولي، فریب، دوکه، منافقت، دروغ ـِ لوظي، بد اخلاقي، بهتان، غیبت، غیر ت اوضمیرفروشي، خیانت، بد دیانتي کیږي او دا کارونه په مروجه جمهوریت کښ صرف مباح نه بلکه لازم دي۔

د خپل مقابل ذلیله کول

د دینه علاوه خپل حریف او مقابل ذلیله کول، په جلسو جلوسونو، اخبارونو، اشتهارونو کښ دهغه پټه ګناه ښکاره کولي شي، بلکه بعض هغه ګناهونه چه هغه نه وي کړي، هغه هم تشهیر کولي شي۔

د خپل ځان صفتونه کول

هر امیدوار خپل ځان فرشته ښکاره کوي، خپل ځان خپلو عوامو ته د هر دور د دوا په طور پیش کوي، د خپل پشم دار او لوخړي کونکي تقریرونو په ذریعه عوامو ته دا یقین ورکوي که مونږ دا دریکتاد ـِ مثله ملغلره کامیاب کړو نو زمونږ د ټول دکه درد دو ائي به وشي او که ددے مشفق یګانه غمخوار زمانه نه محروم شو نو مونږ به هر څه د لاس نه ورکړو۔

د دروغو وعدے کول

د الیکشن په دوران کښ د خپل عوامو د ـِ وقوفه کولو دپاره او دهغوي د حمایت د حاصلولو دپاره دلفریب نعرے ایجاد کړي، د شنو باغونو دروغجني وعدے کوي او عجیبه خبره دا وي چه یو لیډر په مختلفو جلسو کښ د سامعینو د نوعیت او مزاج مطابق متضاد وعدے کوي۔ رکشه والا ته واي موټرے به درکړو، غریبانو ته واي بنګلي به درکړو، ـِ روزګارو ته واي کارخاني به درکړو، تاجر انو ته واي ستاسو تجارت به مضبوط کړو، د کار کسب والا ته واي ستاسو کارونه به مضبوط کړو، اسلام پسندوته واي اسلامي نظام به رائج کړو، جمهوریت پسندوته واي اسلامي جمهوریت به نافذ کړو۔

جانان ما بشیوه مغرب بر ابر است　　　باما شراب خورد به زاهد نماز کرد

ارمان دے چه عوام مسلمانان د ظاهر د لیدو په ځاي د حقیقت د لیددو نه کارواخلي۔

د ووټر انو اخستل خرڅول

چه کله الیکشن نزدي شي نو د ووټونو اخستل خرڅول شروع شي او د دے دپاره بے شماره ایجنټان او دلالان ګرځي۔

د دشمني او نفرت فضا جوړه شي

د انتخاباتو نه روسته د شکست خوره پارټي افراد حسرت او افسوس کوي او د غم نه ډک وي، بل طرف ته کامیاب فریق د شکست خورده ډ ے مخي ته د فخر او خوشحالي جشنونه مناوول شروع کړي بلکه د هغے تذلیل کوي او انتقامي کارروای کوي۔

وحدت او اسلامي اخوت پکښ قتل شي

د الیکشن په نتیجه کښ ټول قوم په حزب اقتدار او حزب اختلاف کښ تقسیم شي، چه په هغه کښ هر یو فریق د دویم فریق د هرے ښې او بدي خبري مخالفت کوي او د هغے خلاف عوام سړکونو ته راویستل، خپله جمهوري فریضه ګڼړي۔

دغه رنګي د جلسو او جلوسونو په ذریعه هر یو فریق د خپل قوت د مظاهري دپاره یوه نه ختمیدونکي سلسله شروع کړي او دهغے په انجام کښ هړتالونه توړ پوړ ګډوډي شروع شي۔ کله بازارونه بندیږي، کله کارخاني او کاروبار بندیږي، کله تعلیمي اداري او درسګاهونه بندیږي، بل طرف ته د دوي خلاف لاټهي چارج، اوښکي بیونکي ګیسونه، پکړ دهکړ شروع شي، تردي چه کله پکښ ډزډوز او قتلونه شروع شي۔

## د جمهوریت مفاسد او ناروا کارونه

مخکښ هم د جمهوریت مفاسد ، نقصانونه او ناروا کارونه په مختلفو طریقو او عنو اناتو سره ذکر شو۔ اوس ئے بعض مفاسد او ناروا کارونه په بله طریقه او عنوان سره ذکر کوو۔

۱۔ د جمهوریت بنیاد کفارو ایښي، اول په یونان کښ، بیا روستو ښه په منظم شکل د اتلسمي صدي په اول کښ په یورپ کښ د آزاد خیال جمهوریت دري بانیان وو، وولټائر، مونټیسکو او روسو۔ او دا دري واړه د فر انس وو۔

۲۔ د جمهوریت بنیادونه بعض خلقو شپږ ذکر کړي او چا زیات ذکر کړي او دغه بنیادونه ټول د ګناه د کفر او د الحاد بنیادونه دي۔

۳۔ د جمهوریت د اسلام او قرآن او سنت سره په ډیرو خبرو کښ تضاد دے۔

۴۔ په جمهوریت کښ اکثریت ته د اله او رب مرتبه ورکولي شي، ځکه اکثریت تحلیل او تحریم کولي شي، حالانکے دا صرف د الله تعالي حق ان الحکم الا لله۔ او اکثریت د الله تعالي حکمونه د دین واضحه او ضروري خبري رد کولي شي، حالانکے د الله تعالي حکمونه هیڅوک نشي رد کولي، **والله یحکم لامعقب لحکمه**

---

۵- په جمهوریت کښې اسلام ناقص دین ګڼړلي شوي چه اسلام ناقص او عاجز دے، د خلقو د اصلاح نه او د دے وخت سره دغه نظام نه چلیږي۔

حالانکے اسلام مکمل نظام حیات دے، ځکه الله تعالي واي:

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا

او الله تعالي واي چه قرآن کافي شافي دے:

أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ يُتْلَى عَلَيْهِمْ (العنکبوت)

او الله تعالي واي چه د قرآن نظام ډیر برابر نظام دے:

إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ (الاسراء)

او الله تعالي واي چه په قرآن کریم کښې یوه ضروري خبره هم نه ده پاتي:

مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ (الانعام:۳۸)

او الله تعالي واي چه د هر شي بیان پکښې دے:

وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ (النحل:۸۹)

او الله تعالي واي چه:

وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ (المائدة:۴۸)

یعني قرآن حاکم دے په هره زمانه کښې په هر مکان کښې په هر قائل او فاعل، په هر فعل او قول، په هر حرکت۔ د دے آیاتونه نه معلومه شوه چه اسلام په هر شي انتهائي محیط او جامعه نظام دے۔ مخلوق د اسلام نه علاوه بل نظام ته ضرورت نه لري۔

او په مسلم شریف کښې په حدیث د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه کښې راځي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:

ما بعث الله من نبي الا كان حقا عليه ان يدل امته علي خير ما يعلمه لهم وينذرهم شر ما يعلمه لهم

یعني هر نبي خپل امت ته د خیر هره خبره او د شر هره خبره بیان کړي، نو زمونږ دین هم جامعه دین دے، د خیر او شر هره هره خبره پکښې بیان شوي۔

او اسلام هغه کامل نظام دے چه د دے سره قطعا بد بختي او ګمراهي نه راځي لکه الله تعالي واي:

فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَایَ فَلَا یَضِلُّ وَلَا یَشْقٰی (طہ:۱۲۳)

او په مستدرک د حاکم کښ د ابو هريرة رضي الله عنه په روايت راځي:

تركت فيكم شيئين لن تضلوا بعدهما كتاب الله وسنتي

يعني زمانه روستو چه کله تاسو په قرآن او سنت عمل کوي نو هيچري به نه ګمراه کيږي۔

نو اسلام مکمل نظام دے او جمهوريان ئے ناقص ګڼړي۔

۶۔ د جمهوريت په وجه د الله تعالي هغه نظام او دستور پريښودلي کيږي چه هغه منزل دے او د شپږ زره نه د زيات آياتونو نه او د لس لاکه نه د بره د صحيح احاديثونه جوړشويدے۔ نو دغه شپږ زره آياتونه او لس لاکه احاديث پريښودل کيږي او هغه جمهوري نظام غوره کولي شي چه هغه خود ساخته يعني مخلوق جوړکړي او په مخلوق کښ بيا ناکاره مخلوق جوړ کړي چه کفار دي، خصوصا د يورپ د فرانس عيسايان او ټول بنيادونه ئے د فساد او د الحاد دي۔

۷۔ جمهوريت دهغه مساوات قائل دے چه په شريعت کښ هيڅ تصورنشته، لکه مسلمان اوکافر برابر دي، عالم او جاهل، متقي او فاسق، نارينه اوزنانه برابر دي، وغيرذلک۔

۸۔ په جمهوريت کښ مرورد مدے سبب د عزل وي، يعني د حکمران دپاره خاص مده، لکه څلور پينځه کاله وخت مقرروي، د دغه وخت په ختميدو د ده حکومت هم ختميږي او په شريعت کښ تعين د مدے نشته، بلکه ترڅو چه حکمران د شريعت پابند وي نو د مرګه پوري حکمران پاتي کيدے شي۔

۹۔ په جمهوريت کښ زنانه حکمراني کولي شي او په شريعت کښ د زنانو حکمراني د ډيرو نصوصو نه خلاف ده، لکه:

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَی النِّسَاءِ او لن يفلح قوم ولوا امرهم امرءة

۱۰۔ په جمهوريت کښ کافر هم په مسلمانانو حکمراني کولي شي او په شريعت کښ د دے هيڅ ګنجائش نشته:

وَلَنْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا (النساء:۱۴۱)

## د جلسو جلسونو اوهړتال يا بهوک هړتال شرعي حيثيت:

۱۔ حکيم الأمت حضرت مولانا اشرف علی تهانویؒ:

*"یہ "بھوک ہڑتال" خود کشی کے مترادف ہے اگر موت واقع ہو جائے گی تو وہ موت حرام ہو گی"۔ (الافاضات الیومیہ ص۳۰۰،ج۳، ملفوظ نمبر۱۴)*

”دا بهوک هړتال د خودکشۍ په شان کاردے که چرے مرګ پکښ و اقع شي نو هغه مرګ به حرام وي “۔

ایک اور موقع پر جلسہ جلوس کے بارے میں حضرت نے فرمایا ہے: ”جب کوئی تدبیر تدابیر منصوصہ کے خلاف اختیار کی جاوے گی تو اس کو ممنوع ہی کہا جاوے گا۔ خصوص جبکہ وہ فعل عبث یا مضر بھی ہو تو اس کی حرمت میں پھر کیا شبہ ہو سکتا ہے؟ وہاں تو الضرورات تبیح المحضورات کا شبہ بھی نہیں ہو سکتا مثلا ہڑتال میں جلوس ہیں ان میں وقت کا ضائع ہونا، روپیہ کا صرف ہونا، حاجت مند لوگوں کو تکلیف ہونا، نمازوں کا ضائع ہونا کھلے مفاسد ہیں تو یہ افعال کیسے جائز ہو سکتے ہیں؟ (ایک صاحب نے عرض کیا کہ اگر نیت امداد حق کی ہو؟ تو فرمایا کہ) ان باتوں سے حق کو کوئی امداد نہیں پہنچتی، دوسرے نامشروع فعل نیت سے مشروع نہیں ہو جاتا“۔ (الإفاضات الیومیہ ص: ۳۲، ج۵، ملفوظ نمبر ۱۵۲)

” کله چه یو تدبیر د هغه تدبیرونو په خلاف اختیارکړیشي په کومو چه نص وارد شوے وي نو هغه ته به یوازے ممنوع وئیل کیږي ۔ خاصکر چه هغه کار بے فائدے او د ضرر هم وي نو د هغے په حرام والي کښ بیا څه شبه ده ؟ هلته د ”الضرورات تبیح المحظورات ‘‘ شبه هم نشي پیدا کیدلے مثلا هړتال کښ جلوس وي د وخت ضائع کیدل، د روپو خرچ کیدل، حاجتمند خلقو ته تکلیف رسیدل، د مونځونو ضائع کیدل دا ښکاره خر ابیانے دي نو دا کارونه څه رنګه جائز کیدلے شي؟ ( یو کس عرض اوکړو چه که دا چا نیت د حق مدد کول وي؟ نو هغه جواب کښ اوفرمائیل ) پدے خبرو حق ته هیڅ مدد نه رسي، بله دا چه ناجائزکارپه نیت سره نه جائز کیږي

آپ سے پوچھا گیا کہ ”جتھے (حکومت) کے مقابلے کے لئے جاتے ہیں اور گرفتار ہوتے ہیں، خاموش مقابلہ کرتے ہیں، اگر حکومت کی طرف سے تشدد بھی ہو تب بھی جواب نہیں دیا جاتا۔ان صورتوں کے متعلق شرعی حکم کیا ہے؟

آپ نے فرمایا: ”عقلی دو ہی احتمال ہیں، یا تو مقابلہ کی قوت ہے یا قوت نہیں، اگر قوت ہے تو گرفتار ہونے کے کیا معنی؟ مقابلہ کرنا چاہئے، اور جب مقابلہ نہیں کر سکتے تو یہ صورت عدم قوت کی ہے جیسا کہ ظاہر ہے تو عدم قوت کی حالت میں قصدا ایسی صورت اختیار کرنے کی خود ضرب و حبس میں مبتلا ہو شریعت اجازت نہیں دیتی بلکہ ایسے مخترع مقابلے کے مکارہ (ناگوار امور) پر صبر سے کام لینا چاہئے۔ خلاصہ یہ کہ اگر قوت ہے مقابلہ کرو، اگر قوت نہیں صبر کرو، ان دو صورتوں کے علاوہ تیسری صورت منقول نہیں“۔ (الافاضات ص ۱۶۸، ۱۶۹، ج۵، ملفوظ نمبر: ۱۹۰)۔

عقلي صرف دوه احتماله دي ، یا د مقابله کولو قدرت شته یا نشته ، که قوت دمقابلے شته نو ګرفتاري بیا څه معني لري ؟ مقابله کول پکار دي ، او چه کله مقابله نشي کولے نو دا د قوت د نشتوالي صورت دے لکه چه ښکاره ده نو د قوت د نشتوالي په صورت کښ قصدا داسي شکل اختیارول چه په خپله په وهلو او بند کښ و اقع شي شریعت ئے اجازه نه ورکوي بلکه د داسے منکرت مقابلے په ناګوارو امورو باندے صبرکول پکار دي ۔ حاصل دا چه که طاقت موجود وي مقابله کول پکار دي او که طاقت نه وي نو صبرپکاردے ، د دے دوه صورتونو نه علاوه بل صورت نه دۍ نقل “۔

۲ ـ مولاناخالد سیف الله رحمانی دجدید فقہی مسائل په باره کښې لیکي :

''اپنی ناراضگی کے اظهار اور تنقید کاایک طریقه ''بھوک ہڑتال'' بھی ہے جس میں انسان بھوکاره کر اپنے آپ کو ناراض ظاھر کرتا ہے اور احتجاج کرتا ہے۔ بسا اوقات اس کی جان تک چلی جانے کااندیشه رہتا ہے اور ایسے واقعات بھی ظهور میں آتے رہتے ہیں اسلامی نقطه نظر سے یه صحیح نہیں ہے۔ زندگی کے تحفظ کے لئے اور اپنی توانائی کو معمول پر رکھنے کی غرض سے غذا کھانا واجب ہے :

''أما الأكل فعلى مراتب فرض و هو مايندفع به الهلاك فإن ترك الأكل والشرب حتى هلك فقد عصى ـــ ولا يجوز الرياضة بتقليل الأكل حتى يضعف عن أداء الفرائض ـــــ و لو جاع و لم يأكل مع قدرته حتى مات يأثم'' (الفتاوی الهندیه ج:۵، ص: ۳۳۶تا ۳۳۸ کتاب الکراهیه فی الأکل)

''کھانے کے چند درجات ہیں۔ اتنا کھانا جس کے ذریعے جان بچ سکے فرض ہے۔ لھذا اگر کھانا پینا چھوڑ دے یہاں تک که مر جائے وه گنہگار ہوگا۔۔۔۔۔۔ کم کھانے کی ایسی ریاضت جائز نہیں ہے که فرائض کی ادائیگی سے عاجز ہو جائے۔۔۔۔۔ اگر بھوک لگے اور قدرت کے باوجود نه کھائے یہاں تک که مر جائے تو گنہگار ہوگا''۔

اسلام اس قدر غلو اور افراط کو ناپسندیدگی کی نظر سے دیکھتا ہے۔ اسی لئے حضور ﷺ نے ان صحابه رضی الله عنهم کو بھی منع کر دیا جو عبادات کی غرض سے مسلسل روزے رکھنا چاہتے تھے۔ اور اس نے تنقید و احتجاج کا طریقه بھی واضح کر دیا ہے جسے قرآن و حدیث کی اصطلاح میں ''نہی عن المنکر'' کہا جاتا ہے که اس کے لئے جہاں ممکن اور ضرورت ہو قوت کا استعمال کیا جائے ورنه پر امن طور پر زبان سے کام لیا جائے''۔ (جدید فقہی مسائل: ج:۱،ص: ۳۰۴)

'' د خپل خفګان او تنقید د ښکاره کولو یوه طریقه '' بهوک هړتال '' هم دے چه پکښې انسان وږے پاتې کیږي او د خپل خفګان څرګندونه پکښې کوي او احتجاج کوي ، چه کله کله پکښې د ساه ورکولو خطر هم وي او داسې و اقعات هم پکښې راپه ډاګه کیږي ـ په اسلامي نقطه نظر سره دا صحیح کار نه دے ـ د ژوند حفاظت په خاطر او د خپلې تو انائي په معمول ساتلو په غرض غذا خوړل واجب دي :'' خوراک په څو درجو دے یو فرض دئ په کوم سره چه هلاکت دفع کیږي که چرے خوراک څښاک ئے پریخودلو تر دے چه هلاک شو نو ګناهګار به وي ـــ او جائز نه دئ تمرین کول په کمو خوړو تر داسې حده چه د فر ائضو د اداء کولو نه کمزورے شي ـــ او که چرے انسان اوږے شي او خوراک نه کوي سره د قدرته تردے چي مړ شي نو دا ګناهګار شو'' ـ اسلام داسې قسم غلو او افراط ناښوښه ګڼي ـ د دے وجې نه حضور صلي الله علیه وسلم هغه صحابه کرام رضي الله عنهم منع کړل کومو چه د عبادت په خاطر مسلسل روژے نیول غوښتل او هغه د تنقید او احتجاج طریقه هم واضحه کړه چه د قرآن په اصطلاح کښې ورته ''نهي عن المنکر '' وئیل کیږي، چه د دغه د پاره چرته ممکن وي او ضرورت وي د قوت استعمال اوکړیشي ورنه په پرامن طریقه د د ژبې نه کارواخستل شي''

۳۔ حضرت مفتي تقي عثماني صاحب فرمائي :

" ایک دوسرا مسئلہ بہی یہاں قابل ذکر ہے اور وہ یہ کہ جن صورتوں میں خروج ناجائز ہے، ان میں حکومت کی تبدیلی، حکومت سے کوئی جائز مطالبہ منوانے یا اس سے اپنے حقوق حاصل کرنے کا پرامن طریقہ کیا ہو سکتا ہے؟ اور ان اغراض کیلئے آجکل کی سیاسی تحریکوں میں ہڑتال، بھوک ہڑتال، جلوس وغیرہ کے جو طریقے رائج ہیں، شرعی اعتبار سے وہ کس حد تک جائز ہیں؟ صورت حال یہ ہے کہ آجکل ہماری زندگی کا سارا ڈھانچہ، بالخصوص سیاسی زندگی کا ڈھانچہ، پچھلی چند صدیوں میں مغربی افکار کی بنیاد پر تعمیر ہو رہا ہے، اس لئے بہت سی باتیں سیاسی زندگی کا لازمی حصہ سمجھ لی گئی ہیں، انہی میں سے احتجاج کے یہ طریقے بھی داخل ہیں۔ یعنی ہڑتالیں، جلوس، توڑ پھوڑ وغیرہ جن کے ذریعے حکومت کا پہیہ جام کرکے اس کو بالآخر اس بات پر مجبور کیا جاتا ہے کہ وہ مطالبات تسلیم کرلے۔ اس قسم کی سیاسی تحریکوں کی شرعی حیثیت کے بارے میں گزارش یہ ہے کہ ان میں سے بعض طریقے تو بالکل حرام اور ناجائز ہیں، مثلا بھوک ہڑتال جو خودکشی کی حد تک پہنچ جائے، یا کوئی بھی ایسا طریقہ جس سے کسی کی جان، مال، آبرو پر حملہ کیا جاتا ہو، یا سرکاری املاک کو نقصان پہنچایا جاتا ہو، کیونکہ سرکاری املاک در حقیقت حکمرانوں کی نہیں، بلکہ ملک کے تمام باشندوں کی اجتماعی ملکیت ہوتی ہیں، اور انہیں نقصان پہنچانے سے پوری قوم کا حق پامال ہوتا ہے، اور یہ ایسا گناہ ہے کہ اس کی معافی بہت مشکل ہے، کیونکہ اس کا تعلق حقوق العباد سے ہے جن کے بارے میں یہ اصول ہے کہ وہ صرف توبہ سے معاف نہیں ہوتے، بلکہ صاحب حق کا معاف کرنا ضروری ہے، اور سرکاری املاک میں صاحب حق پوری قوم ہوتی ہے، اور انسان کیلئے یہ بات تقریباً ناممکن ہے کہ وہ قوم کے ہر فرد سے معافی مانگے۔ اس لئے ایسی املاک کو نقصان پہنچانے کا معاملہ شخصی املاک سے زیاد سنگین ہے۔ جہاں تک عام ہڑتال کا تعلق ہے تو فی نفسہ اس کا حکم یہ ہے کہ حکومت کے کسی عمل پر ناراضگی یا احتجاج کے اظہار کیلئے اگر لوگوں سے یہ اپیل کی جائے کہ وہ اپنا کاروبار بند رکھیں، اور اس پر عمل کرنے کیلئے کسی شخص پر کوئی جبر نہ کیا جائے، تو تنہا اس اپیل میں، یا اس اپیل پر خوش دلی سے عمل کرنے میں شرعاً کوئی گناہ نہیں، اور ایسی ہڑتال ایک مباح تدبیر کے درجہ میں فی نفسہ جائز ہے، بشرطیکہ اس میں ایسے استثناء بھی رکھے جائیں جو انسانوں کے لئے ضروری ہیں، مثلاً مریضوں کا علاج وغیرہ۔ لیکن عملاً ہوتا یہ ہے کہ ہڑتال کروانے والے اتنی بات پر بس نہیں کرتے، بلکہ ہڑتال کا لازمی حصہ بن گیا ہے کہ ہڑتال کرانے والے لوگوں کو اپنا کاروبار بند کرنے پر مجبور کرتے ہیں۔ اگر کوئی گاڑی چلا رہا ہے تو اس پر پتھراؤ کیا جاتا ہے، راستے میں رکاوٹیں کھڑی کر دی جاتی ہیں، اور اگر کوئی شخص ہڑتال میں حصہ نہیں لے رہا تو اس کو کم از کم غم وغصہ کا نشانہ بنایا جاتا ہے، یا اُسے زبردستی ہڑتال میں شریک ہونے پر مجبور کیا جتا ہے، یا اُس پر تشدد کیا جاتا ہے۔ ظاہر ہے کہ یہ سارے اقدامات شرعاً بالکل حرام ہیں۔ ان کا نتیجہ یہ ہوتا ہے کہ غریب لوگ جو روز کے روز اپنی روزی کماتے ہیں، وہ اپنی روزی سے محروم ہو جاتے ہیں، بہت سے مریض علاج نہ ملنے کی وجہ سے سختیاں جھیلتے ہیں، اور بہت سے تو موت کے منہ میں چلے جاتے ہیں اور یہ عجیب قصہ ہے کہ ایک طرف جمہوریت اور آزادئ اظہار رائے کا دعوی کیا جاتا ہے، اور دوسری طرف جو شخص اس ہڑتال میں حصہ نہیں لینا چاہتا، اس کو اپنی رائے کے اظہار کا موقع دینے سے انکار کیا جاتا ہے۔ یہ بات نہ تو اسلام کے مطابق ہے، اور نہ یہ اخلاق اور آزادئ اظہار رائے کے اصول کے مطابق ہے۔ عام طور سے آج کل کی ہڑتالیں ان امور سے خالی نہیں ہوتیں۔ ایسی ہڑتال جس میں ہڑتال کی اپیل کرنے والے شرافت کے ساتھ لوگوں سے اپیل

کرکے بیٹھ جائیں کہ جو چاہے دکان کھولے، اور جو چاہے نہ کھولے، ایسی شریفانہ ہڑتال آج کے ماحول میں تقریباً نایاب ہے، اور جب کسی مباح کو ناجائز امور کا ذریعہ بنالیا جائے تو سد ذریعہ کے طور پر اس کو ممنوع ہی کہنا چاہیے، اگرچہ فی نفسہ جائز ہو۔ اس لیے ہڑتال کی یہ تدبیر جس میں توڑ پھوڑ اور امن و امان میں خلل اندوزی اور لوگوں کے کاموں میں رکاوٹ پیدا ہو شرعی تدابیر کے تحت نہیں آتی۔ اور جب سیاست بذات خود مقصود نہیں، مقصود اللہ تعالی کی اطاعت ہے تو اس صورت میں تدبیر بھی وہ اختیار کرنی چاہیے جو شریعت کے مطابق ہو جس میں شریعت کی کوئی خلاف ورزی لازم نہ آئے، ورنہ اس کے کوئی معنی نہیں ہیں کہ اسلام کے احکام توڑ توڑ کر اسلام نافذ کرنے کی تحریک چلائی جائے

جلوسوں کا مسئلہ بھی یہ ہے کہ اگر ان سے لوگوں کو غیر معمولی تکلیف نہ پہنچے تو وہ فی نفسہ جائز ہیں، لیکن عام طور سے ان میں بھی توڑ پھوڑ اور عوام کیلئے مشکلات پیدا ہونا ایک لازمی حصہ بن گیا ہے، اور ظاہر ہے کہ اس پہلو کو جائز نہیں کہا جاسکتا۔

اب سوال یہ پیدا ہوتا ہے کہ کیا شریعت میں حکومت پر دباؤ ڈالنے کا اور کوئی طریقہ ہے؟ جواب یہ ہے کہ حقیقت میں شریعت نے ایک راستہ تجویز کیا ہے کہ اگر قوم اس پر عمل کرلے تو بڑی سے بڑی حکومتوں کے گھٹنے چند گھنٹوں میں ٹکوائے جاسکتے ہیں، اور وہ راستہ یہ ہے کہ اس اصول پر عمل کیا جائے کہ:

لا طاعة لمخلوق في معصية الخالق

"خالق کی معصیت میں کسی مخلوق کی اطاعت نہیں ہے"۔

جب ایک مرتبہ یہ اصول مان لیا جائے کہ کسی مخلوق کے حکم پر خالق کی نافرمانی نہیں کی جاسکتی، تو جتنے غیر اسلامی احکام نافذ ہیں، ساری قوم اگر ان میں شرکت سے انکار کردے تو اندازہ کیجئے کہ حکومت کے پاس کیا چارۂ کار رہ جاتا ہے؟ فرض کیجئے کہ عدالتوں میں بیٹھنے والے جج اگر یہ کہہ دیں کہ جب تک ہمیں شریعت کے مطابق فیصلے کرنے کا اختیار نہیں دیا جاتا، اُس وقت تک ہم عدالتوں میں کام نہیں کریں گے، اور اگر وکلاء یہ کہہ دیں کہ جب تک قوانین شریعت کے مطابق نہیں ہو جاتے، ہم عدالتوں میں بحیثیت وکیل کے پیش نہیں ہونگے، اگر بنک کے ذمہ دار اور بنک کے ملازمین یہ کہہ دیں کہ جب تک بنکاری کا نظام سود سے پاک نہیں ہو جاتا، ہم بنکوں میں کام نہیں کرینگے، اور عوام یہ کہہ دیں کہ جب تک بینکوں کا نظام سود سے پاک نہیں ہو جاتا، اس وقت تک ہم اس سے تمویلی معاملات نہیں کریں گے۔ اگر "لا طاعۃ لمخلوق فی معصیۃ الخالق" کی بنیاد پر جو ان کی شرعی ذمہ داری ہے، سارے عوام مل کر غیر شرعی احکام کی تعمیل سے انکار کردیں تو آپ ذرا تصور کریں کہ جس دن یہ ہڑتال ہوگی، اُس دن چند گھنٹوں میں حکومت گھٹنے ٹیکنے پر مجبور ہو جائے گی۔

یہ شرعی ہڑتال ہے، لیکن چونکہ اس میں اپنے مفادات کو تھوڑا سا قربان کرنا پڑتا ہے، اس لئے اس کی وجہ سے تھوڑی سی دشواری ہے۔ یہ بات تو بڑی آسان ہے کہ ایک آدمی سود کھا رہا ہو، اور پھر کسی سیاسی جماعت کے جلوس میں اسلام کے نعرے بھی لگا رہا ہو، اور یہ بھی آسان ہے کہ غیر اسلامی قوانین کے تحت فیصلے بھی کر رہا ہو، اور یہ بھی ان کی بنیاد پر وکالت بھی کر رہا ہو، لیکن جب جلوس نکلے تو اس میں شامل ہو کر اسلام زندہ باد کے نعرے بھی لگائے، اور ہڑتال بھی کردے۔ لیکن یہ بات کہ

*اپنے وکالت یا قانون دانی یا بینکنگ یا اکاؤنٹس وغیرہ کے پیشے کو بطور ہتھیار کے استعمال کرے، اس کے تھوڑی سی قربانی دینے اور تھوڑی سی ہمت کی ضرورت ہے۔ (اسلام اور سیاسی نظریات : ص:۳۷۱تا۳۷۴)*

حاصل ئے دا دے چه " په جلسو جلوسونو کښ او یا په هړتالونو کښ لازما د خلقو په زور راویستل په هغوي دکانونه بندول ، د نه بندیدلو په صورت کښ هغوي ته نقصان رسول ، او د خلقو املاکو ته نقصان ، مریضانو ته مشکل ،د محتاجو خلقو روزي ګټلو کښ مانع کیدل دا ټول فسادونه وي ، او د نن صبا په دورکښ د جلسو جلوسونو اویا د هړتالونو چونکه د دے نه بغیرکامیابي نه تصورکیږي ؛ لهذا د دے امورو نه د کوم هړتال او یا جلوس خالي کیدل په هغے کښ د خلکو په رضاکارانه طور راوتل او کاروبارونه بندول ، یا د هړتال او د جلوس والا خلقو هغه چاته نقصان نه رسول چه دوي سره برخه نه اخلي ناګزیر امر دئ ۔ او دا امور چونکه ناجائز او حرام دي نو کوم کار چه ذریعه وي ناجائز او حرام امورو ته که هغه په خپله في نفسه مباح هم وي نو د سد ذرائع په بنیاد هغه ناجائز ګرځي "

# څلورم باب: د حاکمیت د موضوع تفصیل

## د عوامو د حاکمیت تردید:

د جمهوریت په بنیادونو کښې یو بنیاد د عوامو حاکمیت دے د حاکمیت معنی داده چه د یو چا د پابندۍ نه په غیر د فیصلے کولو او د حکم د جاري کولو کښې کلي حق او پدي معنی سره د الله تعالی نه ماسوا بل چا ته حاکم ویل شرک دے۔

د اسلامي حکومت او خلافت او د جمهوري حکومت په بنیادونو کښې ډیر فرق دے او لنډ بنیادي فرق او مابه الامتیاز دادے۔

د اسلامي حکومت او لنډ بنیاد د الله تعالی حاکمیت دے چه د ټولو کائناتو اصل حاکمیت د الله تعالی دے او د دنیا د حکمر انانو حکومتونه به د الله تعالی د حاکمیت تابع وي، دا هغه اصولي بنیاد دے چه پدي کښې د اختلاف هیڅ ګنجائش نشته او نه دا هیروے شي نه پکښې کوم مفاهمت کیدے شي۔

او دا د اسلامي سیاست د دستور اولني بنیادي دفعه ده او دا اصل قرآن کریم ځائ په ځائ بیانوي **إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ** (الانعام:۵۷) حاکمیت د الله تعالی نه ماسوا د هیچا دپاره نه دے **أَلَا لَهُ الْحُكْمُ** (الانعام:۶۲) یادساتئ چه حاکمیت صرف الله تعالي لره دے۔ **أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ** (الاعراف:۵۴) یاد ساتي چه خاص الله تعالی لره پیدا کول او حکم دے، پدي وجه د اسلامي حکومت اولني ماخذ وحي ده یعني قرآن او سنت او حکومت د وحي او اسماني هدایاتو نه په غیر نه کوم قانون جوړولي شي او نه کوم اقدام کولي شي او په سیکولر جمهوریت کښې حاکمیت د عوامو حق دے ددي وجې نه د عوامو د نمائنده ګئ په حیثیت پار لمینټ دومره مختار مطلق دے چه دوئ کوم قانون منظورول غواړي نو کولي شي او په ائین کښې ترمیم او تبدیل هم کول شي۔

او د اسلامي حکومت په دستورکښې چه قرآن او سنت دي هیڅ تبدیلي نه شي کیدے نه د قرآن او سنت نه علاوه کوم قانون جوړولي شي او نه دستوریو داسي دفعه منظورولي شي چه هغه د قرآن او سنت د حکم نه خلاف وي۔

بهرحال د جمهوریت دابنیاد او دانظریه چه حاکمیت د عوامو حق دے دا د اسلامي حکومت سره مابه الامتیاز دے او دا نظریه کفر او شرک ده او دا نظریه د قرآن او سنت د ډیرو نصوصو نه خلاف ده مثلا الله تعالی وای:

**إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ** (الانعام: ۵۷، یوسف:۴۰، ۶۷)

**أَلَا لَهُ الْحُكْمُ** (الانعام:۶۲)

أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا (الانعام: ۱۱۴)

وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا (الكهف:۲۶)

فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ (المؤمن: ۱۲)

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ (الشورى: ۱۰)

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ (المائدة: ۵۰)

ددي ایت نه معلومه شوه چه د انسان په جوړ شوي قانون فیصله کول جاهلیت دے او شرعي قانون بهترین قانون دے او د شرعي قانون او نظام غوښتنه د ایمان او یقین تقاضی ده او ابن کثیر رحمه الله ددي ایت په تفسیر کښ د چنګیز خان د کتاب په باره کښ لیکلي چه هر څوک داسي قانون جوړئ هغه کافر دے او قتال ورسره فرض دے:

وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ، الظَّالِمُونَ ، الْفَاسِقُونَ

د شرک في الحاکمیة بیان قرآن کریم په څلورو طریقو کړے یوه طریقه د اثبات ده چه الله تعالی ځانله حاکمیت ثابتوي دویمه طریقه د نفي ده چه د غیر الله نه نفي د حاکمیت کوي دریمه طریقه د نفي او اثبات د مجموعے ده یعني د حصر طریقه ده ځکه په حصر کښ نفي او اثبات دواړه وي او دا د مخکښ نصوصو نه معلومیږي لکه چه په مخکني ایاتونو کښ سوچ وشي نو په بعض ایاتونو کښ صرف اثبات دے په بعض کښ صرف نفي او په بعض کښ نفي او اثبات دواړه دي۔

څلورمه طریقه انکار عن الطاغوت دے یعني کله د الله تعالی د حاکمیت بیان پدي طریقه کوي چه د انکار عن الطاغوت حکم کوي۔

لکه:

فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى (البقرة: ۲۵۶)

وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاؤُهُمُ الطَّاغُوتُ (البقرة :۲۵۷)

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ (النساء:۵۱)

وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ (النساء:۷۶)

وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ (النحل:۳۶)

وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ أَنْ يَعْبُدُوهَا وَأَنَابُوا إِلَى اللَّهِ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ (الزمر:١٧)

**د طاغوت معني:**

**د طاغوت د سلفو نه مختلفې معنی ګاني نقل شوي یوه معنی مجاهد رحمه الله کړي** الطاغوت الشیطان في صورة الانسان یتحاکمون الیه وهو صاحب امرهم **طاغوت د انسان په شکل کښ شیطان وي چه هغه ته خلق د خپلو لانجو د حل کولو دپاره ورځي او دا د دوئ حاکم او قاضي وئ او په سورة نساء کښ حاکم غیرشرعي ته طاغوت ویلي لکه کعب بن اشرف ته۔**

**د شرک في الحاکمیة په رد کښ نورآیاتونه:**

ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ (الجاثية:١٨)

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ (الشوری :٢١)

وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ (ال عمران:٦٤)

**قرطبي رحمه الله وائ چه د هغوئ ربوبیت داوو چه اهل کتابو د خپل ملیانو او پیرانو تحریم او تحلیل منلو په غیرد تحریم او تحلیل د الله تعالی نه:**

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ (التوبة:٣١)

**ددي وضاحت د عدي بن حاتم رضي الله عنه په حدیث کښ راځي۔**

**د توحید في الحاکمیت د اثبات او د شرک في الحاکمیة د رد په باره کښ احادیث:**

**مخکښ مونږ د توحید في الحاکمیة د اثبات په باره کښ او د شرک في الحاکمیة د رد په باره کښ ایاتونه ذکرکړل وس حدیثونه ذکرکوو۔**

**اولني حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم به د تهجدو د مانځه په وخت کښ یوه اوګده دعاء لوستله چه د هغې یو جمله داده** والیك تحاکمت (بخاري باب التهجد مسلم باب دعاء النبي صلی الله علیه وسلم اذا قام من اللیل) **یعني خاص ستا په وحي فیصله کوم۔**

**ابن حجر رحمه الله ددي په شرح کښ وائ چه ځه د ټولو معاملاتو او لانجو فیصله ستا د حکم مطابق کوم او د جاهلیت په مشرکانه رسمونو ئے نه کوم۔**

**دویم حدیث:**

عن صهيب قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم ما امن با القرآن من استحل محارمه (ترمذي ابواب فضائل القرآن)

**د هغه چا په قرآن ایمان نشته چه د قرآن حرام حلال ګڼري**

**دریم حدیث د عدي بن حاتم رضي الله عنه:**

**پدي ایت او حدیث کښ پاپائیت او تهیوکریسي ته شرک ویلي چه په هغه کښ پاپ ته د تحریم او تحلیل مکمل اختیارات ورکړے شویو او هغوي ته اعلی حاکمیت ورکړیو۔**

## د شریعت په مقرر شوو سزاګانو کښ د کمي یا زیاتي کولو حق هیچا ته نه دے حاصل

**مفسرینو په تفسیر د سورة النور:۲ وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ کښ یو حدیث نقل کړي:**

**«یؤتی بوال نقص من الحد سوطا، فیقول: رحمة لعبادك، فیقال له: أأنت أرحم بهم منی، فیؤمر به إلی النار. ویؤتی بمن زاد سوطا فیقول لینتهوا عن معاصیك فیؤمر به إلی النار د قیامت په ورځ به یو حکمران راوستلي شي چه هغه به د حد نه یوه کوړه کمه کړیوي، تپوس به ترینه وشي چه ولي دِ کمي کړي هغه به واي چه ستا په بنده ګانو مِ رحم راتلو، دَ ته به اویلي شي چه آیا ته ځما نه ډیر مهربانه ئے دا جهنم ته بوزي او هغه حکمران به راوستلي شي چه هغه په حد کښ یوه کوړه زیاته کړیوي تپوس به ترینه وشي چه زیاتي دِ ولي کړي۔ دا به اوواي د دے دپاره چه دوي ستادنافرماني نه منع شي۔ دَ ده به په باره کښ به د جهنم امروشي۔**

**فائده: دد ےحدیث نه معلومه شوه چه په شرعي حد کښ یوه کوړه کمول یا زیاتول د جهنم سبب دے۔ نو دهغه چا به څه حال وي چه هغه ټول شرعي نظام بدل کړي۔**

**فائده ۲: دا حدیث ډیرو مفسریو نقل کړي لکه امام رازي علامه زمخشري** (تفسیر کبیر ص:۲۳۹ ج:۱۱، الکشاف ص:۳۷۵ ج:۴)

**خو د دے حدیث په باره کښ علامه زیلعي رحمه الله او ابن المنیر الاسکندري رحمه الله واي لم اجده بهذا اللفظ چه دا حدیث مونږ پدے الفاظو اونه مندلو، البته ابو یعلي د حذیفه رضي الله عنه نه مرفوعا داسي الفاظ نقل کوي:**

**یؤتي بالذي ضرب فوق الحد فیقول له الله تعالي عبدي ضربته فوق الحد فیقول غضبا لک فیقول اکان غضبک اشد من غضبي ویؤتي بالذي قصر فیقول عبدي لم قصرت فیقول رحمته فیقول اکانت رحمتک اشد من رحمتي ثم یؤمر بهما جمیعا الي النار**(حاشیة الکشاف ص:۲۱۰، ج:۳)

**هغه سړي به راوستلي شي چه د حد شرعي نه زیات وهل ئے کړیوي ، الله تعالي به ورته اوواي ځما بنده دا سړي دِ د حد نه زیات ولي وهلي، دا به اوواي چه ستا د دین په وجه غصه راغلي وه، الله تعالي به ورته**

اوواي چه آيا ستا غصه ځما د غصے نه سخته ده او هغه کس به راوستلي شي چه هغه د حد شرعي نه کمي کړي وي الله تعالي به ورته اوواي ځما بنده ولې دِ کمي کړي دا به اوواي چه په دے بنده مِ رحم راغلي وو الله تعالي به ورته اوواي چه آيا ستا رحمت ځما د رحمت نه سخت وو بيا به د دے دواړو په باره کښ د جهنم امروشي۔

## د الله تعالی د حاکمیت اعلی په باره کښ د خلفاء راشدینو طریقه:

د قرآن او سنت نه روستو د مسلمانانو دپاره غوره نمونه د خلفاء راشدینو سنت او طریقه ده په بخاري شریف کښ د ځلورواړه خلفاء راشدینو طریقه داسي بیان شوي:

فاذا وضح الکتاب والسنة لم یتعدوه الی غیره اقتداء با النبي صلی الله علیه وسلم **کله به چه یو حکم په قرآن او سنت کښ واضحه شو نو د هغے نه بئ تجاوز نه کولو د وجے د اقتداء کولونه په نبي صلی الله علیه وسلم پوري۔**

**فائده:**

هرکله چه خلفاء راشدینو د قرآن او سنت په مقابله کښ کوم حکم یا قانون نه شو جوړولي ځکه حاکمیت حق د الله تعالی دے نو د جمهوریت پاسدارانو ته دا حق د کوم ځائ نه حاصل دے۔

امام دارمي رحمه الله د ابوبکر رضي الله عنه طریقه بیانوي:

کان ابوبکر اذا ورد علیه الخصم نظر في کتاب الله (الحدیث) **کله به چه ابوبکر رضي الله عنه ته دوه جګړه کونکو کومه مسئله د فیصلے دپاره راوړه نو اول بئ په قرآن کریم کښ د هغے د حل کولو دپاره فکر کولو که په قرآن کښ بئ د هغے د حل دپاره کومه لارپیدا کړه نو د هغه مطابق بئ فیصله کوله او که په قرآن کښ به نه وو او په سنتو د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ به ورته کوم حکم معلوم شو نو د هغه مطابق فیصله بئ کوله او که په قرآن اوسنت دواړو کښ به د حکم مندلو نه عاجزه شو نو بیا به راووت د مسلمانانو نه بئ تپوس کولو چه ما ته داسي موضوع راغلي آیا تاسو ته پدي باره کښ د رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم فیصله معلومه ده څو کرته داسي شوي چه د ابوبکر رضي الله عنه سره به د مسلمانانو یوه ډله یوځائ کیدله هر یو به پدي حقله د رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصله نقل کوله نو ابوبکر رضي الله عنه به اویل صفتونه دي الله تعالی لره چه په مونږ کښ داسي خلق شته چه زمونږ د پیغمبر سنت ئے یاد دي او که د دینه به هم عاجزه شو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت پیدا کړي نو مشران او غوره خلق بئ راجمع کړل د هغوئ نه بئ مشوره اخستله که د هغوئ به په یوه خبره اتفاق راغلي نو فیصله بئ پے وکړه [بخاري کتاب الاعتصام باب قول الله تعالی وامرهم شوری بینهم،] او دا روایت په سنن بیهقي کښ هم رانقل شوي خو په آخر کښ ویلي شوي چه د عمر رضي الله عنه هم دغه طریقه وه۔**

**فائده:**

**ددینه معلومه شوه چه ابوبکر او عمر رضي الله عنهما د ځان نه کومه فیصله نه شوه کولي ځکه حاکمیت او فیصله د الله تعالی حق دے نو پارلمان ته دا حق د کوم ځائ نه حاصل دے بله ترینه دا خبره معلومه شوه چه که یوه خبره واضحه په قرآن او سنت کښ نه وه نو بیا به مشوره د خواصو او غوره مشرانو نه طلب کولي شي مشوره ورکول د هرچا کار نه دے لکه چه جمهوریت کښ دا حق عوامو ته ورکړي۔**

**د الله تعالی د حاکمیت اعلی په باره کښ د امامانو او فقهاء اقوال:**

۱۔ کان ابو حنیفة رحمه الله یقول حرام علی من لم یعرف دلیلي ان یفتی بکلامي وقال لا ینبغي لاحد ان یقول قولا حتی یعلم ان شریعة رسول الله صلی الله علیه وسلم یقبله

**امام ابو حنیفة رحمه الله به ویل چه د دلیل معلومولو نه په غیر ځما په وینا فتوه ورکول حرام دي او چا ته په دین کښ یوه خبره کول مناسب نه دي ترڅو چه دا معلومات ونکړي چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم شریعت دا خبره قبلوي۔** (المیزان الکبری للشعراني ص۵۸)

**فائده:**

**هرکله چه د امام ابو حنیفة رحمه الله په خبره ہے د دلیل معلومولو نه فیصله نه شي کولي ځکه چه حاکمیت د الله تعالی حق دے نو د عوامو په خبره به څرنګي فیصله وشي او هغه به قانون جوړ شي ځکه که د ټولے دنیا عوام او جمهوریان راجمع شي نو یو امام ابو حنیفه ته نه شي رسیدے۔**

**۲۔ د امام ابو یوسف رحمه الله شاګرد یحی بن یحی رحمه الله وائ چه ما د امام ابو یوسف رحمه الله نه د وفات په وخت کښ واوریدل چه** کل ما افتیت به فقد رجعت عنه الا ما وافق کتاب الله وسنة رسول الله صلی الله علیه وسلم **ما د خپلو ټولو فتوو نه رجوع کړي ماسوا د هغه نه چه د قرآن او سنت سره برابر وي** (تاریخ بغداد ص۲۵۴ ج۱۴)

**فائده:**

**هرکله چه د امام ابو یوسف رحمه الله هغه فتوے له اعتبار نشته چه کومه د قرآن او سنت سره برابر نه وي ځکه حاکمیت یعني حکم کول او قانون جوړول د الله تعالی حق دے ، نو بل چاله دا حق د کوم ځائ نه حاصل دے چه هغه یو حکم او قانون د ځان نه جوړ کړي لکه په جمهوریت کښ دا حق عوامو ته ورکړي شوي۔**

**۳۔ امام مالک رحمه الله وای:**

الحکم حکمان حکم جاء به کتاب الله وحکم احکمته السنة (جامع بیان العلم لابن عبد البر ص۲۵)

**قانون دوه قسمه دے یو هغه دے چه د الله تعالی د کتاب نه ثابت شویوي دویم هغه دے چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنتو نه ثابت شویوي**

**فائده:**

**معلومه شوه چه د کوم قانون مأخذ قرآن او سنت نه وي بلکه پارلمان جوړ کړیوي نو دغه به قانون نه وي ځکه قانون جوړول او حاکمیت حق د الله تعالی دے۔**

**۴۔ امام غزالي رحمه الله وائ:**

فانما النافذ حکم المالك علی مملوکه ولا مالك الا الخالق فلا امر ولاحکم الا اله (المستصفی ص۵۳)

**په غلام او مملوک به صرف دخپل مالک قانون نافذ کولي شي نو څرنګي چه د خالق نه په غیر بل مالک نشته نو د هغه نه په غیر به د بل چا امر حکم قانون نه شي منلي کیدے۔**

**فائده: یعني خالق او مالک صرف الله تعالی دے نو قانون جوړول او حاکمیت صرف د هغه حق دے۔**

**۵۔ ابن الهمام رحمه الله وای: الحاکم لا خلاف في انه رب العالمین** (تحریر الاصوال ص۲۵۰ ج۲)

**پدي کښ هیڅ اختلاف نشته چه حاکم صرف رب العالمین دے۔ او په جمهوریت کښ د حاکمیت حق پارلمان او عوامو ته ورکړي شوي۔**

**۶۔ قاضي بیضاوي رحمه الله وای: الفصل الاول في الحاکم وهو الشرع دون العقل** (منهاج الاصول علی حاشیة تحریر الاصول ص۹۱ ج۱) **د قانون ماخذ شریعت دے عقل نه دے او په جمهوریت کښ خبره التبه ده چه د قانون ماخذ عقل دے نه شریعت۔**

**۷۔ قاضي شوکاني رحمه الله وای: لاخلاف في کون الحاکم الشرع** (ارشاد الفحول ص ) **پدي کښ هیڅ اختلاف نشته چه حاکم د الله تعالی شریعت دے۔ البته جمهوریانو ددي خلاف کړي چه دا حق ئے عوامو ته ورکړے۔**

## شرک في الحکم:

**د تیر شوو آیاتونو او احادیثو او د خلفاء راشدینو د طریقه کار او د امامانو د اقوالو نه معلومه شوه چه حاکمیت د الله تعالی صفت دے او د قانون او نظام مأخذ قرآن او سنت دے۔**

**دا هم معلومه شوه چه د الله تعالی نه ماسوا پارلمان یا عوامو ته یا بل چا ته د حاکمیت شارعیت او د قانون جوړولو واکي ورکول شرک في الحکم دے اوس د شرک في الحکم یعني په قانون جوړولو کښ د شرک کولو په باره کښ یو څو ایاتونه هم ذکر کوو چه په هغه کښ د شرک في الحکم بدي بیان شوي:**

۱ ـ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ (الانعام:۱۲۱)

**امام رازي رحمه الله وای:**

وفيه دليل على ان كل من احل شيئا مما حرم الله او حرم شيئا مما احل الله فهو مشرك وانما سمي مشركا لانه اثبت حاكما سوا الله تعالى وهذا هو الشرك (**تفسير كبير ص۱۸۰ ج ۱۳**)

**پدي ایت کښ ددي خبري دلیل موجود دے چه څوک د الله تعالی حرام حلال کړي یا د الله تعالی حلال حرام کري نو دا مشرک دے ځکه دَ د الله تعالی نه ماسوا حاکم قانون جوړونکي اومنلو او دا شرک دے۔**

**او امام قرطبي وای:**

فدلت الآية على ان من استحل شيئا مما حرم الله تعالى صار به مشركا وقد حرم الله سبحانه الميتة نصا فاذا قبل تحليلها من غيره فقد اشرك (قرطبي ص۷۷ ج۷)

**دا ایت د لالت کوي پدي خبره چه څوک د الله تعالی حرام حلال وګڼړي نو دا مشرک دے او الله تعالی مُرداره په نص یعني ایت سره حرام کړي کله چه دا ددے تحلیل د بل چانه قبول کړي نو شرک ئے وکړو**

**-**

**فائده:**

**ددي عبارتونو نه معلومه شوه چه یوشي حلال ګڼړل یا حرام ګڼړل حکم او قانون دے او ناروا او حرام په قانون کښ جائز ګڼړل یا حلال او روا په قانون کښ منع کول او بندول شرک دے۔**

۲ ـ وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَاؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ (الانعام ص۱۳۷)

**پدي ایت کښ څلور خبري پیجاندل ضروري دي یو دا چه پدي ایت کښ شرک في الحکم دادے چه الله تعالی د اولاد قتلول حرام کړي او دوئ دا کار جائز ګڼړلو لکه نن صبا په حکومتونو کښ ډیرناروا او حرام جائزوي۔**

**دویم دا چه دویته ئے پدي کار مشرکان اویل۔**

**دریم دا چه چا ورله دا کار جائز ګروځولي وو هغویته ئے مشریکان اویل چه هغه د مشرکینو مشران وو په قول د قتاده رحمه الله یا د بت خانو منجاوران وو په قول د زجاج او فراء** (زاد المسير ص۳۵۷ ج۳)

**څلورم دا چه د شرک في الحکم سبب د هلاکت او دتلبیس د دین دے۔**

**د مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله وینا:**

**مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله په تفسیر د سورة النساء: ۱۱۶ کښ وای چه شرک یوازي دا نه دے چه د الله تعالی نه په غیر د بل چا بندګي وکړي شي بلکه د الله تعالی د حکم په مقابل کښ د بل چا حکم منل او خوښول هم شرک دے۔ دغه رنګي مولانا عثماني رحمه الله د سورة النساء په اخري ایت کښ هم د شرک في الحکم تفصیلي بحث کړي چه د الله تعالی نه په غیر بل څوک د شارع حاکم او قانون جوړونکي په حیثیت منل او هغویته دا حق ورکول چه څنګه مو خوښه وي قانون جوړ کړي دا هغه بدترین شرک دے چه نن ﷺ د مسلمانانو حکومتونه ککړ دي او خلق هم ددي مشرکانه نظامونو د لاندي ژوند تیر وي په مسلمانانو دا فرض دي چه ددي مشرکانه نظامونو د ختمولو او د اسلامي توحیدي نظام د قیام په خاطر یو موټي شي مخلصانه هلي ځلي شروع کړي او په هغه ځایونو کښ چه دا قسم هلي ځلي د پخو انه شروع شویوي نوري هم ګړندۍ کړي شي۔**

اللهم انصر من نصر دین محمد صلی الله علیه وسلم وجعلنا منهم

## قانون سازي صرف د الله تعالي حق دے

**په جمهوریت کښ انسانانو ته او پارلیمنټ ته د قانون سازي حق ورکړي۔ حالانکے قانون سازي صرف او صرف د الله تعالي حق دے۔ البته مقننه په انتظامي او غیر منصوصي امورو کښ قو انین جوړولي شي۔ دغه رنګي د منصوصي امورو د تفصیل او تطبیق دپاره اصول جوړولي شي پدے شرط چه د شریعت خلاف نه وي۔**

## د تقنین او تشریع دوه معني ګاني دي۔

**لکه علامه سمیر عالیه لیکلي دي :**

**ان التشریع یراد به احد معنین احدهما ایجاد شرع مبتدأ و ثانیهما بیان حکم تقتضیه شریعة قائمة فالتشریع بالمعني الاول في الاسلام لیس الا لله فهو سبحانه ابتدأ شرعا بما انزله في قرآنه وما اقر علیه رسوله وما نصبه من دلائل وبهذا المعني لا تشریع الا لله (نظام الدولة والعرف والقضاء في الاسلام ص:۴۷، سلطة التشریع في الاسلام للدکتور سمیر عالیه)**

**د تشریع دوه معني ګاني دي، اوله معني دا ده چه د سره نه د شریعت ایجاد کول، دویمه معني دا ده چه هغه حکم بیانول چه موجوده شریعت ئے تقاضي کوي۔ نو تشریع په اعتبار د اولے معني سره په اسلام کښ یواځي د الله تعالي کار دے۔ الله تعالي د اول نه شریعت ایجاد کړي په هغه څه سره چه الله تعالي د هغے ذکر په قرآن کښ کړي او دا رنګي هغه څه دي چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه ثابت دي او هغه دلائل دي چه نبي صلي الله علیه وسلم ذکر کړي پدے معني سره تشریع او قانون جوړول یواځي د الله تعالي حق دے۔**

واما التشريع بالمعني الثاني وهو بيان حكم تقتضيه شريعة قائمة فهذا هو الذي تولاه بعد رسول الله صلي الله عليه وسلم خلفائه من علماء الصحابة ثم خلفائهم من فقهاء التابعين وتابعيهم من الائمة المجتهدين فهؤلاء لم يشرعوا احكاما مبتدأة وانما يستمدوا الاحكام من نصوص القرآن او السنة وما نصبه الشارع من الادلة وما قدره من القواعد العامة۔

**هرچه تشریع ده په اعتبارد دویمې معني سره چه هغه بیان او اظهار دهغه حکم شرعي دے چه موجوده شریعت ئې تقاضي کوي نو دا هغه دے چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه روستو صحابو او تابعین او تبع تابعینو کړي ۔ دوي نوي احکام نه دي ایجاد کړي بلکه دوي د شرعي دلائلو نه (لکه د قرآن او سنت هغه دلائل چه شارع قائم کړي او هغه عمومي قواعد چه شریعت قائم کړي) مدد حاصل کړي او احکام ئې راویستلي۔**

**یعني دوي د ځان نه احکام او قوانین نه دي جوړ کړي بلکه د شریعت یعني د قرآن او سنت نه ئې مستنبط کړي۔**

**فائده:**

**بهرحال د دینه معلومه شوه چه قانون سازي او شریعت جوړول صرف د الله تعالي کار دے او دا ترینه هم معلومه شوه چه امامانو او مجتهدینو او خیر القرون ته هم دا حق نه وو حاصل چه هغه د ځان نه احکام یا قانون سازي وکړي۔ نو عوامو او پارلیمنټ ته د کوم ځاي نه دا حق حاصل دے۔**

**دغه رنګي علامه محمد مبارک په نظام الاسلام ص:۸۶ کښې واي:**

اما الاول وهو التشريع فنري ان المجالس الانتخابية كمجالس النواب ليست مؤهلة لذالك باعتبار ان مصدر التشريع في الاسلام هو الشريعة وليس الشعب والمهم في الامر ان يكون هذا التشريع متحررا من اهواء الحكام ومصالحهم مراعيا لاحكام الشريعة ومصلحة الامة (مراعي الاحكام الشريعة و مصلحة الامة)

**هرچه اول قسم دے یعني د قوانینو جوړول دي نو مونږ ګورو چه انتخابي مجلسونه یعني پارلیمان او د حاکمانو شوري د دے اهلیت نه لري چه قانون جوړ کړي او دا ځکه چه مصدر د قانون جوړولو په اسلام کښې شریعت دے او رعیت نه دے۔ اهمه خبره دا ده چه دغه جوړ قانون به د حاکمانو د خواهشاتو او ګټو نه آزاد وي او د شریعت د احکامو او د امت د مصلحتونو او ګټو لحاظ به کوي۔**

**شاه ولي الله رحمه الله واي چه تشریع د الله تعالي صفت تکویني دے**

**شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله واي چه تشریع یعني قانون جوړول د الله تعالي صفت تکویني دے، په شان د خلق او ایجاد او رزق ورکول او احیاء او امانت وغیره، لکه چه په نورو تکویني امورو کښې**

د الله تعالي سره شریک نشته نو په تشریع کښ هم بل څوک حصه دار نه دے۔ شارع مطلق صرف یو الله تعالي دے البته پیغمبر ته شارع ویلي شوي خو مجازا نه حقیقتا۔ (نداء الفرسان ص:۲۵)

## اختیار د تشریع:

وأما الأمر فينقسم إلى قسمين: أمر كوني، وأمر شرعي.

فأما الأمر الكوني فهو موافق لمعنى الخلق، وأما الأمر الشرعي فهو التشريع الذي هو إحلال الحلال وتحريم الحرام، وهو حق خالص لله سبحانه وتعالى. (شرح كتاب التوحيد لعبدالرحيم السلمي:ج:۱،ص:۴)

" هر چه امر دئ نو دا په دوه قسمه دي : امر تکویني او امر تشریعي ۔ هر چه امر تکویني دي نو هغه موافق دے د خلق د معني سره ، او هر چه امر شرعي دے نو دا هغه قانون سازي ته وئیل شي چه حلالول د حلالو پکښ وي یا حرامول د حرامو پکښ وي، او دا خالص حق دي د الله سبحانه وتعالي"

العلامة محمد الأمين الشنقيطي:

ولما كان التشريع وجميع الأحكام، شرعية كانت أو كونية قدرية، من خصائص الربوبية، كما دلت عليه الآيات المذكورة كان كل من اتبع تشريعاً غير تشريع الله قد اتخذ ذلك المشرِّع رباً، وأشركه مع الله

(الموسوعه العقديه ـ الدرر السنيه:ج:۲،ص:۸۰)

هر کله چه قانون سازي او نور ټول احکام خواه که شرعي وي او که تکویني قدرتي وي دا د ربوبیت د خاصیتو نو نه دے، لکه چه آیت مذکوره (اتخذوا احبارهم ورهبانهم) وړباندے دلالت کوي، نو هر هغه څوک چه تابعداري کوي د داسي قانون سازي چه د الله د قانون سازئ نه علاوه وي یقینا د دغه قانون جوړونکے رب اومنلو، او د الله سره ئے شریک کړو"۔

## د قانون سازي تفصیل او د قانون دري قسمونه

نن سبا د قانون سازي کار د پارلیمنټ په ذمه وي۔ د دے وجه نه پارلیمنټ ته مقننه واي۔ په سیکولر جمهوریت کښ په پارلیمنټ د قانون سازي په باره کښ هیڅ پابندي نه وي ماسوا د هغه پابندي نه چه هغه دستور یا آئین مقرر کړیوي او دغه دستوري پابندي هم پارلیمنټ یا دستور ساز ادارے مقرر کړیوي او چه پارلیمنټ کله اوغواړي نو دغه پابندي د دستوري ترمیم په ذریعه ختمولي هم شي۔ لهذا دانجام په اعتبار په پارلیمنټ هیڅ قسم پابندي نه وي۔ بل طرف ته د اسلامي ریاست اعلي ترین آئین قرآن کریم او د رسول کریم صلي الله علیه وسلم سنت دے او دا داسي آئین دے چه پدیکښ تبدیلي ممکن نه ده۔ لهذا دا ضروري خبره ده چه ټوله قانون سازي به د قرآن او سنت تابع وي۔ ددے اصولو ماتحت په اسلامي ریاست کښ دري قسمه قانون سازي کیدے شي:

۱ـ اول قسم د قرآن او سنت ښكاره حكمونه دي، دا به د ملكي قانون په طور نافذ كولي شي.

۲ـ د قانون سازي دويم قسم دا دے چه كوم حكمونه په قرآن او سنت كښ په ښكاره طور نه وي موجود بلكه دهغې دپاره د اجتهاد او استنباط ضرورت وي. يا د قرآن او سنت هغه حكمونه وي چه دهغې په تشريح كښ د راي د اختلاف گنجائش وي نو هغې ته به هم قانوني شكل وركولي شي خو په اول صورت كښ اجتهاد ته ضرورت رازي په دويم كښ د يو موقف ترجيح ته ضرورت رازي. د دے خبرو دپاره د علم ضرورت وي چه د عدالتونو قاضيان صاحبان علمي مهارت لري.

نن صبا د پارليمنټ اركان دا كار نه شي كولي ځكه هغوي علمي صلاحيت نه لري، د قرآن او سنت نه ناو اقفه وي، بلكه اكثر افراد داسي وي چه هغه د قرآن او سنت د علم صلاحيت هم نه لري يعني د پارليمنټ اركان د دے قسم قانون سازي هيڅ صلاحيت نه لري.

۳ـ دريم قسم قانون سازي دهغه مباح كارونو متعلق ده چه دهغه كارونو په باره كښ د شريعت كوم خاص او متعين حكم نه وي. دا قسم قانون سازي د پارليمنټ اركان هم كولي شي پدے شرط چه كومه جزوي خبره پكښ د شريعت خلاف نه وي.

نن صبا چه پارليمنټ كوم قو انين جوړئ نو په هغه كښ ډير لوي تعداد د دے قسم قانون سازي دے. مثلا د سركاري ملازمينو تنخوا د فوج د نظم نسق قو انين مقننه به يوه ايو اني وي يا دوه ايو اني، د ملك سركاري ژبه به څه وي، د ملك صوبےبه څومره وي، د مقننه اركان او د كابينه افراد به څومره وي. دا خبري اسلام د امت اجتماعي مشورو ته پريښي.

### پارليمنټ دوه قسمه قانون سازي نه شي كولي او يو قسم كولي شي

په موجوده ملكونو كښ په عام طور د قانون سازي ټول كار پارليمنټ كوي بيا چه كله پارليمنټ كوم قانون منظور كړي نو صرف د خانه پوري دپاره صدر مملكت يا بادشاه ته ليږلي شي او هغه پدے دستخط كوي او كه د كوم قانون سره ئے كوم اهم اختلاف وي نو هغه زيات نه زيات د دوباره غور او سوچ دپاره پارليمنټ ته ليږي او كچري پارليمنټ د نظرثاني نه روستو هم په خپله راي قائم وي نو صدر يا بادشاه په دستخط كولو مجبوروي.

بهر حال هر څه دپارليمنټ په لاس كښ وي. حالانكے د مخكښ نه معلومه شوه چه پارليمنټ دوه قسمه قانون سازي نه شي كولي او يو قسم قانون سازي كولي شي.

په بل تعبير د قرآن او سنت د حكمونو په مقابله كښ پارليمنټ قانون سازي نشي كولي كه هغه صريحي حكمونه وي او كه اجتهادي او چه كوم حكمونه يا كوم انتظامي امورپه قرآن و سنت او شريعت كښ نه وي او مباح كارونه وي نو په هغې كښ قانون سازي كولي شي خو چه په كوم جزئيه كښ يا په كوم خاص خبره كښ د قرآن او سنت خلاف نه وي. په هره معامله كښ د هغه معاملے د ماهرينو راي له اعتبار وي نو دغه رنگي د قرآن او سنت د فهم معامله هم د قرآن او سنت د ماهرينو سره تعلق لري.

په موجوده دورکښ دا کارهم غلط دے چه صدر مملکت یا بادشاه د پارلیمنټ په هر منظور شوي قانون مجبورا دستخط کوي، لکه ملکه وکټوریه ویلي وو چه ماته دا خبره غلطه ښکاري لکن دستخط کوم۔

## حکم بغیر ما انزل الله

## یعني وپه وضعي قوانینو او د جاهلیت په زړو رسمونو رواجونو فیصلے کول او د دے په حرمت دیارلس دلائل :

**اول دلیل**

**الله تعالي واي:**

فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى (البقرة:۲۵۶)

پدے آیت کښ د ایمان دپاره کفر بالطاغوت شرط کړي او په طاغوت کښ هرهغه څوک هم راځي چه هغه حکم بغیر ما انزل الله کوي۔ نو معلومه شوه چه د ما انزل الله نه په غیر په وضعي قوانینو او د جاهلیت په رسمونو فیصلے کول حرام دي۔

## د طاغوت اصطلاحي تعریف یعني معني

علامه عبدالرحمن بن حسن رحمه الله په فتح المجید ص:۴۴ کښ او ابن عثیمین په القول المفید ص:۲۳ او ص:۸ ج:۲ کښ واي چه ډیر جامعه معني ابن قیم رحمه الله په اعلام الموقعین ص:۵۰ کښ ذکرکړي:

والطاغوت كل ماتجاوز به العبد حده من معبود او متبوع او مطاع

طاغوت هرهغه شي ته واي چه بنده پکښ د خپل حد او اندازي نه تجاوزوکړي که هغه معبود وي (لکه بتان یا نور معبودان باطله) او که متبوع وي (لکه ساحران کاهنان ناکاره ملیان) او که مطاع وي (لکه ناکاره حکمران ان)۔

اوس دي دریواړوته طاغوت ځکه واي چه د دے معبود په عبادت کښ یا د دے متبوع په تابعداري کښ یا ددے مطاع په طاعت کښ د حد نه تجاوزوشو۔

## د طواغیتو مشران پینځه دي

شیخ محمد بن عبد الوهاب رحمه الله واي چه طواغیت ډیر دي خو مشران ئے پینځه دي:

۱۔ ابلیس لعنه الله

۲ـ هرهغه معبود من دون الله چه په خپل عبادت راضي وي.

۳ـ هرهغه څوک چه خپل عبادت ته خلق رابلي.

۴ـ هرهغه څوک چه دعوه د علم غيب کوي.

۵ـ هرهغه څوک چه حکم بغيرماانزل الله کوي. (انظر مجموع الفتاوي لابن عثيمين ص:۱۵۶ ج:۶)

بهر حال د دغه مذکوره آيت نه معلومه شوه چه کفر بالطاغوت فرض دے او حکم بغير ماانزل الله حرام دے.

دويم دليل

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ (النساء:۶۰)

ابن کثيررحمه الله واي حاصل ئے دا دے چه د طاغوت نه مراد هرهغه څوک دے چه د قرآن او سنت نه علاوه په بل شي فيصلے کوي. (ابن کثير ص:۱۳۸ ج:۴)

علامه سعدي په تيسير الکريم الرحمن ص:۱۹۸ کښې واي:

کل من حکم بغير شرع الله فهو طاغوت

چه د شريعت نه علاوه په بل شي فيصلے کوي نو هغه طاغوت دے

او واي چه ايمان او د شريعت نه علاوه په بل قانون فيصلے کول دواړه نه جمع کيږي.

دريم دليل

وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ (النحل:۳۶)

علامه ابن بازرحمه الله واي چه د الله تعالي عبادت کونکي هغه څوک دے چه هغه الله تعالي ته عاجزي کوي. دهغه اطاعت کوي دهغه په وحي فيصله کوي او د طاغوت عبادت کونکي هغه څوک دے چه هغه غيرالله ته عاجزي کوي او د شريعت نه علاوه په بل شي فيصله کوي او د لااله الا الله تقاضي دا ده چه طاغوت ته به فيصله نه وړي.

څلورم دليل

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ (النساء:۵۹)

ابن کثيررحمه الله واي:

من لم يتحاكم في مجال النزاع الي الكتاب والسنة ولا يرجع اليهما في ذالك فليس مؤمنا بالله ولا باليوم الآخر (تفسير ابن كثير ص:۱۳۷ ج:۴)

**څوک چه په لانجو کښ په قرآن او سنت فيصله نه کوي نو ده ايمان په الله او قيامت نشته**

**يعني د ايمان بالله او د ايمان بالقيامة تقاضي دا ده چه په هره لانجه کښ به فيصله په قرآن او سنت کوي۔**

**علامه سعدي واي:**

فالرد اليهما شرط الايمان (تيسير الكريم الرحمن ص:۱۹۸)

**دايمان شرط دا دے چه فيصله به په قرآن او سنت کوي۔**

**علامه شنقيطي رحمه الله واي:**

لان الكفر بالطاغوت شرط في الايمان بالله او ركن منه كما هو صريح قوله فمن يكفر بالطاغوت (تفسير اضواء البيان ص:۳۹۵ ج:۱)

**يعني كفر بالطاغوت د ايمان شرط يا رکن دے لکه دا خبره پدے آيت کښ صراحة ذکر شوي چه فمن يكفر بالطاغوت۔**

**پينځم دليل**

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا (النساء: ۶۵)

**علامه سعدي رحمه الله واي:**

فمن ترك هذا التحكيم المذكور غير ملتزم له فهو كافر ومن تركه مع التزامه فله حكم امثاله من العاصين (تيسير الكريم الرحمن ص:۲۹۹)

**څوک چه په پيغمبر فيصله نه کوي او په پيغمبر فيصله کول لازم هم نه ګڼړي نو دا کافر کيږي او چه څوک په پيغمبر فيصله نه کوي لکن په پيغمبر فيصله کول لازم ګڼړي نو دا د نورو ګنهګارانو په شان ګنهګار دے۔**

**شپږم دليل**

وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ، الظَّالِمُونَ ،الْفَاسِقُونَ (المائدة:۴۷،۴۵،۴۴)

علامه شنقیطي رحمه الله واي چه د کفر، ظلم، فسق نه کله مراد معصیت وي او کله مراد هغه کفروي چه د ملت نه خارجونکي وي۔ وس چه یو سړي په ماانزل الله فیصله نه کوي، پدے حیثیت چه د انبیاءُ مقابله کوي د الله تعالي حکمونه باطلوي نو دا ظلم فسق اوکفر، هغه کفردے چه انسان ېے د ملت نه خارجیږي۔ او که یو سړي په ماانزل الله فیصله نه کوي او دائے عقیده وي چه دا ځه حرام کارکوم نو دا کفر، ظلم، فسق د ملت نه خارجول نه کوي۔ (اضواء البیان ص:۱۰۳ ج:۱)

اوم دلیل

وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ (المائدة:۴۹)

اتم دلیل

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ (المائدة:۵۰)

ابن کثیررحمه الله په ص:۲۵۱ ج:۵ کښ واي چه څوک د تاتاریانو په شان د ځان نه قانون جوړکړي او هغه په قرآن او سنت مخکښ کوي نو فهو کافر یجب قتاله دا کافر دے قتال ورسره فرض دے لکه د پاکستان قانون یا مروجه جمهوري نظام ۔

نهم دلیل

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ (الشوري:۱۰)

علامه شنقیطي رحمه الله واي چه شرک في الحکم په شان د شرک في العبادة دے، ځکه الله تعالي واي:

وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا (الکهف:۲۶)

او په قرائت د ابن عامر رحمه الله کښ صیغه د نهي راځي ولاتشرك فی حکمه احدا او د شرک في العبادة په باره کښ واي وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا (الکهف:۱۱۰) نو معلومه شوه چه شرک في الحکم او في العبادة دواړه یو شي دے۔ (اضواء البیان ص:۱۶۱ ج:۱۰)

لسم دلیل

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ (الشوري:۲۱)

علامه سعدي رحمه الله واي:

من الشرك والبدع تحريم ما احل الله وتحليل ما حرم الله ونحو ذالك ما اقتضته اهواؤهم (تفسير تيسير الكريم الرحمن)

يعني د شرعو لهم من الدين نه مراد د دوي شرکيات بدعات او تحريم د حلالو او تحليل د حرامو دے په خپل خواهشاتو سره.

**يو لسم دليل**

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ (التوبة:31)

پدے آيت کښ د نصاري وو په باره کښ واي چه دوي د خپلو مليانو او پير انو نه خدايان جوړ کړيو. د دے وجه په حديث د عدي بن حاتم رضي الله عنه کښ راځي چه مليانو او پير انو به حلالو ته حرام اويل نو نصاري و به هغه حرام ګڼړل يا به هغوي حرامو ته حلال ويل نو دوي به حلال ګڼړل فتلك عبادتهم نو دا د مليانو او پير انو عبادت دے. دغه رنګي ابن کثير رحمه الله د حذيفه بن اليمان او عبد الله بن عباس او نورو صحابو نه نقل کوي چه اتبعوهم فيما حللو و حرموا نصاري وو په تحليل تحريم کښ د مليانو او پير انو تابعداري کوله نو په دے وجه ئے مليانو او پير انو ته د دوي خدايان اويل.

د دے مثال دا دے لکه نن صبا جمهوري نظام منل چه په دغه نظام کښ تحليل د حرامو او تحريم د حلالو دے. نو دغه د جمهوريت مشران د نورو خلقو دپاره خدايان وګرځيدل.

پدے مسئله شيخ محمد بن عبد الوهاب په کتاب التوحيد کښ باب ذکر کړي چه باب من اطاع العلماء والامراء في تحريم ما احل الله او تحليل ما حرم الله فقد اتخذهم اربابا من دون الله. يعني هر څوک چه د علماء او حکمر انانو طاعت به تحليل او تحريم کښ وکړي نو دغه اطاعت کونکي د دغه علماء او حکمر انانو نه خدايان جوړ کړل.

عبد الله بن عباس رضي الله عنه واي: يوشك ان تنزل عليكم حجارة من السماء اقول قال رسول الله صلي الله عليه وسلم وتقولون قال ابوبكر و عمر (مجموع الفتاوي ص:215 ج:20 و زاد المعاد ص:195 ج:2)

نزدي ده چه په تاسو د کاڼړو باران وشي ځکه ځه و ايم چه رسول الله داخبره کړي او تاسو ويوي چه ابوبکر او عمر رضي الله عنهما داسي واي.

**فائده:**

هر کله چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د قول په مقابله کښ د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما خبري له اعتبار نشته نو موجوده خودساخته او فرسوده نظامونو له به څه اعتبار وي.

**دو لسم دلیل** په حدیث د ابو امامه باهلي رضي الله عنه کښ راځي رسول الله صلي الله علیه وسلم واي: **لتنقضن عري الاسلام عروة عروة** (الحدیث) خامخا سپړودل کیږي به کړئ د اسلام (یعني حدود احکام او امر نواهي) (النهایة في غریب الحدیث لابن الاثیر ص:۱۹۰ ج:۲) عروة عروة یوه یوه کړي (یعني پرلپسي او یو شئ روستو د بل شي نه ) واولهن نقضا الحکم اول به قضا او شریعت ماتیږي۔

**علامه خطابي واي چه یوه یوه کړي او حکم به پریږدي تردي چه د ملت نه به خارج شي او په کفر کښ به داخل شي** (عون المعبود ص:۱۸۰ ج:۲)

**شیخ سعید بن علي القحطاني به الطاغوت ص:۳۵ کښ واي چه نن صبا دټول براي نام اسلامي ملکونو دا حال دے چه شرعي نظام نشته۔**

**دیارلسم دلیل**

**اجماع د امت ده لکه شیخ سعید بن علي القحطاني په الطاغوت ص:۴۰ کښ واي چه د ټولو علماء پدے اجماع ده چه په وضعي قوانینو او د جاهلیت په هغه رواجونو چه هغه د قرآن او سنت نه خلاف وي فیصله کول حرام دے او چه څوک دا کارکوي نو دا لوي منکر دے لوي جرم دے ښکاره ګناه ده او د حق نه لري ګمراهي ده۔**

## د الله تعالي د بندګانو دپاره شرعي نظام کافي شافي دے او پینځه ضروریات

**د بندګانو د ګټو او فائدو دپاره او د دوي د ضرورتونو دپوره کیدو دپاره د الله تعالي شریعت او نظام کافي شافي دے۔ بل قانون او نظام ته هیڅ ضرورت نه لري، ځکه د الله تعالي نظام مکمل نظام دے، هیڅ قسم نیمګړتیا پکښ نشته، الله تعالي واي:**

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي **(المائده:۳)**

**او د الله تعالي په نظام کښ د هر ضروري څیزونو بیان:**

وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ **(النحل:۸۹)**

## حفاظت د پینځه ضروریاتو

**هر انسان د پینځه ضرورتونو حفاظت ته ضرورت لري چه دا پینځه څیزونه دِ محفوظ وي:**

**۱۔ حفاظت د دین**

**۲۔ حفاظت د نفس**

**۳۔ حفاظت د عقل**

۴- حفاظت د نسب او عزت

۵- حفاظت د مال

او زمونږ په دین کښ د دے ټولو حفاظت شوے- هر بنده اول حفاظت د دین ته ضرورت لري چه د ده دین محفوظ وي د دین حفاظت الله تعالي په مختلفو طریقو کړي:

۱- الله تعالي علم فرض کړي لکه:

فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ (التوبة:۱۲۲)

۲- په مشکلو مسئلو کښ الله تعالي د علماء نه تپوس کول فرض کړي، لکه:

فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (النحل:۴۳)

۳- الله تعالي امیر او خلیفه مقرر کول فرض کړي او په خلیفه اول فرض دا دي چه د دین حفاظت به کوي لکه:

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ (النساء:۵۹)

۴- الله تعالي دین ته دعوت ورکول فرض کړي، لکه:

ادْعُ إِلَى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ (النحل:۱۲۵)

۵- الله تعالي امر بالمعروف او نهي عن المنکر فرض کړي، لکه:

وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ (ال عمران:۱۰۴)

۶- الله تعالي د دین د خورولو او د بلندي دپاره جهاد او قتال فرض کړي، لکه:

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ (الانفال:۳۹)

۷- دغه رنګي الله تعالي د خوارجو او باغیانو سره قتال فرض کړي، لکه:

وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا (الحجرات:۹)

۸- الله تعالي د ولاء او براء دپاره اصول او قواعد مقرر کړي، د دے دپاره چه مسلمان د کار او منافق سره خلط نه کوي او د مسلمان دین خراب نه کړي، لکه:

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ** (ال عمران:۱۱۸)

**۹ـ چه څوک د دین نه مرتد شي هغه له به سزا ورکولې شي، لکه:**

وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ (ال عمران:۸۵)

**او په حدیث کښې راځي:**

من بدل دینه فاقتلوه (بخاري و مسلم)

**۱۰ـ د ګنهګارو دپاره الله تعالي د توبے دروازه کولاء کړې د غرغرے پورې، لکه:**

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِنْ قَرِيبٍ (النساء:۱۷)

## حفاظت د نفس

**دویم ضرورت حفاظت د نفس ته دے چه د بنده بدن دِ محفوظ وي، د نفس حفاظت هم الله تعالي په مختلفو طریقو کړې:**

**۱ـ الله تعالي قصاص مقرر کړې، لکه:**

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (البقرة:۱۷۹)

**۲ـ په قتل خطاء کښې الله تعالي دیت مقرر کړې، لکه:**

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَأً وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ (النساء:۹۲)

**۳ـ د ساعي بالفساد دپاره الله تعالي حد مقرر کړې:**

إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ (المائدة:۳۳)

**۴ـ د مرضونو علاج الله تعالي مباح ګرځولې، لکه:**

يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ (النحل:۶۹)

**۵ـ خودکشي الله تعالي حرام کړې، لکه:**

وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ (النساء:۲۹)

۶- الله تعالي هرهغه شي حرام کړي چه دبدن صحت ته ضرور رسوي، لکه:

وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ (البقرة:۲۲۲)

## حفاظت د عقل:

دريم ضرورت حفاظت د عقل ته دے، نو د عقل د حفاظت دپاره الله تعالي شراب او نشه حرام کړي، لکه:

إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ (المائدة:۹۰)

## حفاظت د نسب او عزت

څلورم ضرورت حفاظت د نسب او عزت ته دے- د نسب او عزت د حفاظت دپاره هم الله تعالي مختلف حکمونه رالیږلي، مثلا:

۱- الله تعالي زناء حرام کړي، **وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا** (الاسراء:۳۲)

۲- د زناء کار دپاره الله تعالي حد مقرر کړي، **الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ** (النور:۲)

۳- د زناکاري ټولي لاري الله تعالي بندي کړي، لکه الله تعالي په نکاح امر کړي، لکه **فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ** (النساء:۳)

۴- چه کله سړي په ځان د زناء نه یریږي نو د وینځي نکاح ئې جائز کړي، لکه **ذَلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ** (النساء:۲۵)

۵- په زنانو الله تعالي پرده فرض کړي، لکه **يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ** (الاحزاب:۵۹)

۶- الله تعالي خپل نظر ښکته کول او د خپل عورت حفاظت کول فرض کړي، لکه **قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ** (النور:۳۰، ۳۱)

۷۔ په طلاقو شوو او متوفي عنها زوجها زنانو الله تعالي عدت فرض کړي، د دے دپاره چه نسب محفوظ شي او د یو سړي نطفه د بل سړي د نطفے سره ګډه نشي۔ **وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ** (البقرة:۲۲۸) او **وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا** (البقرة:۲۳۴)

۸۔ حد قذف الله تعالي مقرر کړي، لکه **وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً** (النور:۴)

۹۔ بدګماني، جاسوسي، غیبت یو بل په ناکاره نومونو یادول الله تعالي حرام کړي، لکه **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا** (الحجرات:۱۲)

**حفاظت د مال:**

شپږم ضرورت حفاظت د مال ته دے چه د بنده مال محفوظ وي، د مال حفاظت هم الله تعالي په مختلفو طریقو کړي:

۱۔ په شریعت کښ د غل نه لاس کټ کول فرض کړي، لکه **وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا** (المائدة:۳۸)

۲۔ سود او د سود لاري الله تعالي حرام کړي، لکه **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُضَاعَفَةً** (ال عمران:۱۳۰)

۳۔ شریعت منع کړي چه د یو بل مالونه په ناروا طریقو مه خوري، لکه **وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ** (البقرة:۱۸۸)

۴۔ د یتیمانانو د مالونو حفاظت الله تعالي فرض کړي، لکه **وَآتُوا الْيَتَامَى أَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ** (النساء:۲)

۵۔ د قرضونو او معاملاتو لیکل الله تعالي فرض کړي، لکه **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ** (البقرة:۲۸۲)

۶۔ بے ځایه مال لګول الله تعالي حرام کړي، لکه **وَلَا تُسْرِفُوا** (الانعام:۱۴۱) او **وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا** (الاسراء:۲۶)

۷۔ بے وقوفه کسانو ته مالونه مه حواله کوي، **وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيَامًا** (النساء:۵)

۸۔ میراث ورکول الله تعالي فرض کړي، لکه **يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ** (النساء:۱۱)

۹- زكوة وركول الله تعالي فرض كړي چه غريبان غلا ته محتاجه نشي، واتوا الزكوة- دغه رنګي انفاق الله تعالي فرض كړي، لكه **وَأَنْفِقُوا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ فِيهِ** (الحديد:۷)

## په شرعي نظام او په ماانزل الله د فيصلو كولو فائدے

د الله تعالي په نظام او په ما انزل الله د فيصلو كولو ډيري فائدي دي، مثلا:

۱- دا حق دے هدايت دے، صراط مستقيم دے، لكه **فَهَدَى اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ** (البقرة:۲۱۳)

۲- پديكښ د بنده ګانو د ټولو اختلافاتو حل دے، **فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ** (النساء:۵۹) او **وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ** (الشوري:۱۰)

۳- دا خير دے

۴- او ښائسته كار دے په اعتبار د انجام سره، لكه **ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا** (النساء:۵۹)

۵- دا سبب دے د قبوليت د توبے

۶- دا سبب د رحمت دے، لكه **وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَحِيمًا** (النساء:۶۴)

۷- دا معيار او علامه د ايمان ده، لكه **فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا** (النساء:۶۵)

۸- دا سبب د مضبوطوالي د ايمان دے، لكه **وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا** (النساء:۶۶)

۹- دا سبب د لوي اجر دے، لكه **وَإِذًا لَآتَيْنَاهُمْ مِنْ لَدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا** (النساء:۶۷)

۱۰- سبب د صراط مستقيم دے، **وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا** (النساء:۶۸)

۱۱- سبب د ملګرتيا د منعم عليهم دے، **وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ** (النساء:۶۹)

۱۲- د الله تعالي فيصله ډير ښائسته فيصله ده يعني سبب د ښائست دے، **وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ** (المائدة:۵۰)

۱۳- د دے انتخاب الله تعالي کړي نو د الله تعالي د انتخاب خوښول دي، لكه **وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا** (المائدة:۳)

۱۴- دا سبب د انصاف دے، لكه **وَمِنْ قَوْمِ مُوسَى أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِالْحَقِّ وَبِهِ يَعْدِلُونَ** (الاعراف:۱۵۹)

۱۵- دا تقاضي د ربوبيت ده نو د الله تعالي په ربوبيت راضي كيدل دي، **ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ** (الشوري:۱۰)

## په وضعي او خود ساخته قوانينو د فيصلو كولو نقصانونه

په وضعي قوانينو د فيصلو كولو ډير نقصانونه دي، مثلا:

۱- دا سبب د تيارو دے، لكه **وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاؤُهُمُ الطَّاغُوتُ يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ** (البقرة:۲۵۷)

۲- دا سبب د تاوان دے، لكه **وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ** (ال عمران:۸۵)

۳- دا تحاكم الي الطاغوت دے، لكه **يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ** (النساء:۶۰)

۴- دا سبب د كفر دے، **وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ** (المائدة:۴۴)

۵- دا سبب د ظلم دے، **وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ** (المائدة:۴۴)

۶- دا سبب د فسق دے، لكه **وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ** (المائدة:۴۵)

۷- دا د جاهليت فيصلے دي، لكه **أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ** (المائدة:۵۰)

۸- دا سبب د نفاق دے، لكه **رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا** (المائدة:۶۱)

۹- دا سبب د مصيبتونو دے په دنيا كښ، **فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَاءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا** (النساء:۶۲)

۱۰- دا سبب د ګمراهي دے، لكه **فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ** (يونس:۳۲)

۱۱ـ دا سبب د تنکوالي د ژوند دے، لکه **وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى** (طه:۱۲۴)

۱۲ـ دا خواهشات دي، لکه **وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ** (الجاثية:۱۸)

## د وضعي قوانینو په رد کښ د علماؤ، اکابرینو عبارتونه

## د وضعي قوانینو نومونه

وضعي قوانین په مختلفو نومونو یادیږي۔ انساني قوانین، وضعي قوانین، ارضي قوانین، انسان خوښ کړي قانون، د عوامي خواهشاتو مظهر، آئین پاکستان، د افغانستان اساسي قانون۔

او د دغه قانون او دین په اساس حکومت کولو ته جمهوري حکومت، ډیموکریټک حکومت واي۔ د دے په رد کښ د علماء عبارتونه۔

### 1ـ د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ قول:

”وَلَا رَيْبَ أَنَّ مَنْ لَمْ يَعْتَقِدْ وُجُوبَ الْحُكْمِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ فَهُوَ كَافِرٌ، فَمَنِ اسْتَحَلَّ أَنْ يَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا يَرَاهُ هُوَ عَدْلًا مِنْ غَيْرِ اتِّبَاعٍ لِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَهُوَ كَافِرٌ ؛ فَإِنَّهُ مَا مِنْ أُمَّةٍ إِلَّا وَهِيَ تَأْمُرُ بِالْحُكْمِ بِالْعَدْلِ، وَقَدْ يَكُونُ الْعَدْلُ فِي دِينِهَا مَا رَآهُ أَكَابِرُهُمْ. بَلْ كَثِيرٌ مِنَ الْمُنْتَسِبِينَ إِلَى الْإِسْلَامِ يَحْكُمُونَ بِعَادَاتِهِمُ الَّتِي لَمْ يُنْزِلْهَا اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى، كَسَوَالِفِ الْبَادِيَةِ، وَكَأَوَامِرِ الْمُطَاعِينَ فِيهِمْ ، وَيَرَوْنَ أَنَّ هَذَا هُوَ الَّذِي يَنْبَغِي الْحُكْمُ بِهِ دُونَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ.

وَهَذَا هُوَ الْكُفْرُ، فَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ أَسْلَمُوا ، وَلَكِنْ مَعَ هَذَا لَا يَحْكُمُونَ إِلَّا بِالْعَادَاتِ الْجَارِيَةِ لَهُمُ الَّتِي يَأْمُرُ بِهَا الْمُطَاعُونَ ، فَهَؤُلَاءِ إِذَا عَرَفُوا أَنَّهُ لَا يَجُوزُ الْحُكْمُ إِلَّا بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَلَمْ يَلْتَزِمُوا ذَلِكَ، بَلِ اسْتَحَلُّوا أَنْ يَحْكُمُوا بِخِلَافِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَهُمْ كُفَّارٌ “ (منهاج السنه النبویه:ج:۵،ص:۱۳۰)

”او هیڅ شک نشته په دے خبره کښ چه یقینا هر هغه څوک چه د الله په نازل کړده نظام باندے فیصله واجب نه ګڼړي نو هغه کافر دئ، پس څوک چه حلال اوګڼړي فیصله کول په مابین د خلقو کښ په هر هغه قانون چه عدل ئے ویني بغیر د دینه چه هغه د نازل کړده قانون الهي اتباع اوکړي نو دا سړے کافر دئ ؛ ځکه چه هر یوامت په عدل سره په فیصله کولو باندے امر کوي ، او کله عدل د هغوي په دین کښ هغه وي کوم ته چه د هغوي مشرانو اکابرینو عدل وئیلے وي، بلکه ډیر اسلام ته نسبت کوونکي خلق شته چه هغوي د خپلو رواجونو په بنیاد داسي فیصلے کوي چه الله تعالي د طرفه نازل شوي نه وي، لکه تیر پلارنیکه د کلو بانډو والاو خبرے، او لکه د هغوي د مشرانو امرونه ، او هغوي دا عقیده لري چه فیصله هم په دے پکارده نه په کتاب الله او سنت رسول سره۔ او هم دغه کفر دئ ؛

پس ډیر خلق داسي دي چه هغوي اسلام قبول کړے دے ، لیکن سره دهغے صرف او صرف په خپلو هغه عاداتو او رواجونو فیصلے کوي د کومو امر چه ورته د هغوي مشران کوي؛ پس دے خلقو چه کله دا خبره اوپیژندله چه د الله د نازل کړي قانون نه علاوه په بل قانون فیصله جائز نه ده او د هغے التزام ئے اونه کړو ، بلکه د الله د نازل کرده قانون نه خلاف ئے په بل قانون فیصله حلال اوګڼړله نو دوي کافران دي "

دغه شان فرمائي:

" وَأَمَّا مَنْ كَانَ مُلْتَزِمًا لِحُكْمِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ بَاطِنًا وَظَاهِرًا، لَكِنْ عَصَى وَاتَّبَعَ هَوَاهُ، فَهَذَا بِمَنْزِلَةِ أَمْثَالِهِ مِنَ الْعُصَاةِ". (منهاج السنه:۔ ج:۵،ص:۱۳۱)

"او هر هغه څوک چه التزام کوي د الله او دهغه د رسول د فیصلے د زړه نه او په ښکاره ،لکن نافرماني اوکړي او د خپل خواهش اتباع اوکړي ، نو دا هم د نورو ګناهګارانو په شان ګناهګار دئ"۔

2۔ علامه ابن القیمؒ:

والصحیح: أن الحکم بغیر ما أنزل الله یتناول الکفرین الأصغر والأکبر بحسب حال الحاکم فإنه إن اعتقد وجوب الحکم بما أنزل الله في هذه الواقعة وعدل عنه عصیانا مع اعترافه بأنه مستحق للعقوبة فهذا کفر أصغر وإن اعتقد أنه غیر واجب وأنه مخیر فیه مع تیقنه أنه حکم الله تعالی فهذا کفر أکبر وإن جهله وأخطأه: فهذا مخطیء له حکم المخطئین.

(مدارج السالکین:ج:۹،ص:۲۲۹،۲۲۸)

"او صحیح خبره دا ده چه د الله تعالي د نازل کړي قانون نه علاوه په بل نظام فیصله کول دا دواړه قسم کفر ته شامل دئ وړوکي کفر ته او غټ کفر ته د فیصله کونکي د حال مطابق،پس که چرے فیصله کونکي دا عقیده لرله چه د الله قانون ته فیصله وړل واجب دي په دے مسئله کښ او د هغے نه عصیانا بل خواه ته وګرځیدلو سره د دے اعترافه چه هغه د سزا مستحق دئ په دے کار نو دا وړوکے کفر (کفر اصغر) دئ او که چرے دا عقیده ئے وه چه شرعي نظام ته فیصله وړل ورباندے ضروري نه دي او زه پکښ اختیارمند یم سره د دے چه دهغه د ایقین وي چه دا د الله تعالي حکم دئ نو دا غټ کفر دئ، او که چرے د الله حکم نه جاهله وو یا پکښ خطا شو نو: دا سړے خطا کار دي او د خطاکارو په حکم کښ دئ"

**3ـ علامه ابن کثیرؒ:**

د{**إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ**} په تفسیر کښ فرمائي:"فَدَلَّ عَلَى أَنَّ مَنْ لَمْ يَتَحَاكَمْ فِي مَجَالِ النِّزَاعِ إِلَى الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَلَا يَرْجِعْ إِلَيْهِمَا فِي ذَلِكَ، فَلَيْسَ مُؤْمِنًا بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ". (تفسیر ابن کثیر:ج:۲،ص:۳۴۵،۴۶)

**" پس دا آیت دلالت کوي پدے باندے چه هر هغه څوک چه په وخت د جګړه کښ فیصله د الله کتاب او د پیغمبر سنت ته نه وړي او رجوع ورته نه کوي نو هغه په الله او ورځ د آخرت باندے ایمان نه لري"**

**4ـ محمد بن عبدالوهابؒ فرمائي:**

"وَالطَّوَاغِيتُ كَثِيرُونَ، ورءوسهم خَمْسَةٌ: إِبْلِيسُ لَعَنَهُ اللهُ، وَمَنْ عُبِدَ وَهُوَ رَاضٍ، وَمَنْ دَعَا النَّاسَ إِلَى عِبَادَةِ نَفْسِهِ، وَمَنْ ادَّعَى شَيْئًا مِنْ عِلْمِ الْغَيْبِ، وَمَنْ حَكَمَ بِغَيْرِ مَا أَنْزَلَ اللهُ" (شرح ثلاثه الاصول لخالد المصلح:ج:۹،ص:٦)

**"طاغوتیان ډیر دي ، او سرونه ئے پنځه دي : ابلیس ملعون ، او هغه څوک چه عبادت ئے کیږي او وربانده راضي وي ، او هغه څوک چه خلق د خپل ځان عبادت ته دعوت کوي ، او څوک چه د علم غیب دعوه کوي، او څوک چه د الله د نازل کړي قانون نه علاوه په بل قانون فیصله کوي"ـ**

**5ـ امام شوکاني رحمه الله:**

**امام شوکانيؒ په خپله زمانه کښ په یمن کښ د دین د ناشنائي متعلق فرمائي پس د بیان د ضائع کولو د هغوي شعائر دین لره:**

**(منها): أنهم يحكمون بالطاغوت ، ويتحاكمون إلى من يعرف الأحكام الطاغوتية منهم، في جميع الأمور التي تنوبهم وتعرض لهم، من غير إنكار ولا حياء من الله ولا من عباده، ولا مخافة من أحد، بل قد يحكمون بذلك بين من يقدرون على الوصول إليه من الرعايا، ومن كان قريبا منهم، وهذا الأمر معلوم لكل أحد من الناس، لا يقدر أحد على إنكاره ودفعه، وهو أشهر من نار على علم.**

**ولا شك ولا ريب أن هذا كفر بالله سبحانه وبشريعته التي أنزلها على رسوله، واختارها لعباده في كتابه، وعلى لسان رسوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"** (الفتح الرباني:ج:۱۱،ص:۵۴۲۹)

**"بعض د هغې نه دا دي: چه هغوي فیصله په طاغوت کوي، او هر هغه چا ته په هغه امورو کښ چه دوي ته پیش راځي فیصله وړي چه کوم څوک په دوي کښ په طاغوتي قوانینو پوهیږي ، بغیر د څه انکاره او د الله او د هغه د بندګانو نه د حیا کولو نه ، او نه د چا د یرے نه ، بلکه کله فیصله کوي په دغه په مابین د هغه چا کښ چه دوي پکښ دیته د رسیدلو باندے قدرت لري چه عوام دي ، او هغه څوک**

چه نزدي وي دویته ، او دا خبره هر چاته معلومه ده ، هیڅوک د دي د انکار او دفع کولو قدرت نه لري ، او دا خبره ډیره مشهوره ده د هغه اور نه چه د غره په سر بلیږي۔ او پدیکښ څه شک شبه نشته چه دا خبره په الله تعالي او د هغه په هغه شریعت باندے کفر دئ، چه په خپل رسول ئے رالیږلي ، او د خپلو بندګانو د پاره ئے خوښ کړے په خپل کتاب کښ، او د خپل رسول ﷺ په ژبه "۔

**6۔ علامه سلیمان بن عبدالله بن عبدالوهابؒ د کتاب التوحید په شرح کښ فرمائي:**

**د باب"** قول الله تعالى الم تر إلى الذين يزعمون أنهم آمنوا بما أنزل اليك وما أنزل من قبلك يريدون أن يتحاكموا إلي الطاغوت **الخ دلاندے:"** فإن من عرف أن لا إله إلا الله فلا بد من الانقياد لحكم الله والتسليم لأمره الذي جاء من عنده على يد رسوله محمد صلى الله عليه وسلم فمن شهد أن لا إله إلا الله ثم عدل إلى تحكيم غير الرسول صلى الله عليه وسلم في موارد النزاع فقد كذب في شهادته

(تیسیر العزیز الحمید شرح کتاب التوحید :ج:۱،ص:۴۸۰)

**پس چا چه دا خبره تصدیق کړه چه د الله نه ماسوا بل اله نشته نو هغه لره د الله د حکم تابعداري او د هغه د حکم کوم چه په ذریعه د نبي پاک صلي الله علیه وسلم راغلے منل ضروري دي ،پس چا چه د لااله ګواهي وکړه او بیا په وخت د اختلاف کښ د فیصلے د پاره بل طرفته لاړو نو ده په شهادت کښ تکذیب اوکړو"۔**

**7۔ علامه عبداللطیف بن عبدالرحمن آل الشیخ :**

**د دوي نه تپوس شویدئ دهغه فیصلو په باره کښ چه کلو بانډو والا وغیره ئے کوي د پلار نیکه د عاداتو په بنیاد چه آیا په دوي باندے پس د وضاحته اطلاق د کفر کیدیشي که نه؟ نو هغه جواب کښ فرمائي:**

من تحاكم إلى غير كتاب الله، وسنة رسوله صلى الله عليه وسلم بعد التعريف، فهو كافر--- والآيات في هذا المعنى كثيرة" **(الدرر السنيه في الاجوبه النجديه:ج:۱۰،ص:۴۲۶)**

**" چا چه فیصله یوړه د الله تعالي د کتاب او سنت رسول صلي الله علیه وسلم نه علاوه بل ځائے ته پس د علم نه ، نو داسي سړے کافر دئ--- بیا ئے آیاتونه ذکر کړي اوو ائي چه پدے سلسله کښ آیاتونه ډیر زیات دي"۔**

**8۔ علامه حمد بن عتیقؒ:۔ د دے آیت په تفسیر کښ فرمائي {أفحكم الجاهلية يبغون ومن أحسن من الله حكما لقوم يؤمنون}.**

قلت: ومثل هؤلاء ما وقع فيه عامة البوادي ومن شابههم، من تحكيم عادات آباءهم، وما وضعه أوائلهم من الموضوعات الملعونة التي يسمونها (شرع الرفاقة) يقدمونها على كتاب الله وسنة رسوله صلى الله عليه

وسلم، ومن فعل ذلك فهو كافر، يجب قتاله حتى يرجع إلى حكم الله ورسوله.( سبيل النجاة والفكاك :ج:۱،ص:۲۹)

"زه وائم :" او د دے پشان هغه خلق دي چه عام د کلو بانډو او د هغوي پشان پکښ و اقع دي ، چه د خپل پلار نیکه د رواجونو په اساس فیصلے کوي ، او کومے موضوعي د لعنت ډ کے خبرے چه د هغوي پخوانو مشرانو جوړے کړي کومو ته چه دوي "شرع الرفاقه" وائي کوم چه هغوي د الله په کتاب او د هغه د رسول صلي الله علیه وسلم په سنتو مخکښ کوي،او څوک هم چه داسي کوي نو هغه کافر دئ،د هغه سره ترهغه جنګ واجب دئ ترڅو چه د الله او د هغه د رسول حکم ته راوګرځي"

**9۔ علامه عبدالرحمن بن ناصرالسعدي:**

''وكل من حاكم إلى غير حكم الله ورسوله فقد حاكم إلى الطاغوت، وإن زعم أنه مؤمن فهو كاذب.

فالإيمان لا يصح ولا يتم إلا بتحكيم الله ورسوله في أصول الدين وفروعه، وفي كل الحقوق---'' -(القول السديد شرح كتاب التوحيد:ج:۱،ص:۱۳٦)

**او هرهغه څوک چه د الله او د هغه د رسول د شریعت نه علاوه بل خواه فیصله یوسي نو د طاغوت ته فیصله ویوړه ، اګرچه د هغه ګمان دا وي چه مؤمن دئ ن خوهغه دروغجن دئ، پس ایمان نه صحیح کیږي سوا د الله او د هغه رسول ته د فیصلے وړلو نه په اصولو د دین کښ او په فروعو د هغے کښ ، او هم په ټولو حقوقو کښ"**

**10۔الامام محمد بن ابراهيم آل الشيخ مفتي الديا ار السعوديه:**

''كل من خالف أمرالله ،و أمر رسوله ،وحكم بين الناس بغير ما أنزل الله متبعا لهواه ، و معتقدا أن الشرع لا يكفي لحل مشاكل الناس ،فهو طاغوت قد خلع ربقة الايمان من عنقه ،وإن زعم أنه مؤمن ---''

(فتاوي الشيخ محمد بن أبراهيم :ج:۱۲،ص:۲۸۹)

**ترجمه:۔ هرهغه څوک چه مخالفت ئے اوکړو د الله د حکم نه ، او د هغه د رسول د حکم نه،او د خلقو په مابین کښ ئے د الله د نازل کړي قانون نه علاوه په بل قانون د خواهش په اتباع کښ فیصله اوکړه ،او پدے عقیده چه شریعت د خلقو د مشکلاتو د حل د پاره نه کافي کیږي،نو دا سړے طاغوت دئ د د ایمان پړے د خپلے غاړے نه ویستلو ،اګرچه د ده ګمان دا وي چه مسلمان دے"**

**۱۱۔علامه شنقیطيؒ:**

’’كل من اتبع تشريعا غير التشريع الذي جاء به سيد ولد آدم محمد بن عبدالله عليه الصلاه والسلام فاتباعه لذلك التشريع المخالف كفر بواح مخرج من الملة الاسلاميه‘‘ (أضواء البيان: ج:۳،ص:۴۱)

**”هر هغه څوک چه د محمد صلي الله عليه وسلم راوړل شوي شريعت نه علاوه د بل تشريع او قانون اتباع ئے اوکړه ، نو د ده دغه اتباع مخالف واضح او ښکاره کفر دئ چه د ملت اسلاميه نه خارج کونکے دے“۔**

12۔ وسئل الداودي عن هذه المسئلة فقال خطيبهم الذي يدعو لهم يوم الجمعة كافر يقتل ولا يستتاب تحرم عليه زوجته ولا يرث ولايورث وماله فيئ للمسلمين‘‘۔

**(دا د بنو عبيد کلمه ويونکي وو او مونځونه يي کول جمعه او جماعت کښ حاضريدل خو په بعض شرعي احکامو کښ بدلون راوستي وو ځکه دغه علماء کرامو په کفر او ارتداد د هغوي باندے فتوي وکړه ، بلکه هغه بعض علماء او خطيبانو ته هم کافر ووئيل چه په دغه حکومت کښ ؤسيدل او هغوي د پاره د جمعي مونځونه کول او په خطبو کي ورته دعاگاني کولي)۔ (از کتاب شيخ دوست محمد شهيدؒ: نداء الفرسان:ص:۴۴)**

**تنبيه:۔ پدي فتوي کښ اگر چه سختي ده خو مونږ نفس د تائيد د پاره نقل کړه چه بعض علماؤ په دے مسئله کښ ډيره سختي هم کړے۔**

## د آئين پاکستان د شريعت مطهره سره يو څو واضحه تضادات

**شريعت مطهره او آئين پاکستان په مينځ کښ د يو څو تضاداتو اجمال:**

**د دي آئين صدرپاکستان ته صوابديد اختيارات حاصل دي، هغه که هر څه کارکوي، اگرکه د شريعت مطهره سره ټکرولي نه خوري، په هيڅ يو کورټ کښ هغه لره څوک چيلنج کولي نشي، حالانکه په شريعت مطهره کښ داسي نه وي، بلکه د شريعت په چوکاټ کښ دننه کاربه کوي، ک نه وي نو مؤاخذه به ئي کيدلي شي۔**

**۲۔ په دي آئين کښ صدر ته دا اختيارحاصل دي چه هريو مجرم اگرکه قاتل ولي نه وي د ورثاؤو د مرضي نه خلاف معاف کولي شي، حالانکه داسي اختيار امير المؤمنين ته نه دي حاصل، بلکه ورثاؤ ته دا اختيار دي که د قاتل نه ديت يا قصاص اخلي او که هسي ئي بخي او که نه ئي بخي۔**

**۳۔ په دي آئين کښ ښځه د وطن مشره جوړيدلي شي، په خلاف د شريعت چه زنانه ته هيڅ کله هم د قوم يا وطن مشري ورکول جائز نه دي۔**

۴- په دي آئين کښ د اعلي منصب د قاضي دپاره مسلمان او عادل کيدل ضروري شرط نه دي او غير مسلم هم قاضی جوړيدلي شي، چيف جسټس بهګوانداس د دي مثال دي او د دي برخلاف په شريعت کښ د قاضي دپاره دا شرط ضروري دي چه دي به د مسلماني سره سره عادل هم وي.

۵- د سود حالت هم زمونږ په وړاندي دي، صرف کاغذي وعده کړي شوي ده چه زرترزره به دا ختم کړي شي ليکن په عدالتي سطح د سود تحفظ کولي کيږي او اسټيټ بينک د نورو بينکونو دپاره باقاعده د سود د شرح اعلان کوي حالانکه په شرعيت کښ د سود خورسره د الله تعالي او رسول صلي الله عليه وسلم له طرفه اعلان د جنګ شوي دي، اوس په دغه جنګ مسلمانان مکلف دي.

۶- شراب څکل په اسلام کښ حرام او د ټولو بدو جرړه ګرځولي شوي ده، برخلاف د پاکستان د آئين چه د هغي لاندي ورته باقاعده پرمټ جاري کولي کيږي او د دي په اخستلو او خرڅ باندي نه څه سزا شته او نه څه تپوس پښتنه، بلکه په پارليمان کښ دننه کوم ځائي چه جمهوري حضرات قانون سازي کوي د شر ابو خالي بوتلي ميلاويږي او که په اسلامي ملک کښ څوک کافر شراب څکي يائي خرڅ کوي دا دهغه خپله معامله ده ليکن په دي معامله کښ مسلمان به ورسره مرسته نه کوي او دلته ورسره آئين مددګار دي.

۷- په شريعت کښ د غل سزا لاس پريکول دي، په خلاف د آئينِ پاکستان چه په هغي کښ د غل سزا زياتونه زياته د دريو کالو نه تر اوه کالو پوري قيد دي.

۸- په شريعت کښ د ناواده کړي زناکار سزا سل دري وهل دي او د واده کړي دپاره رجم (سنګسارول) دي او د پاکستان په آئين کښ د دوي سزا پينځه کاله قيد او لس زره روپي جرمانه ده.

۹- په شريعت کښ د بلوغت شمار د بلوغت د آثارو په ظاهري دلو او ياد جيني دپاره زيات نه زيات دولس کاله او د هلک دپاره څوارلس کاله وي او په دي آئين کښ د بلوغت شمار د اتلسو کالونه شروع کيږي که هلک وي او که جيني.

۱۰- په شريعت کښ الله تعالي د ميراث حصي مقرر کړي دي چه په هغي کښ هر وارث ته خپل حق ورکولي کيږي او په دي آئين کښ د دي خبري اجازت ورکړي شوي دي که چري د مرګ نه مخکښ يو کس د خپل ټول مال و متاع وصيت د يو وارث دپاره يا غير وارث دپاره اوکړي نو هغه منلي کيږي.

دا پوره لس دي او د دي نه علاوه نو هم ډير دي خو عاقل لره اشاره کافي وي، کوم خلق چه آئين پاکستان ته اسلامي واي يا ئي اسلامي ګڼړي، دهغوي دپاره په طور د حجت دا کافي دي انشاء الله.

### د كثرة الآراء په بنياد د فيصلے كولو شرعي حيثيت:

يعني چه كوم طرف ته رائ ګاني ډيري وي نو په هغه فيصله كول شرعا څه حكم لري.

په جهوریت کښ کثرة الآراء د حق او باطل بنیاد دے او هر څه پدي بنیاد کولي شي پدي باره کښ علامه اقبال ډیره ښه خبره کړي۔

جمهوریت ایک طرز حکومت ہے که جس میں بندوں کو گنا کرتے ہیں تولانہیں کرتے

یعنی په جمهوریت کښ د خلقو صفاتو ته نه ګوري بلکه شمارکولي شي چه د څومره خلقو څه رائ ده۔

اوس ګورو چه آیا په شریعت کښ د رائ کثرت له اعتبار شته او که نه نو دا مسئله تفصیل ته محتاجه ده ځکه پدي کښ ډیر صورتونه دي۔

## اکثریت دوه قسمه دے یو د خواصو دویم د عوامو:

اول پدي خبره ځان پوهه کول پکار دي چه اکثریت دوه قسمه دي یو اکثریت د خواصو دویم اکثریت د عوامو دے۔ زمونږ بحث په اکثریت د خواصو کښ دے یعني اکثریت د هغه خلقو چه هغه په خاص صفاتو موصوف وي لکه روستو به ددوئ د صفاتو بیان راشي۔

هر چه اکثریت د عوامو دےچه داد جمهوریت اکثریت دے چه پدي کښ د خاص او عام نظر بر ابر وي نوداپه شریعت کښ دلیل نه دےاود حق او باطل دپاره معیار نه دے او پدي ډیر نصوص دلالت کوي لکه الله تعالی وائ **وان تطع اکثر من فی الارض یضلوك عن سبیل الله** یعني د اکثریت تابعداري کول سبب د ضلالت دے بلکه معیار د حق او باطل قرآن او سنت دے او قوت د دلیل دے خلق وای سل پاپړ او یو لوړ۔

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وائ چه نن ورځ دا ډیره عجیبه مسئله ده چه ټول خلق پدي فکر کښ دي چه حق د اکثریت والا په طرف کښ دے زمادوستانو دا خبره تر یو حده پوري صحیح ده لیکن پدي باندي پوهه ضروري ده چه مراد د رائ نه د چا رائ ده آیا د عوامو کاالانعام رائ ده که چرته مقصود د عوامو رائ شي نو بیا څه وجه ده چه هود علیه السلام د خپل قوم په رائ عمل ونکړو ټول قوم ئے په یو طرف دے او هود علیه السلام په بل طرف دے ولي توحید پري نه ښود او ولي بت پرستي اختیار نه کړه ولي ئے د اختلاف تهمت د خپل قوم سره قبول کړو وجه داوه چه دده قوم ډیر زیات جاهلان وو او د دوئ جاهلانه نظریات وو۔ (فضائل العلم واالخشیة ص۳۰ معارف حکیم الامة ص ٦١٧)

زه وایم چه دغه رنګي حال د ټولو انبیاء وو لکه نوح صالح ابراهیم شعیب لوط علیهم الصلوة والسلام چه ددي ټولو نه اکثریت خلاف وو نو که مطلق اکثریت او د جمهوریت اکثریت دلیل شي نو دا خو د ټولو انبیاء د عوت باطلیږي یعني جمهوریت منل د ټولو انبیاء کرامو دعوت باطلول دي۔

## د رائ په کثرت د فیصلے کولو مختلف صورتونه او حکمونه دي:

د رائ په کثرت د فیصلے کولو مختلف حکمونه دي کله حرام وي کله مباح وي کله واجب وي کله اولی او راجح وي ځکه صورتونه پکښ مختلف دي۔

**په یو صورت کښې دراي په کثرت فیصله کول حرام دي۔**

په یو صورت کښې د رائ په کثرت فیصله کول حرام دي چه کله په یو مسئله کښې شرعي حکم معلوم وي او صریحي نص موجود وئ بلکه په دغه صورت کښې رائ او مشوره اخستل یا اجتهاد او قیاس کول هم حرام دي۔

مثلا شراب سود زناء حرام دي او ددي په حرمت واضحه نصوص موجود دي اوس که اکثر عوام یا پارلمان ددي کارونو اجازه ورکوي او دا کارونه حلال او روا ګڼړي نو دغه اکثریت دلیل نه دے بلکه دغه اکثریت کفر دے ځکه چه څوک اتفاقي حرام حلال ګڼړي یا اتفاقي حلال حرام ګڼړي نو دا کفر دے تردي چه یو لوئ مجتهد او لوئ امام ته هم دا حق نه دے حاصل چه هغه په یو منصوصي مسئله کښې قیاس او اجتهاد وکړي یا متبادله رائ پیش کړي، نو د عوامو یا پارلمان اکثریت ته به دا حق د کوم ځائ نه حاصل شي۔ په موجوده جمهوریت کښې یو نقصان دادے چه د صریحي نصوصو په مقابله کښې دوئ په اکثریت فیصله کوي دا کارنارا او لوئ جرم دے۔

**دلائل:**

پدي خبره ډیر دلائل دي لکه الله تعالی وائ **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ** او الله تعالی وائ **وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ**

دغه رنګي په مشکوة شریف کتاب الاعتصام با الکتاب والسنة کښې حدیثونه راځي۔

د عائشې رضي الله عنها د بهتان په معامله کښې نبي صلی الله علیه وسلم مشوره اخستله چه کله د عائشې رضي الله عنها براءت نازل شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مشوره پریښودله او په تهمت لږونکو ئے حد قذف قائم کړو۔

دغه رنګي په غزوه د حدیبیه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د اکثریت رائ رد کړیوه ځکه هلته د الله تعالی حکم موجود وو، لکه اکرم ضیاء په عصر الخلافة الراشده ص ۹۸ کښې وائ <u>واما رده لرأي الاکثرية في غزوة الحدينية فيرجع الی امر الله له ولا اجتهاد في موضع النص ولاتقدم علی امر الله</u> او هر چه دا خبره ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د صلح حدیبیه په موقعه د اکثرو صحابه کرامو په نظر عمل نه دے کړي نو د هغې وجه داده چه رسول الله صلي الله علیه وسلم ته الله تعالی د صلح حکم کړیو او د نص په ځائ کښې اجتهاد نه شي کیدے او نه د الله تعالی په حکم د بل چا خبره مخکښې کیدے شي۔

**په دویم صورت کښ د رائ په کثرت فیصله کول مباح دي:**

**دویم صورت دادی چه په قرآن او سنت کښ مانع نه وي موجود نو په اکثریت فیصله کول مباح دي لکه اکرم ضیاء په الخلافة الرشد ص ۹۸ کښ وائ** ومادام لم یرد ما یمنع من الاخذ برأي الاکثریة في الکتاب والسنة فهو امر مباح **ترځو چه په قرآن او حدیث کښ داسي دلیل موجود نه وي چه هغه د اکثریت په رائ د عمل کولو دپاره مانع وي نو په اکثریت عمل کول مباح دي۔**

**د رائ ګانو په اکثریت د فیصلے کولو مثالونه:**

**۱۔ د بدر د قیدیانو په باره کښ د اکثرو رائ دا وه چه د دوئ نه دِ فدیه واخسلتي شي رسول الله صلی الله علیه وسلم په اکثریت فیصله وکړه۔**

**۲۔ د احد په جنګ کښ د اکثرو رائ داوه چه د مشرکینو سره جنګ ته بهر ته اوزو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د رایو په اکثریت فیصله وکړه۔**

**۳۔ د طائف د محاصري په وخت هم رسول الله صلی الله علیه وسلم په اکثریت د رایو عمل وکړو ځکه نبي صلی الله علیه وسلم اراده وکړه چه د طائف محاصره ختمه کړي خود مسلمانانو رائ دا وه چه دافتحه شي نو نبي صلی الله علیه وسلم دا خبره صبا ته روستو کړه تردي چه صحابه کرام د محاصري په ختمولو راضي شو۔**

**فائده:**

**د اُحد او د طائف په و اقعه کښ نبي صلی الله علیه وسلم خپله رائ او خپل واک او اختیار پریښي او د اکثریت په رائ فیصله کړي۔**

**په دریم صورت کښ دا رائ ګانو په کثرت فیصله کول واجب دي:**

**لکه اکرم ضیاء په الخلافة الراشده ص ۹۸ کښ وائ:**

اذاً یتحول الامر الی واجب اذا تعلقت مصالح الامة به واذا افضي ترکه الی حدوث مفاسد عامة کا الاستبداد او اضطراب الامن بسب تفرق آراء الناس وعدم مراعاتها

**کله د مباح په ځائ په اکثریت فیصله کول واجب ګرځي چه کله په اکثریت باندي په فیصله کولو کښ عمومي مصلحت وي او یا په اکثریت فیصله نه کول عمومي فساد ته مفضي کیږي لکه امیر او حاکم خود سره شي او یا د خلقو د نظرونو دنه منلو په وجه په خلقو کښ او امن کښ اضطراب او ګډ وډي راځي۔**

حاصل دا شو چه په دوه صورتونو کښ په اکثریت فیصله کول واجب کیږي یو دا چه په اکثریت په فیصله کولو کښ عمومي مصلحت وي ځکه د یو مباح عمل سره چه کله د امت مصلح مربوط شي نو دا واجب ګرځي۔

دویم داچه په اکثریت په فیصله نه کولو کښ عمومي فساد راځي مثلا امیر او حاکم خو دسره کیږي یا امن خر ابیږي پدي وجه چه د عمومي رائ ګانو خیالي ونه ساتلي شي۔

### د خلفاء راشدینو په دورکښ د رائ په کثرت د فیصلے کولو مثالونه:

۱۔د ابو بکر رضي الله عنه تاکنه په سقیفه د بنو ساعده کښ د رائ په اکثریت شویوه د بعض بنوهاشمو او په انصاروکښ د سعد بن معاذ رضي الله عنه رائ دَده په حق کښ نه وه۔

۲۔ د عمررضي الله عنه تاکنه هم د شوری او د رائ په اکثریت شویوه۔

۳۔ حضرت عمر رضي الله عنه چه د خپل ځان نه د روسته خلیفه د انتخاب دپاره کومه شپږ کسیزه شوری مقررکړیوه نو هغوئ هم د حضرت عثمان رضي الله عنه تاکنه د رایو په اکثریت کړیوه۔

عمر رضي الله عنه ورته هدایات کړیوه چه که ستاسو د ټولو د رایو په اتفاق سره راتلونکي خلیفه وټاکل شي نو دا به ډیره ښه وي او که ستاسو په رایو کښ اختلاف راشي نو د اکثریت رائ چه کوم طرف ته وي نو په هغے د عمل وشي او که څوک د اقلیت فیصلي ته غاړه کیدي نو عبرتناکه سزا دِ ورکړي شي۔

عمررضي الله عنه صهیب رضي الله عنه ته اویل:

فقم یا صهیب علی رؤوسهم با السیف فان بایع خمسة ونقص واحد فجلد رأسه با السیف وان بایع اربعة ونقص رجلان فاجلد رؤسهما بالسیف حتی یستوثقوا (طبقات د ابن سعد ص ۲۶۴ ج۳)

ته د دغه شپږو کسانو په سرونو توره په لاس ودریږي که په دوئ کښ پینځه کسان د چا په لاس بیعت وکړي او یو تن ئے نه کوي نو د هغه سر په توره اووهه او که څلورکسان د یو چا سره بیعت وکړي او دوه تنه ئے نه مني نو د دغه دوه کسانو سرونه په توره اووهه تردي چه دوئ ټول په یو سړي د اعتماد اظهار وکړي۔

فائده:

حضرت عمر ضي الله عنه دا رایو په اکثریت فیصله کول د شریعت دومره کلکه او یقیني فیصله ګرځولي چه مخالفت کونکي ئے د قتل مستحق ګڼړي۔(د شوری شرعي حیثیت ص ۲۶۲ ریاست علی بجنوري)

کاتب الحروف وائ یعني د خواصو د اکثریت فیصله منل ئے په نورو خلقو واجب ګرځولي

**په څلورم صورت کښ د رائ ګانو په کثرت فیصله کول اولی او راجح دي:**

**علامه ابن عابدین شامي رحمه الله وائ:**

اذا لم يوجد في الحادثة عن واحد منهم جواب ظاهر وتكلم فيه مشائخ المتأخرين قولا واحدا يؤخذ به فان اختلفوا يؤخذ بقول الاكثرين **(شرح عقود ص۷۸)**

**که په یوه نوي مسئله کښ د احنافو د امامانو نه کوم واضحه قول موجود نه وو او متأخرینو په کښ صرف یو قول کړیو نو په هغه یو قول به عمل کیدے شي او که د متأخرینو په مینځ کښ اختلاف راشي نو بیا به د اکثرو په قول عمل کیدے شي لان المقرر عن المشائخ انه متى اختلف في المسئلة فالعبرة بما قاله الاكثر ځکه د مشائخو په مینځ کښ دا خبره فیصله شوي چه کله په یوه مسئله کښ اختلاف راشي نو هغه قول به معتبروي چه کوم اکثر علماء اختیار کړي وي۔**

**فائده:**

**هرکله چه په دیني معاملاتو کښ د اختلاف په صورت کښ د اکثریت قول له ترجیح ده نو په انتظامي امورو کښ هم په طریقه اولی سره اکثریت له ترجیح پکار ده بهرحال کثرت د رایو له ترجیح کیدے شي۔**

**فائده:**

**مونږ څلور صورتونه ذکر کړل یو صورت د حرمت دویم د وجوب دریم د اباحت ۔څلورم د ترجیح خو یاده دِ وي چه صورت د اباحت او ترجیح یو بل ته نذدي دي یعني دواړه جمع کیدے شي۔**

**د ټولو انبیاء خلاف د عوامو او اکثریت فیصله**

**کچري د اکثریت فیصله او عوامي فیصله معتبر شي نو د ټولو انبیاء دعوت باطلیږي۔ د جمهوریت په اصولو کښ یوه خبره دا ده چه اعتبار فیصلے د اکثریت لره دے او اعتبار عوامي فیصلے لره دے، یعني چه د عوامو اکثریت کومه فیصله وکړي نو هغه به معتبره وي۔ نو کچري دا خبره صحیح شي نو د ټولو انبیاء دعوت باطلیږي، ځکه ټول انبیاء به دروغجن شي او د رجم مستحق به شي او د شړلو مستحق به شي او د وهلو او سیزلو مستحق به شي، ځکه همیشه دپاره اکثریت د انبیاء خلاف دا قسم فیصلے کړي دي۔**

**د نوح علیه السلام خلاف د عوامو د اکثریت فیصله:**

**د نوح علیه السلام خلاف د عوامو فیصله د تکذیب وه او د رجم وه، لکه الله تعالي وای كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ الْمُرْسَلِينَ س**(الشعراء:۱۰۵) **او بیا وای قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَا نُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمَرْجُومِينَ** (الشعراء:۱۱٦)

**د هود علیه السلام خلاف د قوم عاد عوامي فیصله:**

كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ (الشعراء:۱۲۳)

**د صالح عليه السلام په خلاف د قوم ثمود د اكثريت فيصله**

كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ (الشعراء:۱۴۱)

**د لوط عليه السلام خلاف د قومي اكثريت فيصله**

**كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ الْمُرْسَلِينَ** (الشعراء:۱٦۰)

**بيا واي**

**قَالُوا لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ يَا لُوطُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِينَ** (الشعراء:۱٦۷)

**د شعيب عليه السلام خلاف د اكثريت فيصله**

**كَذَّبَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ الْمُرْسَلِينَ** (الشعراء:۱۷٦)

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لَنُخْرِجَنَّكَ يَاشُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا (الاعراف:۸۸)

**د ابراهيم عليه السلام خلاف زبردست اكثريت وو**

**د ابراهيم عليه السلام خلاف اكثريت د سيزلو او وجلو فيصله کړېوه، لکه:**

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا اقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ فَأَنْجَاهُ اللَّهُ مِنَ النَّارِ (العنكبوت:۲۴)

**په موسي عليه السلام او فرعون کښ اکثريت د فرعون سره وو:**

إِنَّ هَؤُلَاءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ (الشعراء:۵۴)

**دغه رنګي فرعون د موسي عليه السلام خلاف د عوامي قوت د مظاهرے دپاره د ټولو ښارونو نه د عوامو د راغونډلو او د غټ اجتماع او ريلي انتظام وکړو او عوامو د فرعون دے مهم ته سو فيصد مثبت جواب ورکړو۔**

**اكثريت د عوامو هميشه د انبياء او د حق خلاف وي**

**د مذکوره آياتونو او دغه رنګي د نورو ډيرو آياتونو نه دا خبره معلوميږي چه اكثريت د عوامو هميشه د انبياء او د حق خلاف وي۔**

## دالله والا همیشه په اقلیت کښ وي

په انسانانو کښ د الله تعالي والا او نیکان خلق همیشه په اقلیت کښ وي لکه **وَقَلِيلٌ مِنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ** یعني شکرګزار په اقلیت کښ وي۔ **فَقَلِيلًا مَا يُؤْمِنُونَ** پس ډیرکم ایمان راوړي تاسو۔

او ډیرکرته الله تعالي د اقلیت والا له غلبه ورکوي۔

**كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ** (ډیرکرته د اقلیت والا په اکثریت غالبه کیږي د الله تعالي په حکم۔)

## په اهل کتابو او مشرکانو او مؤمنانو او عوامو کښ د اکثریت کردار او فیصلے

### په اهل کتابو کښ د اکثریت کردار او فیصلے

**مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ** (ال عمران:۱۱۰)

یعني په اهل کتابو کښ اکثریت د فاسقانو وو۔

**وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ** (المائده:٦٦)

یعني په اهل کتابو کښ اکثریت د بد عمله وو۔

وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا (المائده:٦٤)

یعني په قرآن کریم سره د دوي د اکثریت کفر او سرکشي ډیریږي۔

ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِنْكُمْ وَأَنْتُمْ مُعْرِضُونَ (البقرة:۸۳)

یعني په اهل کتابو کښ اکثرخلقو د حق خبري نه مخ واړولو، البته اقلیت په حق خبري کلک پاتي شو،

**فَقَلِيلًا مَا يُؤْمِنُونَ** (البقرة:۸۸) یعني د ایمان والا په اقلیت کښ دي۔

**فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ** (البقرة:۲۴٦)

یعني چه په اهل کتابو کله جهاد فرض شو نو اکثریت د جهاد نه مخ واړولو البته اقلیت جهاد وکړو۔

وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَى خَائِنَةٍ مِنْهُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ (المائدة:۱۳)

یعني په اهل کتابو کښ اکثریت د خائنانو وو او اقلیت د امینانو وو۔

**په مشرکانو او کافرانو کښې د اکثریت کردار**

**وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ** (المائدة:۱۰۳) **(اکثر د مشرکانو نه بې عقله دي)**

**وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ** (الانفال:۳۴) **(اکثر د مشرکانو نه بې علمه دي)**

**په مؤمنانو کښې د اکثریت کردار**

**وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ** (یوسف:۱۰۶) **(یعني اکثر مؤمنان د ایمان سره شرک هم کوي۔**

**په عامو خلقو کښې اکثریت د بې لوظه او فاسقانو دے**

**وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِنْ عَهْدٍ وَإِنْ وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ (الاعراف:۱۰۲)**

**او مونږ او نه مندلو اکثر خلقو له وفاداري په لوظونو او مونږ اکثر فاسقان اومندل**

**په عامو خلقو کښې اکثریت د اصلاح حامیان نه دي**

**فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ مِنْ قَبْلِكُمْ أُولُو بَقِيَّةٍ يَنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا مِمَّنْ أَنْجَيْنَا مِنْهُمْ** (هود:۱۱۶)

**یعني په مخکنو پیړو کښې اکثریت نهي عن الفساد نه کوله، البته اقلیت نهي عن الفساد کړیوه او نجات هم صرف اقلیت ته میلاؤ شویو۔**

**ابلیس هم دعوه د اکثریت کوله**

**وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ (الاعراف:۱۷)**

**لَأَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُ إِلَّا قَلِيلًا (الاسراء:۶۲)**

**الله تعالي هم د ابلیس د اکثریت د دعوے تصدیق کوي**

**وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (سبا:۲۰)**

**فائده:**

**د جمهوریت او د اکثریت د فیصلو او کردار په باره کښې په سوونو آیاتونه دي مونږ دنمونې په طور ځاي په ځاي یو څو آیاتونه زکر کړل۔ ددغه آیاتونو نه ډیري خبري واضحه شوي۔ یوه خبره ترینه دا هم واضحه شوه چه پدے آیاتونو کښې د ټولو انسانانو د اکثریت د راي ګانو، ووټونو او فیصلو او کردار اجمالا بیان دے چه د دوي راي او ووټ د چاپه باره کښې استعمال شوي د دوي فیصلې او کردار څه وو۔**

او دا خبره واضحه شوه چه د ټول انبیاء د امتونو د اکثریت فیصلې او کردار راي او ووټ د انبیاء د کردار او تعلیماتو نه قطعا خلاف وو، که هغه ښکاره کافران او مشرکان وو او که هغه یهود، نصاري او منافقان وو او که هغه عام خلق وو. اوس کچري یو منصف مزاج انسان د جمهوریت ړوند تقلید پریږدي او په دے حقائقو نظر اوغورزئ نو د جمهوریت د دے اصل او عقیدے په بطلان کښ بۀ هیڅ شک پاتي نه شي چه اکثریت معیار حق دے.

## پینځم باب: اسلام او سیاست

د جمهوريت په بنيادونو کښ يو بنياد د سيکولرازم نظريه ده ددي حاصل دا وو چه سياست د اسلام نه جدا ګڼړل۔

نو اوس ګورو چه آيا سياست د اسلام نه جدا دے او که نه د اسلام سره يے څه تعلق شته او که نه۔

### د سياست په باره کښ دري قسمه نظريے دي:

نو پدي باره کښ دري قسمه نظريے دي، په يوه نظريه کښ تفريط دے په دويمه کښ افراط دے په دريمه کښ اعتدال۔

د تفريط او کمي والا نظريه د سيکولرزم نظريه ده چه د هغوئ په نيز اسلام هم د نورو مذهبونو په شان د انسان ذاتي او انفرادي معامله ده۔ د سياست او اسلام د يو بل سره هيڅ تعلق نشته او دا نظريه د عيسائ تهيو کريسي د نقصانونو په رد عمل کښ راغلي وه او د سيکولر جمهوريت نه روستو دا نظريه په دنيا کښ مقبول شوه۔

او ددي نظريه ته مزيد تقويت د بعض هغه ديني حلقو د طرز عمل نه هم ميلاؤ شو چه هغوي د خپل ټولو سرګرميانو محور عقائد او عبادات او يا ورسره د اخلاقو د صحيح کولو د حد پوري محدود کړيو بلکه چه کوم څوک ددے دائرے نه بهر کيږي او په سياسي سرګرمو کښ مصروف کيږي په هغوئ تنقيد هم کوي چه يو ديندار سړے په سياست کښ ځان ولي ملوث کوي حالا نکے د اسلام هدايات تعليمات صرف په عقائدو عباداتو اخلاقو پوري محدود نه دي۔

بلکه د اسلام د سياست او حکومت په باره کښ ډير تعليمات او احکام شته چه د هغه نه په غير اسلام نه مکمل کيږي۔

### د افراط نظريه:

دويمه نظريه د افراط ده او د انتهاء پسندي  بعض خلقو د سيکولرزم په رد کښ دومره سختي کړي چه سياست ئے د اسلام اصلي مقصد ګرځولے يعني هغه وائ چه اسلام اصل مقصد دادے چه په دنيا کښ يو عادلانه سياسي نظام قائم شي او د اسلام باقي احکام ددے مقصد اصلي تابع دي ددے وجے نه چه څوک د سياست په ميدان کښ د دين د سر بلندئ دپاره کار کوي نو هغه د دين اصلي مقصد او مندلو۔

او چه کوم خلق د سياست نه علاوه په تعليم تبليغ اصلاح د نفس او اصلاح د معاشره کښ مصروف دي نو هغه د دين د اصل مقصد نه غافل دے دا دواړه نظريے د افراط تفريط دي او دا پدي بنا دي چه دوئ د سياست صحيح مقام په اسلام کښ نه دے پيجاند لے۔

## د اعتدال نظریه:

دریمه نظریه د اعتدال ده چه سیاست د دین شعبه ده لیکن دا مقصود اصلي نه ده او نوراحکام ددے تابع نه دي۔

ځکه د اسلام هدیات تعلیمات احکام د زندګئ د هرے شعبي سره متعلق دي او پدي شعبوکښ سیاست هم دے لیکن داسي نه ده چه سیاست اصلي مقصد دے او نور احکام ددے تابع دي مثلا د تجارت متعلق په اسلام کښ تفصیلي احکام شته لیکن تجارت د اسلام اصلي مقصد نه دے دغه رنګي په اسلام کښ د نکاح متعلق مفصل احکام دي لیکن نکاح د اسلام اصلي مقصد نه دے نو دغه رنګي د سیاست متعلق هم ډیر احکام دي لیکن سیاست د اسلام اصلي مقصد نه دے بلکه ساست د دین یوه شعبه ده او د الله تعالی بالواسطه عبادت او بندګي ده یعني پدي حیثیت عبادت دے چه د سیاست او حکومت کارونه د الله تعالی د حکم مطابق د الله تعالی د رضاء دپاره کوي او که په صحیح معنیٰ اسلامي حکومت قائم شي نو ډیرے فائدي لري۔

او عادةً یو سړے د دین په ټولو شعبو کښ کار نه شي کولے څوک په یوه شعبه کښ کارکوي څوک په بله شعبه کښ۔

## سیاست د اسلام نه جدا نه دے:

اوس اصل موضوع ته و اپسي کوو چه سیاست د اسلام نه جدا نه دے بلکه د یو بل سره لازم دي او په اسلام کښ سیاست هم شته۔

## دلائل:

قال ابو حازم رحمه الله قاعدت ابا هريرة خمس سنين فسمعته يحدث عن النبي صلى الله عليه وسلم قال كانت بنو اسرائيل تسوسهم الانبياء كلما هلك نبي خلفه نبي وانه لا نبي بعدي وسيكون خلفاء الحديث

ابو حازم رحمه الله وائي چه ما د ابوهریره رضي الله عنه سره پینځه کاله ناسته کړي ما د هغه نه دا حدیث واورید چه د بني اسرائیلو سیاست به انبیاء کولو چه یو پیغمبر به وفات شو په عوض کښ بئے بل پیغمبر راغلے او زمانه روستو نور پیغمبران نه راځي لیکن خلفاء به وي (بخاري کتاب الانبیاء مسلم کتاب الامارة)ب معلومه شوه چه سیاست د پیغمبرانو په فرائضو کښ داخل دے او د انبیاء فرائض دین دے نو سیاست هم دین دے۔

### د علامه عیني رحمه الله تشریح:

**علامه عیني رحمه الله د تسوسهم الانبیاء په تشریح کښې وائې:**

اي تتولي امورهم كما تفعل الامراء بالرعية والسياسة القيام على الشئ بما يصلحه وذالك لانهم كانو اذا ظهر الفساد بعثه الله نبيا يزيل الفساد عنهم ويقيم لهم امرهم ويزيل ما غيرو من حكم التوراة (عمدة القاري ص٦٧ ج ١٣)

**یعني د بني اسرائیلو پیغمبرانو به د هغوئ د کارونو نظم داسي برابرولو لکه حاکمان چه د خپل د کارونو نظم برابره وي او سیاست د یو شي د اصلاح دپاره تدبیر جوړلو ته وائې او دا سیاست پدي طریقه وو چه کله به خلقو فساد شروع کړو نو الله تعالی به هغوئ ته یو پیغمبر راولیږو چه د دوئ د مینځ نه فساد ختم کړي او د دوئ حالت ښه کړے او هغه تغیرات ختم کړي چه دوئ په تورات کښې راوستلي وو۔**

### د حافظ ابن حجررحمه الله تشریح:

**حافظ ابن حجررحمه الله وائې:**

وفيه اشارة الى انه لا بد للرعية من قائم بامورها يحملها على الطريقة الحسنة وينصف المظلوم من الظالم

(فتح الباري ص٢٨٦ ج٦)

**پدي کښې دیته اشاره ده چه د رعیت دپاره د یو داسي شخص نه لابدي ده چه د دوئ د کارونو تدبیر کوي او نیکي لاري ته خلق برابره وي او د ظالم نه د مظلوم حق اخلي۔**

**ددي حدیث شریف او د محدثینو د تشریح نه معلومه شوه چه شرعي سیاست د شریعت نه جدا نه دے بلکه دا د انبیاءُ فریضه ده او علماء کرام د انبیاءُ وارثان دي نو شرعي سیاست د علماء ذمواري هم ده۔**

**په بل حدیث کښې راځي** الاسلام والسلطان اخوان توأمان (الحديث)**، چه اسلام او بادشاه دواړه د غبرګونو رونړو په شان دي یو په غیر د بل نه نه برابریږي اسلام بنیاد او بادشاه څوکیدار دے چه دکوم شي چه بنیاد نه وي هغه ختمیږي او د کوم شي چه څوکیدار او ساتونکي نه وي هغه ضائع کیږي**

(جمع الجوامع للسيوطي ص١٤٦ ج١، جامع الاحاديث ص٢٥٨ ج٣، كنز العمال ص١٠ ج٦)

**پدي حدیث کښې اسلام او سیاست او بادشاهان د یو بل رونړه ګرځولي او دا خبره ئے کړي چه دا د واړه د یو بل نه په غیر نه برابریږي نو د شرعي سیاست نه په غیر حکومت نه برابریږي۔**

**په الموسوعة الفقهية ص ٢٩٥ ج ٣٥ کښې وائې:**

وقد كان النبي صلى الله عليه وسلم والخلفاء الراشدون يسوسون الناس في دينهم ودنياهم فكان الحكم والسياسة شيئا واحدا

**یقیناً نبي صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو به د خلقو د دیني او دنیوي امورو سیاست او اصلاح کوله نو حکم او سیاست یو شي وو۔**

**ددي نه هم معلومه شوه چه سیاست د دین اسلام نه بیل نه دے ځکه چه سیاست نبي صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو کړے۔**

**حافظ ابن قیم رحمه الله وائ چه سیاست د شریعت یو جزدے اویو باب دے:**

لانقول ان السياسة العادلة مخالفة للشريعة الكاملة بل هي جزء من اجزائها وباب من ابوابها ( اعلام الموقعين ص ۵۱۳ ج ۲)

**مونږ دا نه وایو چه عادلانه سیاست د کامل شریعت سره مخالف دے بلکه دا د شریعت د اجزاء نه یو جزدے او د شریعت د بابونو نه یو باب دے۔**

**مولانا تقي عثماني صاحب وائ:**

**تقي صاحب په تکمله د فتح الملهم ص ۲۷۲ ج ۳ کښ عنوان ذکرکړے** مكانة السياسة في الاسلام **یعني په اسلام کښ دسیاست مرتبه بیا وائ** قد اشتهر عن النصارى انهم يفرقون **الخ د نصاری وو په حق کښ دا مشهوره ده چه دوئ سیاست او دین د یو بل نه جدا ګڼري او وائ چه قیصر ته خپل حق پریږدي او الله تعالی ته خپل حق پریږدي ګویکه د دین هیڅ تعلق د سیاست سره نشته او دسیاست تعلق د دین سره نشته او دا باطله نظریه درجه په درجه را روانه ده تردي چه په دي روستني وختونو کښ ناکاره شکل اختیارکړو۔ په نوم د علمانیت یا سیکولزم دوئ دین د ژوند دنورو حصو نه ایستلي او پدي خبره ئے حتمي فیصله کړي۔**

**د اسلام د سیاسي نظام په باره کښ دعلماء لیکل:**

**ددي خبري چه اسلام اوسیاست د یو بل نه دجدا نه دي پدي بل دلیل دا هم دے چه د اسلام د سیاسي نظام په باره کښ علماء په مختلف وختونو کښ ډیر لیکل کړي او بحثونه ئے کړي۔**

**بیا د دغه بحث او لیکلو دوه طریقي دي یو دا چه د احادیثو او دفقهي د کتابونو په ضمن کښ ددي بحث او تذکره کوي او پدي ئے بابونه قائم کړي لکه مونځ اودس حج زکات روژه پدي مستقل مستقل بابونه دي نو دارنګي د خلافت امامت امارت بابونه هم شته۔**

**دویمه طریقه داده چه پدي موضوع ئے مستقل مستقل کتابونه لیکلي د دغه کتابونو تعداد ډیر زیات دے په سونو کتابونه دي مولانا عبد الباقي د دري سوه [۳۱۳] دیارلس کتابونو نومونه ذکر کړي مثلا الاحکام**

السلطانیه د ماوردي او دابویعلی، الامامة والسیاسة د ابن قتیبه، اساس السیاسة، آداب السیاسة وغیر ذالک۔ زمونږ سره چه کومه مکتبه شامله ده په هغه کښې ۳۰۴ کتابونه دي۔ نو که په دین کښې سیاست نه وي نو علماء به ېې ولې دومره کتابونه لیکلي۔

**د هغه چا حکم چه اسلام او سیاست د یو بل نه جدا ګڼي:**

اصل موضوع داوه چه د هغه چا څه حکم دے چه هغه اسلام او سیاست د یو بل نه بیلا بیل ګڼي لکه په سیکولر جمهوریت کښې دا نظریه ده مولانا تقي صاحب ددي حکم په تکمله د فتح الملهم ص ۲۷۲ ج ۳ کښې بیان کړے:

وان هذه النظریة في الحقیقة نوع من انواع الاشراك با الله من حیث انها لا تعترف للدین بسلطة في الحیاة المادیة وانما تقصر سلطة الدین علی رسوم وعبادات یما رسها المرأ في خلوته او في معبده فکان الاله لیس الها الا في العبادات والرسوم واما الامور الدنیویة فلها اله آخر والعیاذ با الله

دغه نظریه په حقیقت کښې د الله تعالی سره د شرک د اقسامو نه یو قسم دے او دا ځکه چه دغه نظریه په مادي ژوند کښې د دین دپاره په سلطی او اختیارنه ده قائله او پدي نظریه کښې د دین سلطه او اختیار په هغه عباداتو او رسوماتو پوري محدود دے چه انسان ئې په خلوت کښې او د عبادت په ځائ کښې کوي ګویکه د الله تعالی الوهیت یوائې په عباداتو او رسوماتو پوري محدود دے او د دنیوي امورو دپاره بل اله موجود دے پدي وجه دا نظریه یوه نوعه د شرک ده۔

**فائده:**

ددینه معلومه شوه چه د سیکولر جمهوریت یعني دین او سیاست د یو بل نه جدا ګڼل کفري او شرکي نظریه ده۔

**بیا تقي صاحب وای:**

ولذالك لم یزل المسلمون الراسخون یردون علی هذه النظریة الزائعة في کل زمان ومکان لانه لامحال لها في الاسلام الذي یؤمن بعقیدة التوحید في اصح تعبیراتها واکمل صورها والذي قرر الاحکام الالهیه في جمیع شؤون الحیاة بما فیها السیاسة والاقتصاد فکان من واجب اهل العلم المسلمین ان یرفضوا هذه النظریة ویردوا علیها ردا علمیا ناجعا وقد قاموا بهذا الواجب والحمد لله۔

ددي وجه نه لوئ علماء دغه نظریه په هر ځائ کښې او په هروخت کښې رد کړے ځکه ددي نظریې په اسلام کښې هیڅ ګنجائش نشته هغه اسلام چه په عقیده توحید تصدیق لري، او هغه اسلام چه الهي حکمونه د ژوند په ټولو حصو کښې ثابتوي چه په هغې کښې سیاست او اقتصاد هم دا خل دے نو په

علماء واجب دي چه دغه نظریه پریږدي او په علمي اندازاو په فائده مند اندازېے رد وکړي او الحمد لله چه علماء دغه فرض اداء کړے۔

فائده:

ددنیه معلومه شوه چه ددي نظرېے په اسلام کښ هیڅ ګنجائش نشته او ددي نظرېے پرېښودل فرض دي او پدي رد کول فرض دي او لوئ او مضبوط علماء کرامو خپل فرض اداء کړي او پدي نظریه ئے رد کړے۔

## د ابن جوزي رحمه الله وینا:

ابن جوزي رحمه الله وای:

فمدعى السياسة مدعى الخلل في الشريعة وهذا يزاحم الكفر (تلبیس ابلیس الباب السابع في تلبیس ابلیس على الولاة والسلاطين ص ۷۵۳ ج ۲)

هر هغه څوک چه هغه د بے دینه سیاست دعوه کوي نو دا په حقیقت کښ په شریعت کښ د نیمګړتیا دعوه کونکي دے چه داد کفر خبره ده

فائده:

ددینه معلومه شوه چه څوک بے دینه سیاست کوي مثلا داسي سیاست چه په دین کښ نه وي یا سیاست د دین نه جدا ګڼړي نو دغه سړي ته په دین کښ کمي او نقصان ښکاري او دا د کفر خبره ده۔

## د سیاست قسمونه:

په سیاست کښ مختلف قسمونه دي په مختلف اعتباراتو سره۔

## شرعي او وضعي سیاست

اول تقسیم دادے چه سیاست دوه قسمه دے شرعي او وضعي۔

۱۔ شرعي سیاست په حقیقت کښ په مخ د څمکه د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم د عدل څخه عبارت دے او همدارنګي د یو کار په هکله د اصلاحي تدبیر څخه عبارت دے او هدف يئ دوه شیان دي یو عدل او بل مصلحت چه په دي دواړو مدارونو کښ به محصوروي۔

۲۔ شرعي سیاست د د نیوي امورو د تنظیم او اصلاح په خاطر د وسیع قوانینو د جوړولو په خاطر ډیره زمینه سازي او ګنجائش پیدا کوي او دا ځکه چه شرعي دلائل محدود دي او د شرعي سیاست استعمال په ضوابطو او شرطونو سره مضبوط دي۔

۳- په شرعي سياست باندي عمل د شريعت په وسعت او عدم جمود دلالت کوي او د اجتهاد سلسله لاجاري ده- د حال، زمان او د ځائ دپاره په تشريع او احکام شرعيو په تغيرکښ تاثيروي او دا تغير د شريعت د مقاصدو اوددي د ثابتو اصولو په چوکاټ کښ وي-

۴- شرعي سياست ته هغه څوک احتياج لري څوک چه په تغيرقدرت لري لکه حاکمان قضيان وزيران او د دوئ نائبان لهذا د دوئ دپاره دا ضروري ده چه د شرعي سياست او د دي د قواعدو په هقله علم ولري البته ډيرخلک د شرعي سياست مفهوم اوددي تاثيرڅخه ناخبره دي-

جميلة عبد القادر السياسة الشرعية ص ۳۶ المقدمة-

### د شرعي اووضعي سياست ترمنځ فرق:

کله چه د سياست شرعيه د اعتبار دپاره دوه شرطونه ذکرشو نو دا واضحه شوه چه د شرعي سياست اعتماد به په شرعي کلي اصولو او مباديو باندي وي په کومو سره چه مقصد د مصالحو او منافعو جلب او د مفاسدو دفع وي او هرچه وضعي سياست دے-

فإنها قوانين وأحكام مستمدة من العرف والعادة أو من مختلف التجارب والاوضاع المتوارثة من غير ان يراعي فيها ارتباطها بالوحي السماوي او اعتمادها علي مصادر التشريع الاسلامي بل وضعها الناس لتدبير شؤون امهم ولاسير بها حسب ارائهم ومذاهبهم ومعتقداتهم الفاسدة (محمد رضا السياسة القضائية ص:۱۴)

وضعي سياست هغه قوانين او احکام دي په کوموکښ چه د عرف عادت او د مختلفو تجربو او د مخکي نه د راپاتي شويو اوضاعونه په کښ استفاده شوي وي، د آسماني وحي سره د ارتباط لحاظ به په کښ نه وي شوے او نه به په کښ د اسلامي تشريح د مصادرو لحاظ شوے وي بلکي دغه قوانين به د خلکو دخوا دامت د کارونو د سمون په خاطر وضع شوے وي چه تفصيل يئ مخکښ ذکرشوے د الهي او وضعي نظم په تفصيل او موازنه کښ-

### عادلانه او ظالمانه سياست-

دويم تقسيم دادے چه سياست دوه قسمه دے عادلانه او ظالمانه:

علامه ابن نجيم مصري حنفي رحمه الله واى:

السياسة نوعان سياسة عادلة تخرج الحق من الظالم الفاجر فهي من الشريعة علمها مَن علمها وجهلها مَن جهلها و قد صنف الناس في السياسة الشرعية كتباً متعددة والنوع الاخر سياسة ظالمة فالشريعة تحرمها

(البحر الرائق ص۷۶ ج۵ کتاب السرقة باب قطع الطريق، طرابلسي ، معين الحكام ص:۱۶۹ القسم الثالث من الكتاب في القضاء)

سیاست په دوه قسمه دے عادلانه اوظالمانه عادلانه سیاست هغه دے چه ددي په توسط د ظالم فاجرنه د مظلوم حق واخستل شي او دا د شریعت یوه برخه ده په دي هغه څوک پوهیږي چه یئ پیژني او هغه څوک پري نه پوهیږي چه نه یئ پژني او لیکونکو دشرعي سیاست په اړه ډیري لیکني کړي دي، بل قسم ظالمانه سیاست دے چه هغه ددي مقابل او شریعت حرام کړے دے،

## الهي سیاست او انساني سیاست:

دریم تقسیم په داسي الفاظو کیږي چه سیاست دوه قسمه دے۔ الهي سیاست او انساني سیاست

علامه شمس الحق افغاني نورالله مرقده چه په ۱۴۰۳ هـ کښ وفات شوے د سورة فاتحي د سیاسي تفسیر په ضمن کښ د سیاست اقسام دا رنګي بیان کړي دي۔

سیاست په دوه قسمه دے ۱۔ الهي سیاست ۲۔ انساني سیاست۔

په دي عقیده استوار سیاست چه لکه څرنګي چه الله تعلی د ټولو کائناتو خالق دے همدا رنګي الله تعالی د ټولو کائناتو اعلی حاکم هم دے او ټول مخلوقات بي د استثناء نه د الله تعالی رعیت او محکوم دي دا الهي سیاست دے۔

او که سیاست په دي عقیده بنا نه وو نو دا انساني سیاست دے۔

انساني سیاست هغه وخت کامیاب وي کله چه د الهي سیاست په طرزوي، اسلام د الهي سیاست نه په خلافت سره تعبیر کړے چه شروع یئ د حضرت آدم علیه السلام نه شوي ، الله تعالی فرمائ په سورة البقرة ایت ۳۰ کښ انی جاعل فی الارض خلیفة زه ګرځونکے یم په ځمکه کښ یو خلیفه، ټول پیغمبران علیهم السلام د الله تعالی خلفاء وو او نبي صلی الله علیه وسلم آخري خلیفه وو د انبیاء نه روسته خلفاء راشدین رضوان الله علیهم اجعین وو او د دوینه ورسته د اسلام بادشاهان وو او ترقیامته پوري راتلونکي مسلمانان حاکمان درجه په درجه د نبي صلی الله علیه وسلم خلیفه ګان دي (مولانا محمدعلي اصغر عباسي مرتب دروس الفاتحة من افادات شمس الحق افغاني ص ۲۴۵)

## عقلي سیاست او دیني سیاست:

څلورم تقسیم په داسي الفاظو کیږي چه سیاست دوه قسمه دے عقلي او دیني لک علامه ابن خلدون رحمه الله په مقدمه کښ سیاست د قانون په لحاظ تقسیم کړے۔

۱۔ بادشاهي د قانون په ځائ د مطلق العنان بادشاه په زور او غضب باندي ولاړه وي چه په کښ د غضب او حیو انیت اثار لیدل کیږي۔ دغه قسم حاکمان په خپل رعیت باندي د یو دروند بار حیثیت لري چه د هغوئ د هلاکولو په هڅه او کوشش کښ وي نو دارنګي حالاتو د اصلاح دپاره د سیاسي قوانینو د وضع کولو د ضرورت احساس پیدا کیږي چه ددي قوانینو وفاداري په حاکمانو او رعیت دواړو باندي ضروري ده۔ اوس به کتلے شي که چیرته دا قوانینو۔

فاذا كانت هذه القوانين مفروضة من العقلاء وأكابر الدولة وبصرائها كانت سياسة عقلية وإذا كانت مفروضة من الله بشارع يقررها ويشرعها كانت سياسة دينية نافعة في الحياة الدنيا، وفي الآخرة وذلك أن الخلق ليس المقصود بهم دنياهم فقط فالمقصود بهم أنما هو دينهم المفضي بهم إلي السعادة في آخرتهم فجاءت الشرائع بحملهم علي ذلك في جميع أحوالهم من عبادة، ومعاملة حتي في الملك الذي هو طبيعي للاجتماع الإنساني. (مقدمه ابن خلدون ص:۱۹۰ الفصل الخامس وعشرون في معني الخلافة والامامة)

**د قوم عاقلانو د مسئولیت د حکومت او د نورو پوهانو په توسط رائج شوے وي نو بیا په دي قوانینو ولاړ سیاست ته عقلي سیاست ویل کیږي او کله چه دا قوانین د الله تعالی مقرر کړي قوانین وي، چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په توسط نافذ شوي وي نو دیته دیني سیاست ویل کیږي چه دنیا او آخرت دواړو دپاره ګټور دي او دا ځکه چه د مخلوق دپاره مقصود یوائې او یوائې دنیا نه ده بلکي مقصود دوئ دپاره دین دے کوم چه د اخروي سعادت دپاره سبب دے.**

## سیاست کونکي څلور قسمه دي:

**امام غزالي رحمه الله د سیاست دپاره څلور[۴] اقسام ذکر کړي دي.**

### الف: اعلی سیاست:

**دا قسم د انبیاء علیهم السلام د سیاست څخه عبارت دے چه تعلق یې د عوامو او خواصو سره وي ددوئ د ظاهري بدنونو او د زړونو اصلاح ورسره کیږي او اصلاحات په ښکاره او پټه سره راځي.**

### ب: د حاکمانو بادشاهانو او سلاطینو سیاست:

**ددي قسم سیاست تعلق هم د تیر قسم په شان د عوامو خواصو سره وي البته صرف د ظاهري بدنونو سره به یې تعلق وي، نه د دوئ د زړونو سره په استثناء د هغه صورت، چه حاکم عادل زاهد، نرم زړے او روحاني شخصیت وي.**

### ج: د علماؤو سیاست:

**ددي قسم تعلق هم د خواصو او عوامو سره وي البته د دوئ د زړونو سره وي نه د دوئ د ظاهري بدنونو سره او دتعلیم او تربیې په توسط د عوامو او خواصو اصلاحات راولي په خلکو ظاهري حاکمیت نه لري البته متقیان اوو اقعیت پیژندونکي خلق ورته د وخت حاکمانو څخه هم زیات احترام لري.**

د ـ دواعظانوسیاست

چه خلقوته وعظ اونصیحت کوي اودخلقوپه زړونوحکومت کوي

## په اسلامي او غربي سیاست محققانه تبصره:

مخکښ د سیاست اقسام ذکر شو او ددې وضاحت وشو، چه دیني او شرعي سیاست محمود او مطلوب دے بې دینه او غربي سیاست نه محمود دے او نه مطلوب په دې دواړو قسمه سیاست باندې علامه محمد کفیل بجنوري رحمه الله چه د کلکتې مشهور مفسر تیر شوے یوه عجیبه محققانه تبصره لیکلې ده، چه د مولانا حسین احمد مدني رحمه الله د یو سیاسي مضمون (سیاسي معمه) په مقدمه کښ په لاندې قسم ذکر شوي ده۔

مسلمه امت دپاره یقینا د داسې سیاست نه پناه غوښتل پکار دي د کوم دارومدار چه په تکبر، غرور، دوکې، سپیره توب، وعده خلافي وغیره په شان رزیلو امورو باندې وي او دا سیاست کله هم نه شي کامیابیدے، که چیرته دوه ځلورورځې کامیاب هم شي لیکن یو څو ورځې وروسته به بالکل ختم شي خلق وائي چه د یورپ ابلیسانه سیاست دپاره د داسې کس ضرورت دے چه د یورپ او ایشیایي قومونو سره خالص ابلیسانه تعامل وکړي او د دوئ د نفاق، د هوکې وغیره مقابله په همدغې طریقې سره وکړي لیکن دا خبره بالکل غلطه ده او د الله تعالی د عادت نه مخالفه ده، ځکه چه الله تعالی د نمرود، شداد، فرعون، قریشو کافرانو او د بني اسرائیلو کافرانو په شان غدارو، مکارو او ظالمانو په مقابله کښ د همدوئ په شان ابلیس او شیطانان نه دي رالیږلي، بلکښ د حضرت ابرهم علیه السلام حضرت موسی علیه السلام حضرت عیسی علیه السلام، او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم، په شان ریښتیني په حق باندې قائم او په حق باندې پاتي کیدونکي پیغمبران یې رالیږلي دي۔

او د ټولو اصلاح یې کړي ده حق یې روښانه او باطل یې ختم کړے، ترڅو پورې چه د اسلامي سیاست تعلق دے، نو هغه په عدل او انصاف سره د اسلام د اجتماعي قوانینو مطابق د خلقو ژوند برابرول دي، د اسلامي سیاست ظهور او د هغه پاکو اغراضو د تکمیل دپاره کیدائ شي د کومو تعلق چه د امت د افرادو او دعامو انسانانو د ګټو او کامیابو سره دي، انساني معاشره د الهي قانون پابند جوړول، د عامو مصالحو تکمیل او د الله تعالی د عامو بندګانو د اصلاح او تربیت په خاطر انساني معاشره په یو عادل حکومت سره منظم کول، د عامو مصالحو لحاظ ساتل، چه ددې نظام ماتحت دي هر سړے په امن و امان او خوشحالئ کښ ژوند تیر کړي او د امن خلاف اقدام کول د انسانیت سره دوکه، وعده خلافي او سخته بې وفایئ ګڼړل د اسلامي سیاست عین منشا او هدف دي بې د څه شبهې نه د علم وعمل د قوتونو، د قول او فعل صداقتونو په لحاظ سره د قومي امانت حاملین او اهل اول نبي بیا صدیق مسلمان او د دینه وروسته بیا شهید او صالح مسلمان دي په دې عَالم کښ د انسانیت ابتداء د حضرت آدم علیه السلام نه شروع شوي او دا په مخ د ځمکه اول د الله تعالی خلیفه جوړ شوي وو او همدا هغه مقدس نبي وو، چه هغه د فتنې، فساد او خونریزي مقابله په دنیا کښ په اول ځل د خپل قول او فعل په صداقت او ریښتینئ سره کړي ده او د ابلیس لعین مغرورانه دعوه چه (انا خیر منه) زه د حضرت آدم علیه السلام نه غوره یم د خپل صحیح علم او صالح عمل په وجه تر قیامته باطله کړي

ددینه وروستو که چیرته ابلیس یو ساده ناتجربه کار انسان د خپل ډپلوماسۍ په ذریعه ممنوعه ونې ته راوستل یو طبعي امر دے نو بیا د شیطانیت د ظاهریدو نه وروستو مخلص بنګان د ابلیس د دوکي په دام کښ نه راتلل هم یو عقلي امر دے، ځکه چه ان کید الشیطان کان ضعیفا د شیطان تدبیر ضعیف وي اوس زمونږ په مخ کښ صرف دوه لاري او دوه ډلي دي۔

۱۔ د حضرت آدم علیه السلام او د هغه هم مسلکه انبیاء حضرت ابراهیم علیه السلام وغیرو لاره ده، چه هغه د نبوت او هدایت لاره ده او د همدي جماعت او ډلي اتباع د امن او امان ذمه داري ده۔

۲۔ د دوئ په مقابله کښ د ابلیس او د هغه د تابعدارانو نمرود وغیره لاره ده، چه هغه د بدبختۍ او ګمراهۍ لاره ده او ددي لاري تابعداري فتني او فساد ته بلونکي او ددي ضامنه لاره ده تاسو په خپله سوچ او فیصله وکړئ چه **ای الفریقین احق بالامن ان کنتم تعلمون** په دي دواړو ډلو کښ کوم یو فریق په امن سره حقدار دي که تاسي پري پوهیږئ چه آیا د فقهي او اجتهاد د باریکو او شرعي عمومي سیاست پیژندلو نه په غیر کوم کس د مشرۍ او سردارۍ مستحق جوریدائ شي؟ هرګز نه شي جوړیدے علامه اصفهاني رحمه الله لیکلي دي:

انکم لا تصلحون للسیادة قبل معرفة الفقه والسیاسة العامة، الذریعة الي مکارم الشریعة ص ۲۶ ا؛الباب التاسع السیاسة التي یستحق بها خلافة الله تعالی

تاسي د اسلامي فقهي او عامه سیاست د پوهي نه مخکښ د مشرۍ مستحق نه یوي۔

همدارنګي حافظ ابن قیم رحمه الله لیکلي دي:

لاسیاسة الا ما وافق الشرع بحیث یکون الناس معه اقرب الی الصلاح وابعد من الفساد (اعلام الموقعن ص ۳۷۲ ج ۴

حقیقي او واقعي سیاست هغه دے، کوم چه د شریعت مطابق وي په داسي شان سره چه خلک ددي په ذریعي سره د فتني او فساد نه لري او اصلاح وفلاح طرف ته نژدي شي۔

۱۔ بیا د اول فریق او د اسلام په اتباع کښ دخپلو حالاتو مطابق به کله کله د جنګ کوونکي کافر سره جنګ کول وي۔ الله تعالی فرمایئ:

**فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ** (التوبة:۵) کوم ځائ چه مشرکان بیا موځئ دوئ ووژنئ۔

۲۔ او کله به صلحه کول وي الله تعالی فرمای: **وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ** (الانفال:۶۱)

او که چیرته دوئ صلحي ته مائله شي نو ته هم ورته مائله شه۔

۳۔ او کله به امان غوښتونکي کافر ته امن هم ورکولے شي الله تعالی فرمایئ:

وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ فَأَجِرْهُ (التوبة ٦)

او که په مشرکانو کښې يو کس ستانه پناه وغوښتله نو ته ورته پناه ورکړه۔

۴۔ کله به په خپله د کافرنه د خپل ځان دپاره امن هم طلب کولے شي حديث شريف کښې ذکر دي:

ارسل رجلا من خزاعة الي مطعم بن عدي أءدخل في جوارك؟ قال: نعم (طبقات ابن سعد ج۱ ص ۲۱۲)

ذکر سبب خروج رسول الله صلى الله عليه وسلم الى الطائف، يو تن د خزاعه قبيلي نه يئ مطعم بن عدي ته وليږل او هغه ته ووېلي شو، چه ايا زه ستا په امان کښې داخل شمه؟ هغه ورته ووېل چه او داخل شه۔

۵۔ او کله به د ذمي کافرنه جزيه اخيستے شي او د هغه د ځان او مال حفاظت به په خپله کوي الله تعالى فرماي: حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ (التوبة:۲۹) تر دي چه هغوئ په خپل لاس جزيه ورکړي او ذليل و خوار شي۔

۶۔ او کله به د قبائلو کافرانو نه قوت حاصلوي، چه د خپل ځان مال حفاظت په هغوئ سره وکړي حديث شريف کښې ذکر دي:

كان النبي صلى الله عليه وسلم يستنجد من احياء العرب (شاه ولي الله حجة الله البالغة ج۲ ص ۱۹۱ بيعة العقبة)

رسول الله صلى الله عليه وسلم به په قبيلو د عربو سره طاقت حاصلول۔

۷۔ کله به د سختئ او تکليف سره سره د کافر د پيشکش او غښتني باوجود هم د کافر او مشرک امداد رد کولے شي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايئ:

انا لا نستعين بمشرك (كنزل العمال ج۴ ص۳۵۸ رقم ۱۰۸۸۷، ابن ماجه كتاب الجهاد باب في الاستعانة بالمشركين ص ۲۰۳)

مونږ د مشرک نه امداد نه اخلو۔

۸۔ او کله به د کافر او مشرک نه امداد اخيستل ښکاره اجازت ورکوي، امام ابوبکر جصاص رحمه الله چه په ۳۷۰ هـ، کښې وفات شوے دے ليکلي دي: قال اصحابنا لا باس بالاستعانة بالمشركين اذا كانوا متي ظهروا كان حكم الاسلام هو الظاهر وان كان حكم الشرك هو الغالب فلا ينبغي للمسلمين ان يقاتلوا معهم

(ابوبكر احكام القران ج ۲ ص ۴۴۷ باب الاذان مطلب في الاستعانة، كتاب السير الكبير وشرحه ج ۴ ص ۱۴۲۲ باب الاستعانة با هل الشرك)

زمونږ احنافو ویلي دي چه د مشرکانونه په امداد غوښتلو سره څه باک نشته دے کله چه د مسلمانانو د غلبي په وخت کښ د اسلام حکم غالب وي او که چیرته د کامیابئ په نتیجه کښ د شرک نظام غالب وي، نو بیا د مسلمانانو دپاره مناسب نه دي چه د کافرانو په ملګرتیا کښ جهاد وکړي۔

۹۔ کله به د پیغمبر په رهنمایئ کښ د دښمن د دفع کولو په خاطر د مسلمانانو او غیر مسلمانانو نه یو امت جوړول او د دواړو فریقینو ترمنځه د معاهدي خط ترتیب کول وي حدیث شریف کښ ذکر دي:

هذا کتاب مِن محمد النبي بین المسلمین والمؤمنین من قریش ویثرب ومَن تبعهم فلحق بهم وجاهد معهم انهم امة واحدة دون الناس (البدایة والنهایة ج۳ ص ۲۲۴، سنن بیهقي کبری ج۸ ص ۱۰۶ رقم ۱۶۱۲۷ باب العاقلة)

دا لیک د محمد صلی الله علیه وسلم د خوا دے چه د الله تعالی نبي دے او دا لیک دے په منځ د مسلمانانو او مؤمنانو د قریشو او د مدیني منوري او د هغه چا تر منځه، چه د دوئ تابعداري او د دوئ سره یے الحاق راغلے وي او د دوئ سره یئ جهاد کړے وي دوئ به د مخالفینو د مخکښ یو امت وي۔

۱۰۔ او کله به په خپله نبي صلی الله علیه وسلم، او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په شان پاکو شخصیتونو ته اجازت وي، چه دوئ د عبد الله بن اریقط په رهنمایئ کښ د غار ثور لاره قطعه کړي او د دشمن نه ځان بچ کړي بیا د دشمن د مقابلي دپاره تیارے تر قیامته پوري عام پریښو دي شو دا تیارے که په مادي اسلحو سره وي او یا تنظیمي وسیلو سره الله تعالی فرمای: **وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ** (الانفال: ۶۰)

او د دوئ مقابلي ته تیارے وکړئ چه څومره ستاسو طاقت وي۔

۱۱۔ او کله په دوه مصیبتونو کښ د مبتلا کیدو په وخت کښ د لوي او سخت مصیبت په مقابل کښ دواړه او آسان مصیبت د اختیار اجازت ورکړل شوي دي:

ثم الاصل في جنس هذه المسائل ان من ابتلي ببلیتین وهما متساویان یاخذ بایهما شاء وان اختلفا یختار اهونهما (ابن نجیم الاشباه والنظائر ص ۱۱۱)

بیا د ذکر شوو مسائلو په باب کښ قاعده داده، چه څوک په دوه مصیبتونو مبتلا شي نو که دواړه برابر وو، نو په دي دواړو کښ چه کوم ده ته خوښ وي هغه دے اختیارولے شي او که یو د بل په مقابل کښ سخت او ګران وو نو بیا به په دي دواړو کښ په آسان باندي عمل کوي، حضرت مولانا حسین احمد مدني رحمه الله چه په ۱۳۷۷ ھ کښ وفات شوے وائ:

*مذہب اسلام بھی احوال کی بنا پر احکام بدلتا ہے، احوال گردو پیش سے چشم پوشی ہلاکت اور خود کشی ہے۔* (ابو الحسن ملفوظات حضرت مدنی ص ۲۱)

په اسلام کښې هم د حالاتو په بنااحکام بدلیږي د حالاتو او د ماحول د لحاظ نه سترګي پټول هلاکت او ځان وژنه ده۔

خلاصه دا چه د ځای، وخت، د موقع او محل په اعتبار سره د شرعي مصالحو لحاظ ساتل صرف د هغه کس کار دے چه د فقهي او اجتهاد په باریکو ښه پوهیږي او د شریعت د منشا او هدف نه خبروي په دي کښې هیڅ شک نشته چه دا دور د غرب دور دے او دغربي سیاست غلبه ده خلق د غربي سیاست نه په نشو او مستئ کښې دي، خو د خلقو دا نشه او د حق نه اعراض به ترکوم ځایه پوري وي یوه ورځ داسي راتلونکي ده چه دا بحراني کیفیت او فساد به ختم شي حق به روښانه او باطل به ختم شي اے د غربي سیاست دعوه کوونکو تاسو هم د هغه وخت انتظار کوئ او مونږ به یئ هم کوو **قال الله تعالى فتربصوا انا معکم متربصون** نن سبا دا پروپیګنډه او تبلیغ کولےشي چه د اسلام علماء په سیاست نه پوهیږي او که چیرته پوهیږي هم نو بیا هم په وړاندیني اسلامي سیاست باندي پوهیږي کوم چه ددي زماني د نظریاتو او د دنیا د اجتماعي اصولونه با لکل جدا او مخالف دے یورپ د سیاست مرکز دے، نو ځکه اوس دنپولن، میکلیا ویلي، مسؤلیني، هټلر، اسټالن، او مسټر چرچل وغیره سیاست زده کول ضروري دي او چه کوم سړے دا ضرورت پوره کړي، نو هغه زمونږ قائد او مشر دے لیکن سوال دا دے چه موجوده نظریات د سیاست د وړاندیني نظریاتو د سیاست نه اعلى مرتبه لري که ادنى او که مساوي؟ که مساوي مرتبه لري، نو بیا خو د اسلام د علماء کمزورتیا بیانول، چه دوئ په سیاست نه پوهیږي حماقت او کم عقلي ده او که ادنى مرتبه لري، نو بیا خو د اسلام د علماء ناپوهي نه ده بلکي صراحتاً خپله ناپوهي ده چه ستاسو سیاسي نظریات د اسلام د سیاسي نظریاتو نه لاندي مرتبه لري او که اعلى مرتبه لري نو بیا خو صرف په یواځي خبرو باندي کار نه کیږي بلکي د فریقینو په نظریاتو کښې د تقابل ضرورت دے چه دواړه نظریات سره موازنه کړے شي چه ایا په حقیقت کښې هم دا نظریات د اسلام د سیاسي نظریاتو نه عالي دي او که هسي د خولي خبري دي۔

حقیقت دادے چه په خپله انصاف لرونکي غربي سیاست دانو د اقرارنه دا خبره ثابته شویده چه یورپي سیاست او تمدن د اسلام د نظریاتو، حکمت او سیاست نه مستقیماً استفاده کړي ده۔ دقرآن اوحدیث په رڼړا کښې د راشده خلافت نظام مخي ته راغے او د راشده خلافت نه روسته د بنو امیه او د بنو عباسو حکومت شروع شو چه دوئ د راشده خلافت د اجتماعي اصولو نه استفاده وکړه او خپل نظام یئ په شاهي صورت کښې چلول د دینه روستو په قرون وسطي کښې دیورپ کلیسائ دور په خالص اظهارتي او تبلیغاتي شکل کښې ښکاره شو، چه صرف د خپل کمال اظهارات او تبلیغات کوي او بس۔ او په دے دور کښې د مغرب سیاسي علماء د اسلام د سیاسي علماء د کتابونو او د اسلامي حکومتونو د طرز او طریقو نه فائده واخسته۔ نن څوک دي چه انکار اوکړي چه یورپ د ابن خلدون، فارابي او د نورو علماء د اسلام د سیاسي کتابونو نه استفاده نه ده کړي۔

مکیا ویلي د ابن خلدون رحمه الله د اسلامي فکر مقلد وو د فرانسي عالم موسیورینان ډېنه د وینا مطابق نپولین په سیاسي نظریاتو کښ د اسلام د حکومتي نظریاتو نه استفاده کړي ده او د حاضر العالم الاسلامي د مصنف د یاداشت نه دا معلومېږي چه نپولین د انسانیت د بهترئ دپاره د قرآن کریم د سیاست مطابق د حکومت د نظام بنیاد ایخودل ضروري ګڼړي نپولین دا ضروري ګڼړي چه د انسانیت د بهترئ او ترقئ دپاره دي حکومت په هغه بنیادونو باندي جوړ کړے شي کوم، چه په قرآني سیاست کښ ذکر دي۔

ابونصر فاربي رحمه الله د کتاب مبادي آراء اهل المدینة تر اوسه پوري زمونږ ترقي یافته د اعلی شهري سیاسي نظام نه نیولي ترکمیتو جوړولو پوري ټول نظام چلوي او دا ترقي یافته دنیا دفارابي د کتاب زیر احسان ده د تاریخ په اعتبار سره د څلورمي صدئ په منځ کښ د اخوان الصفا رسائل لیکل شوي دي، اخوان الصفا سیاست یو مستقل فن وګرځولو او سیاست یئ په پینځو حصو کښ تقسیم کړو یورپ ددي رسالو نه هم ډیره استفاده وکړه پروفیسر کلازیوني ابن خلدون د خپلي زماني د سیاست د علماء پیشوا او استاذ تسلیم کړے هغه لیکي چه لوئ او ماهر مُورخ ابن خلدون په قرون وسطي کښ هغه وخت د فن اجتماعیات، اقتصآدیات او سیاسیاتو مبادي مخکښ کړل کله چه د فرانس اشتراکي کنسیډرن د اشترکیت باني کارل مارکس د روسي سیاست ماهر پیکو نن ددي نظریاتو د مخکښ کولو دپاره په دنیا کښ موجود هم نه وو۔

خلاصه دا چه د صفحو د تنګوالي په جه زیات تفصیل نه شو کولے ورنه مونږه به په زیاتو دلائلو سره دا ثآبته کړي وے چه د یورپ نظري سیاست د اسلام د علماء د نظري سیاست مقلد او محتاج دے او دا ظاهره خبره ده چه د مقلد مرتبه د مجتهد او امام نه نه شي اوچتیدے۔

پاتي شو د یورپ عملي سیاست نو دا خو خالص د ډېلو میسي دهوکي بي حیایي او د فتني او فسا نه ډک سیاست دے لکه چه جارج ایلن کتاب په جنس تمدن کښ د اسلامي نظریاتو نه د نقل په توګه شائع کړي دي د موجوده تمدن ټوله خلاصه او مغز منافقت دے خلق په ظاهر کښ په الله تعالی عقیده لري لیکن دوئ تر خپل ځانونو پوري په مال قربانوي په خوله د ازادئ دعوي کوي لیکن چه څوک د ازادئ طلب ګاروي هغوئ ته سزاګاني ورکولے شي دعوه د حضرت عیسی علیه السلام د پیروي کوي لیکن اتباع د مسولیني وغیره کولے شي د عزت الفاظ د عصمت مطابق استعمالولے شي لیکن عملي ژوند یئ د حرام کارئ او بد عملئ دپاره وقف دي په خوله د صداقت او رښتینولئ لافي وهي لیکن د اقتدار او اختیار په کرسو باندي بي دینه خلق کینوي په خوله د روروئ اوازونه کوي لیکن کوم کس چه د دوئ سره د جنګ یا وطنیت او یا دقومیت په خرابو اجتماعاتو او جلسو کښ شریک نه شي نو یا خوئ بندي کوي او یا یئ د وطن څخه اوباسي او یا یئ په ټوپک باندي وژني دا دي غربي سیاست او یورپي زهر چه ددي علاج صرف اسلامي سیاست دے او بس۔ (مقدمة سیاسي معمه لمولانا حسین احمد المدني ص ۱۵)

## په سیاست کښې احتیاطي:

نن سبا مسلمانانو عوام او خواص ټول په سیاست کښ ډیره بي احتیاطي کوي د اسلامي نظام د راوستو دپاره غیر اسلامي طریقي اختیاروي د نظام نبوي صلی الله علیه وسلم دپاره نهج نبوي صلی الله علیه وسلم ضروري دے مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله چه په ۱۳۶۲ ھ کښ وفات شوئ لیکلي دي، نن ورځ زمونږ د مسلمانانو دا حال دے، چه زیات هغه خلق چه د اسلام د خدمت دعوی کوي زیات د خپلو شخصي منافعو او مقاصدو دپاره کارکوي او د الهي احکامو څه پروانه کوي او هدف یئ خالص کارکول وي د شریعت سره موافق وي او که مخالف د جائز او د ناجائز څه پروا نه کوي په داسي صورتحال کښ به د الله تعالی د امداد انتظار څنګه وشي، تردي، چه بعضي خلک په دي فکردي، چه في الحال د حلالو او حرامو، جائز او ناجائزو مسائلو خبره پریږدئ اوس دکار وخت دے روسته به ددي مسائلو لحاظ ساتو انا لله و انا الیه راجعون، په حقیقت کښ دوئ ددي خبري نه غافله دي چه د شرعي مسائلو او احکامو د لحاظ نه په غیر، نه مسلمانان په دنیا کښ او نه په آخرت کښ کامیابي حاصلولے شي او د ټولو کارونو نه مخکښ د مسلمانانو دپاره خلوصِ نیت لازمي شرط دے چه دا هم صفر دے، (مواعظ محاسن الاسلام ص ۲۸۰-)

## د انساني سیاست قسمونه:

هرکله چه ثابته شوه، چه مسلمان ته شرعي سیاست محمود او مطلوب دے نو دابه د مسلمان په فرائضو کښ داخل وي دا، چه مسلمان په اسلامي ټولنه کښ څنګه موثرکردار ولوبوي، نو لازمه ده، چه اول باید خپل ځان اصلاح کړي او بیا دنورو انسانانو د اصلاح په فکرکښ شي، نو د مسلمان دپاره د سیاست دوه جهته شو یو د خپل ځان په رابطه او دویم د اسلامي جامعي او ټولني په رابطه، امام اصفهاني رحمه الله لیکلي دي:

السیاسة ضربان احدهما سیاسة الانسان نفسه وبدنه وما یختص به والثاني سیاسة غیره مَن دونه واهل بلده ولا یصلح لسیاسة غیره مَن لا یصلح لسیاسة نفسه ولهذا ذم اللهُ تعالي من ترشح لسیاسة غیره فامر بالمعروف ونهي عن المنکر وهو غیر مهذب في نفسه

سیاست په دوه قسمه دے اول قسم د انسان سیاست دے د خپل نفس، بدن او د هغه څه په رابطه چه انسان پوري خاص وي دویم قسم د انسان سیاست دے د نورو خلقو په رابطه او هغه څوک د نورو خلقو د سیاست دپاره اهل نه دي څوک چه د خپل ځان د سیاست دپاره اهل نه وي- د دے وجے نه الله تعالي د هغه چا بد ویلي څوک چه د نورو د سیاست او اصلاح دپاره ځان مخکښ کوي په نیکئ ورته حکم کوي او د بدو نه یئ منع کوي او حال دا وي، چه دے په خپله د خپل نفس په تهذیب او اصلاح قادر نه وي-

همدا رنګي علامه اصفهاني رحمه الله لیکلي دي:

وبهذ النظر قيل تفقهوا قبل ان تسودوا وتنبيها علي انكم لا تصلحون للسيادة قبل معرفة الفقه والسياسة العامة ولان السائس يجري من المسوس مجري ذي الظل مِن الظل، ومحال ان يعوج ذوالظل ويستقيم ظله ولاستحالة ان يهتدي المسوس والسائس ضال **(اصفهاني الذريعة الى مكارم الشريعة ص ٢٦ الباب التاسع السياسة التي يستحق بها خلافة الله تعالى)**

**او د همدي نظر او فکر په بنیاد ویل شوي چه تاسي پوهه حاصله کړئ مخکښ ددي نه چه تاسي مشران جوړ شي او تنبیه ده په دي خبره باندي، چه تاسي د مشرئ دپاره اهل نه یاستئ مخکښ د پیژندلو د فقهي او دعام سیاست نه اوبل دا، چه سیاست کوونکي او هغه څوک، چه د هغه د سیاست سره تعلق دے مثال یئ د سوري د خاوند او د سوري دے او دا محاله ده، چه د سوري خاوند دي کوږ غیر مستقیم وي او د ده سوري دي بر ابروي او دا هم محاله ده، چه متبوع او مقتدي دي ګمراه وي او تابع دِ په هدایت او په سمه لاروي۔**

## د سیاست او اصلاح شروع:

**هرکله، چه د سیاست تعلق د فرد او اجتماع دواړو سره دے، نو د سیاست او اصلاح شروع به د خپل ځان نه کیږي امام ماوردي رحمه الله په دي موضوع مستقل عنوان پدي قسم ذکر کړے دے:**

اول مايبدا به الملك سياسة نفسه وتقويمها

**اول هر هغه څه چه د وخت بادشاه او حاکم پري شروع کوي، نو هغه د خپل نفس په سیاست او اصلاح باندي شروع ده۔**

## د خپل ځان د اصلاح کولو طریقه:

**مخکښ ذکر شو، چه انسان ته دا مهمه ده چه اول خپل ځان اصلاح کړي، نو ددي طریقه به دا وي چه خپل اخلاق او اعمال د شریعت مطابق وګرځوي علامه ماوردي رحمه الله لیکلي دي:**

فلزم ذا الامرة والسلطان ان يبدا بسياسة نفسه ليحوز من الاخلاق افضلها وياتي من الافعال اجملها فيسوس الرعية بعد رياضته ويقومهم بعد استقامته ماوردي ـ تسهيل النظر وتعجيل الظفر ص ٢٦ الفصل السادس الافعال الشريفة بالاخلاق الشريفة

**د ټولو نه مخکښ چه بادشاه او حاکم یئ وکړي هغه د خپل نفس اصلاح کول او بر ابرول دي نو په بادشاه او حاکم لازم دي، چه د نفس اصلح د ټولو نه مخکښ شروع کړي پداسي شان سره چه نفس ته غوره اخلاق او نیک اعمال راجمع کړي او په غوره اخلاقو او نیکو اعمالو سره د خپل نفس اصلاح وکړي او د خپل ځان د اصلاح نه روسته د خپل رعیت اصلاح وکړي او په خپلو نیکو اخلاقو او اعمالو باندي د استقامت نه روسته خپل رعیت درست او بر ابر کړي۔**

**مشهور جلیل القدر تابعي ابو الاسود دوئلي رحمه الله چه په ۶۹ هـ کښې وفات شوے واي:**

۱۔ ابدأ بنفسك فانهها عن غيها فاذا انتهت عنه فانت حكيم

۲۔ فهناك يسمع ماتقول ويقتدي بالرأي منك وينفع التعليم

۳۔ لاتنه عن خلق وتأتي مثله عار عليك اذا فعلت عظيم

(الموافقات ج ۴ ص ۱۴۸ الطرف الثاني فيما يتعلق بالمجتهد المسألة الثالثة)

**۱۔ تة اول د اصلاح شروع د خپل ځان نه وکړه او خپل نفس د سرکشئ نه منع کړه او کله، چه دِ دا کار وکړو، نو ته هوښیار يئ**

**۲۔ نو په دغه وخت کښې به ستا وینا خلق اوري او ستا په نظرپسي به خلق اقتداء کوي او ستا تعلیم به نفع مند وي**

**۳۔ او ته خلق د هغه اخلاقو نه مه منع کوه چه ته يئ پخپله کوي او که ته دا وکړي نو دا به ستا دپاره لوئ شرم وي۔**

## د خپل ځان د اصلاح ضرورت:

**تر څو پوري چه انسان خپل ځان نه وي اصلاح کړے، نو دا دَ نورو خلقو اصلاح نه شي کولے، علامه ماوردي رحمه الله ليکلي دي:**

قال بعض العلماء ينبغي للملك ان يبتدي بتقويم نفسه قبل ان يبتدئ بتقويم رعاياه والا كان بمنزلة مَن اراد تقويم ظل معوج قبل تقويم عوده الذي هو ظل له (**تسهيل النظر وتعجيل الظفر ص ۳۶ الفصل السادس الافعال الشريفة بالاخلاق الشريفة**)

**بعضي علماء وېلي دي چه د بادشاه او حاکم دپاره مناسب دي چه اول خپل ځان برابر کړي او بیا خپل رعیت برابر کړي او که داسي اونکړي نو ددے حال به د هغه چا پشان وي چه ځان ئے نه دے برابر کړي او د خپل نا برابر بدن سورے برابره وي او دا کله کيدي شي۔**

## د خپل ځان د اصلاح کولو فائدي او د نه اصلاح کولو نقصانات:

**هر کله چه انسان د مخکي نه خپل ځان اصلاح کړي نو ددي فائده داده، چه دے به ددي نه روسته د نورو خلقو په اصلاح کولو باندي ښه قادروي او که د خپل ځان اصلاح ونه کړي کوم، چه ده ته نزدي او ډير محبوب دے نو د نورو اصلاح نه شي کولے کوم چه ده ته دومره نزدي نه دے او نه ورته دومره محبوب دے علامه ماوردي رحمه الله ليکلي دي:**

فاذا بدأ بسياسة نفسه كان علي سياسة غيره أقدر واذا اهمل مراعاة نفسه كان بأهمال غيره أجدر فبعيد ان يحدث الصلاح عمن ليس فيه صلاح لان ضرورة نفسه امس وهو بتهذيبها اخص فاذا غلب عليه عنادها واستصعب عليه قيادها كان عناد المباين له اغلب وقياده عليه اصعب قال بعض الحكماء مَن بدا بسياسة نفسه ادرك سياسة الناس (تسهيل النظر وتعجيل الظفر ص۴۷)

**نو کله چه یو شخص اول د خپل ځان اصلاح وکړه نو دے د بل په اصلاح کولو کښ ښه قادر دے او چه کله انسان د خپل ځان د اصلاح په باب غفلت وکړو او اصلاح یې نه کړو نو بل څوک چیر ته هم نشي اصلاح کولے نو دا ډیره لري او گرانه خبره ده چه د یو چا د خپل ځان اصلاح نوي کړي او د بل اصلاح کوي او دا ځکه، چه ده ته د خپل نفس د اصلاح ضرورت ډیر دے او دے د خپل نفس اصلاح په خپله کولے شي نو هر کله چه په ده د خپل نفس عناد او مخالفت غالب شي او تابع کول یې مشکل شي نو د بل عناد کوونکي عناد به په ده ضرور غالب راځي او د هغه تابع کول به ده ته ډیر گران کاروي بعضي حکماوو ویلي چا چه د خپل ځان په سیاست او اصلاح شروع وکړه او اصلاح یې کړو نو دے د نورو خلقو اصلاح په کامیابۍ سره کولے شي همدارنګي کله چه مشر خپل ځان اصلاح کړي نو دا دده د رعیت د اصلاح سبب گرځي۔**

## د خپل نفس د اصلاح اسباب:

**مخکښ د نفس د اصلاح اهمیت واضح شو د خپل نفس د اصلاح دپاره ډیر اسباب دي، بعض اسباب یې علامه ماوردي رحمه الله په لاندي انداز ذکر کړي۔**

## په ځان د حسن ظن څخه ډډه کول:

**همیشه دپاره به انسان په خپل نفس باندي بدګمانه وي او دا ځکه چه په نفس ښه گمان کول ډیر نقصانات لري علامه ماوردي رحمه الله لیکلي دي:**

ربما حسن ظن بنفسه فاغفل مراعاة اخلاقِه فدعاه حسنُ الظن بها الي الرضاعنها فكان الرضا عنها داعيا الي الانقياد لها ففسد منها ما كان صالحا ولم يصلح منه ما كان فاسداً قال بعض الالبّاء مَن رضي عن نفسه اسَخَطَ عليه النّاسُ (تسهيل النظر وتعجيل الظفر ص۴۸-۴۹ الفصل السادس الافعال الشريفة بالاخلاق الشريفة)

**د انسان د نفس د اصلاح یوه طریقه داده چه انسان به په خپل نفس بدګمانه وي ځکه چه ډیر کرتي یو تن په خپل نفس ښه گمان لري او خپل ځان ورته اصلاح ښکاري نو ددي نقصان بیا دا شي چه د نیکو اخلاقو د کسبولو نه غافل شي، نو په خپل ځان باندي ښه گمان کول په ده ددي باعث شي چه دے د خپل نفس نه راضي او مطمئن شي، چه ځه نیک شخص یم او دا رضا سبب د دے شي چه دے د نفس تابع شي چه نتیجه ئے دا شي چه نیک اخلاق او اعمال یې فاسد شي او فاسد اخلاق او اعمال ئے**

صحیح نه شي بعضي هوښیارانو ویلي ځوک چه د خپل ځان نه راضي شو، نو نور خلق به د دده نه ناراضه وګرځي۔

### په خپل نفس د حسن ظن لوئ اسباب:

په خپل نفس د ښه ګمان ډیر اسباب دي، چه د هغي د جملي نه کبر دے۔

### دکبر او ځان خوښي او ددي نقصانات:

په خپل نفس باندي د حسن ظن د اسبابو نه یو کبر او بل ځان خوښي ده چه دا خصوصا په حاکمانو کښ ډیر قبیح صفتو نه دي علامه ماوردي رحمه الله لیکلي:

تسهیل النظر وعجیل الظفر ص ۴۹ الفصل السادس الافعال الشریفة با الاخلاق الشریفة

په خپل نفس د حسن ظن ډیر اسباب دي چه قوي سبب ئ د اسبابو نه تکبر او خود پسندي ده دا صفت د هر چا په حق کښ قبیح دي خود بدشاهانو، حاکمانو او اجتماعي خدمت کوونکو په حق کښ ډیر قبیح دي، ځکه چه په دي سره لوړ همت کمزوري کیږي ، چه دے خپل ځان په عالي مرتبه او مقام کښ حسابوي چه د خپل ځان په رابطه دا فکر او نظر لرل دا د هغه طاقت او قوت ضعف دے، چه بادشاهان د هغي نه ځان ساتي ځکه چه قدرت د بادشاهانو په قدرت، قوت او غلبي سره ظاهریږي نه په تکبر او ځان خوښئ سره او د انسان د مذمت او بدئ دپاره دا کفایت کوي، چه د انسان همت دده د رتبي نه کم وي او قوت يئ د قدرت نه کمزوره وي بادشاه د نورو خلقو په نسبت د عالي همت خاوند وي او د نورو نه امیدونه زیات وي۔ ددي وجي نه تکبر او ځان خوښي په حاکمانو کښ دیر قبیح او دویته يئ راجع کیدونکي نقصان د دوئ دپاره ډیر شرموونکي دے۔

### د حضرت ابوبکر رضي الله عنه اثر:

مخکښ ذکر شو چي تکبر او ځان خوښي په حاکمانو کښ خصوصا ډیر قبیح صفتو نه دي، نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه د هغه بادشاه او حاکم صفت کړے په چا کښ چه تکبر او ځان خوښي نه وي اول خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ویلي دي:

اذا اردت شریفَ الناس کلّهم فانظر الي ملك في زيّ مسکین

ذاك الذي حسنتُ في الناس فافته ذاك يصلح للدنیا وللدین

(مختصر تاریخ د مشق ج ۳ ص ۱۵۸ باب زراخ الهندي شاعر، کنز العمال ج ۵ ص ۷۶۴ رقم ۱۴۳۱۲ تسهیل النظر ص ۴۹۔ الفصل السادس)

کله چه ته اراده وکړي، چه په خلقو کښ د ټولو نه شریف او معزز شخص وګوري، نو ته هغه بادشاه وګوره چه په لباس او وضع د مسکین کښ وي او دا ځکه، چه د مسکین نرمي او شفقت په خلقو کښ ښه وي او صالح بادشاه د خلقو د ټولو دیني او دنیوي امورو دپاره بر ابرونکي او اصلاح کوونکي وي۔

## د تکبر او ځان خوښۍ تر منیځ فرق:

د تکبر او ځان خوښۍ تر مینځ د فرق کولو په باره کښ د علامه ماوردي رحمه الله وینا:

، تسهیل النظر ص ۵۱ الفصل السادس

دا دواړه په بدوالي کښ سره جمع کیږي چه دواړه قبیح او بد صفتونه دي خو د معنی په لحاظ سره جدا دي هغه دا رنګې، چه د خود پسندۍ او ځان خوښۍ تعلق د نفس سره دي، چه انسان د خپل ځان په رابطه دا فکر کوي، چه زه د نیکو اخلاقو خاوند یم او د تکبر تعلق د مرتبي او دقدرت سره وي چه دے دغه قدرت او مرتبه د خپل ځان په رابطه ډیره اوچته ګڼړي نو د ځان خوښۍ علت لذاته دي او د نفس سره لازم وي او د تکبر علت چونکه عارضي وي ډیر دردونکے وي او دواړه د فضیلت او مرتبي خاوندانو دپاره بد صفتونه دي۔

## د تکبر او ځان خوښۍ غټ اسباب:

د تکبر او خود پسندۍ قباحت ذکر شو دا چه انسان ځان تري وساتي لازمه ده چه اسباب يې هم مختصر پیژندل شي چونکه دا ډیر اسباب لري خو دلته به يې قوي اسباب ذکر کولے شي۔

الف۔ د نیا پرسته دوستان، ب ۔ دنیا پرست ستایونکي:

د تکبر او خود پسندۍ د اسبابو نه یو سبب د دنیا غرَضي دوستان دي او بل د دنیا غرَضي صفت کوونکي دي، چه دوئ د خپلو اغراضو د تحقق دپاره د حاکم په حق کښ افراط وکړي، چه په نتیجه کښ په حاکم کښ تکبر او خود پسندي پیدا شي علامه ماوردي رحمه الله ددي په رابطه لیکلي دي:

تسهیل النظر وتعجیل الظفر ص ۵۲ من اسباب الکبر والاعجاب)

د تکبر دپاره ډیر اسباب دي د قوي اسبابو نه یو سبب يې زیاتوالے د هغه اشخاصو دے چه دوئ په تکلف سره او د دنیوئ غرض په خاطر حاکم ته ځان نزدي کوي او هغه خلق دي، چه بي ځایه مدح او طمع کوونکي دي، چه دروغ او منافقت يې د ژوند ذریعه ګرځولي وي ټګي خوښوي او دا عمل، چه دوئ کوي، نو د دي وجي نه چه دوئ کمینه او بي حیثیته خلق دي کله چه دوئ د خپل منافقت دپاره موقع پیدا کړي او د خپلو دروغو دپاره توثیق او مطابقت پیدا کړي، نو دوئ دغه دروغ او منافقت خپل په ذمه وارئ د احمقانو کښ ذریعه د رسیدلو او د ترقئ وګرځوي او ځان پري حاکم شخص ته ورسوي دا د دوي دپاره غنیمت شي او مال پري راجمع کړي او د دي مال په عوض کښ خپل دین دلاسه ورکړي د دین په عوض کښ حاکم ورته څه حصه مال ورکړي حاکم د ځان سره دا فیصله کوي، چه دوئ چه زما په

مدحه کښ څه اویل هغه دروغ دي ځکه ، چه حاکم په خپل نفس علم لري او حاکم په دي فکروي چه په دي طریقي سره دده دا مدحه او صفت په حقیقت کښ په ده پوري استهزاء او مسخري دي او دا ځکه ، چه بادشاه او حاکم د بي ځایه صفت کوونکو هدف دده سر دردي او دده دوکه کول وو او هغه مقصد حاصل شو ـ ځرنګي چه دا عمل خطرناک دي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم تري منع کړي او فرمایلي دي، چه کله تاسي د داسي بي ځایه صفت کوونکي وګورئ نو د دوئ په مخ خاوري واچوئ او همدارنګي نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه د داسي بي ځایه مدحو څخه ځان وساتئ ځکه چه دا قسمه مدحي سبب د هلاکت د انسان ګرځي۔

## اسلامي دولت چاته واي

د اسلامي دولت یا اسلامي حکومت تعریف په ډیر ساده او واضحه الفاظو کښ داسي کولي شي:

انما الدولة التي تقوم علي مبادئ القرآن الکریم وسنة رسول الله صلي الله علیه وسلم وتتخذ من شریعة الله المتمثلة فیها منهاج حکم شامل (نظام الحکم في الاسلام ص:۱۶۳ المبحث الثالث الدستور في الاسلام د محمد فاروق نبهان)

اسلامي دولت هغه ته واي چه د قرآن کریم او د رسول الله صلي الله علیه وسلم په سنتو ولاړوي او د الله تعالي د شریعت په رڼرا کښ (چه هغه د قرآن او سنت نه اخستلي شوي) د حکومت دپاره یوه عامه او شامله لار جوړه شي۔ یعني اسلامي دولت هغه حکومت ته واي چه د شریعت او قرآن او سنت په رڼرا کښ چلیږي۔

## د اسلامي دولت اساسي قانون چاته واي

د اسلامي دولت اساسي قانون یا په بل تعبیر د اسلامي ریاست اعلي ترین آئین قرآن کریم او سنت د رسول کریم صلي الله علیه وسلم دے او دا هغه آئین او قانون دے چه پدیکښ هیڅ تبدیلي ممکن نه ده۔ لهذا ټوله قانون سازي به د قرآن او سنت تابع وي۔

## شپږم باب: د جمهوریت متعلق شبهات او جو ابات

**اوله شبه: په امیدوارانو کښې چه څوک غوره وي هغه ته ووټ ورکول ضروري او واجب دي۔**

**جواب:**

ووټ د جمهوریت حصه ده او جمهوریت کفر او غیر اسلامي شي دے او ګناه او معصیت دے او کوم شي چه د ګناه یا کفر حصه وي هغه واجب نه وي۔

او دا به څرنګې واجب وي چه انسان د کفر او نفاق او د بغض او نفرت او مکر او فریب او د غیبت او بهتان او اسراف او تبذیر او دوکے او فریب په سمندرونو کښې ډوب کړي او دا به څرنګے واجب وي چه هغه اولاد د پلار نه جدا کوي او هغه د مدرسو او جماتونو ماحول خرابوي او هغه د علم او تقوي جنازې اوباسي۔

**دویمه شبه: بعض علماء کرامو فتوي ورکړي چه ووټ ورکول پکار دي ځکه ووټ شهادت دے سفارش دے وکالت دے۔**

**د بعض علماء د خبرې تفصیل:**

**د ووټ حیثیت:**

ووټ شهادت دے یعني چه څوک د دے منصب طلب کوي نو دهغه د اهلیت ګواهي ده چه دا د دے منصب اهل دے۔

او ووټ سفارش دے یعني ووټ ورکونکي د امیدوار دپاره د دغه منصب سفارش کوي او ووټ توکیل یا وکالت دے یعني ووټ ورکونکي امیدوار لره د خپلو حقوقو دپاره وکیل ګرځوي۔ نو ووټ ورکونکي مؤکل دے او امیدوار وکیل دے۔ د دے وجه نه په بعض ملکونو کښې د اسمبلي ممبر ته وکیل واي۔

مفتي محمد شفیع رحمه الله په جواهر الفقه ص:۲۹۹ ج:۲ کښې واي:

ہمارا ووٹ تین حیثیتیں رکھتا ہے، ایک شہادت، دوسری سفارش اور تیسری حقوق مشترکه میں وکالت۔

**د ووټ شرعي حکم د شهادت په حیثیت**

کوم علماء چه د ووټ دغه درے حیثیتونه بیانوي نو دهغوي په نیزد ووټ شرعي حکم هغه دے چه کوم قرآن کریم د شهادت په باره کښې بیان کړي، لکه الله تعالي واي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ (المائده:۸)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلَّهِ (النساء:۱۳۵)

وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا (البقرة:۲۸۲)

وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ (البقرة:۱۴۳)

(البقرة:۲۸۲)

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا (النساء:۵۸)

**پدے آياتونو کښ چه د شهادت کوم حکمونه بيان شوي نو دغه حکمونه د ووټ هم دي۔ مثلا:**

**۱۔ صحيح ګواهي به صرف د الله تعالي دپاره کوي نو دغه رنګي ووټ به صرف د الله تعالي دپاره استعمالوي۔**

**۲۔ که ستا دشمن په حقه دي او رشتيني وي نو انصاف دا دے چه دهغه په حق کښ ګواهي وکړي نو دغه رنګي که په ووټونو کښ ستا مخالف په حقه وي او رشتيني وي، ووټ به هغه ته ورکوي دپارټي لحاظ به نه کوي۔**

**۳۔ کچري ستا د رشتيني ګواهي په وجه تا ته په خپله يا ستا مور او پلار يا رشته دارو دوستانو يا پارټي والا ته نقصان رسيږي نو و دِ رسيږي نو دغه رنګي که ستا د صحيح ووټ په وجه دغه مذکوره کسانو ته نقصان رسيږي نو پرواه يې نه کوي۔**

**۴۔ څرنګي چه د ګواهي نه انکارکول ګناه ده ظلم دے نو دغه رنګي د ووټ د استعمالولو نه انکارکول هم لويه ګناه ده او لوي ظلم دے۔**

**۵۔ صحيح اهل ته ووټ ورکول ضروري امانت دے او نا اهله ته ووټ ورکول خيانت دے او لويه ګناه دي۔**

## د ووټ شرعي حکم د سفارش په حيثيت

**ووټ په بل حيثيت سفارش دے يعني د ووټر د طرف نه د دے خبري سفارش دے چه فلاني اميدوار په نسبت د نورو اميدوارانو د مطلوبه عهدے او منصب زيات حقدار او اهليت والا دے۔**

**نو هر کله چه دا سفارش دے او سفارش اسلامي زمواري ده که د يو حقدار دپاره د الله تعالي د رضا دپاره سفارش وکړي نو دا لوي عبادت دے او د الله تعالي درضا لويه ذريعه ده۔ نو دغه رنګي صحيح کس ته ووټ ورکول لوي ثواب دے او د الله تعالي د راضي کولو لويه ذريعه ده۔**

او که د یو نا اهله خائن بدکردار دپاره سفارش کوي نو دا لویه گناه ده او د الله تعالي د ناراضګي لویه ذریعه ده۔ نو دغه رنګي نا اهله ته ووټ ورکول هم لویه ګناه ده او د الله تعالي د ناراضګي لویه ذریعه ده۔

ځکه الله تعالي واي:

مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا وَمَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُنْ لَهُ كِفْلٌ مِنْهَا (النساء:۸۵)

## د ووټ شرعي حکم د مشورے په حیثیت

ووټ په یو بل حیثیت سره مشوره هم ده یعني ووټر الیکشن یا سلیکشن کونکي اتهارټي ته د خپل ووټ په ذریعه دا مشوره ورکوي چه ځه چه چا ته ووټ ورکوم نو په ده کښ د دغه منصب د اهلیت ټول شرطونه موجود دي۔ لهذا زما مشوره دا ده چه دَ ته دا منصب او عهده وسپارلي شي او په شرعي لحاظ مشوره امانت دے او مشوره ورکونکي امانت داردے ځکه رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:

المستشار مؤتمن (متفق علیه)

د چا نه چه مشوره طلب کولي شي هغه امانت داردے نو دا به صحیح مشوره ورکوي غلطه مشوره به نه ورکوي۔ نو ووټ امانت دے، ووټر امانتدار دے او ووټ په صحیح ځاي کښ استعمالول امانت داري او دینداري ده او ووټ په غلط ځاي کښ استعمالول خیانت دے۔

## د ووټ شرعي حکم په حیثیت د وکالت

په ووټ کښ څلورم حیثیت د وکالت دے، یعني ووټ ورکونکي امیدوار خپل وکیل ګرځوي نو ووټر مؤکل دے او امیدوار وکیل یا نمائنده او نائب دے۔ او دا قانون دے چه د وکیل ټول ښه او بد د مؤکل په غاړه وي۔

که یو سړي یو خائن، زاني، شرابي دالله او د رسول نافرمان او باغي خپل وکیل او نائب کړي نو دا مؤکل ګنهګار دے۔

او که د دے برعکس یو نیک او متقي سړي وکیل کړي نو دا اجر او ثواب دے نو دغه رنګي که ته ووټ صحیح سړي ته ورکړي ثواب دے ورنه عذاب دے۔

## حاصل بحث

ووټ د دے څلور حیثیتونو په وجه اسلامي فریضه او زمداري ده۔ په صحیح ځایکښ استعمالول ضروري دي او په غلط ځایکښ استعمالول ګناه ده۔ دا دغه بعض علماء د قول حاصل دے چه هغه ووټ استعمالول ضروري ګڼړي اګرچه مونږ ورسره مو افق نه یو۔

### اجمالي جواب:

دا شهادت ځکه نه دے چه د د شهادت نصاب معلوم وي، مثلا دوه کسان وي، او د دے نصاب په دوه وو نه پوره کیږي بلکه په زرګونو هم نه پوره کیږي۔

دویم دا چه دا شهادت ځکه نه دے چه په شهادت کښ مسلمان او کافر نارینه او زنانه بر ابر نه وي او په ووټ کښ بر ابر وي۔

دریم دا چه دا شهادت ځکه نه دے چه په شهادت کښ مرتد مردود الشهادت وي او په ووټ کښ مرتد مردود الشهادت نه دے۔

او دا سفارش هم نه دے ځکه د سفارش قبلول ضروري نه دي او په ووټ کښ که یو کس هم زیات شي نو دهغے قبلول ضروري وي۔

او وکالت هم نه دے ځکه په وکالت کښ مؤکل د وکیل نه مضبوط وي او پدیکښ خو وکیل د مؤکل نه زیات مضبوط وي۔

### تفصیلي جواب

#### مونږ و ایو چه مروجه ووټ نه شهادت دے او نه سفارش او وکالت دے

مونږ و ایو چه ووټ نه اسلامي فریضه ده او نه شهادت دے ځکه په اسلام کښ د ټولو فر ائضو دپاره څه شرطونه دي لکه مونځ روژه حج زکوة۔ د دے د صحت دپاره شرطونه شته نو دغه رنګي که ووټ اسلامي فریضه او شهادت سي نو د شهادت دپاره هم څه شرطونه شته۔ یو شرط دا دے چه ووټریعني ووټ ورکونکي په بل تعبیر شهادت کونکي به صحیح العقیده مسلمان وي۔

او په مروجه ووټونو کښ دا شرط نشته چه ووټر به صحیح العقیده مسلمان وي، ځکه اکثر پکښ داسي دي چه په هغوي کښ د کفر علامات موجود دي، مثلا اسلامي تعزیر اتو ته وحشیانه او ظالمانه سزاګاني واي، اسلامي نظام ته فرسوده نظام واي، اسلامي نظام ته باعث د تنزل واي، کله واي چه د موجوده زماني دپاره دا نظام غیر موزون دي، څوک پکښ د ختم نبوت نه انکار کوي، څوک قرآن کریم کامل او مکمل نظام نه ګڼړي۔ نو داسي سړي د دائرے د اسلام نه خارج دے۔ اګرچه کلمه واي، مونځ اودس کوي، روژه نیسي، حج زکوة ورکوي، تلاوت او تهجد کوي۔ او په داسي سړي کښ دا اهلیت نشته چه دا ووټر او شهادت ورکونکي وګرځي۔

بل دا چه ووټ ورکونکي شاهد او ګواه ځکه نه دے چه ګواهي ورکونکي به عادل یا کم از کم مستور الحال وي، یعني د ظاهري صورت او سیرت په لحاظ به صحیح العقیده مسلمان وي۔ داسلامي فر ائضو او ارکانو به پابند وي د کبیره ګناهونو نه به ځان ساتي او که کومه ګناه ئے کړي وي، دهغے نه بئے رشتیني توبه ایستلي وي، د توبے نه روستو به په هغه کښ اصلاح عمل او تقوي ښکاره لیدلي کیږي او

په مروجه ووټونو کښ اکثر ووټران داسي نه دي۔ ځکه د اکثرو ظاهري صورت او سیرت هم د اسلام نه خلاف وي او د اسلامي ارکانو او فرائضو پابندي پکښ هم نه وي۔ د مونځ اودس حج روژې زکوة خیال نه ساتي، اکثر په کبیره ګناهونو کښ اخته وي، ځکه شراب څکي، سودي کاروبار کوي، رشوت خوري، ولهم اعمال من دون ذالک هم لها عاملون۔

بل دا چه ډیر کرته ووټ په پیسو او دولت خرڅولي کیږي۔ په شریعت کښ د داسي ووټ هیڅ قدر او قیمت نشته او ووټ اخستل او خرڅول دواړه حرام دي نو داسي ووټ ته به څرنګي شهادت اوویلي شي۔

بل دا چه ووټ شهادت ځکه نه دے چه شهادت د مورپلار اولاد دپاره صحیح نه دے۔ دغه رنګي شهادت دهغه چادپاره صحیح نه دے چه دهغه سره د ګواه نفع او نقصان شریک وي یا د عصبیت قوم پرستي او دشمني په بنیاد هم شهادت صحیح نه دے او په مروجه ووټونو کښ دا ټولي خبري شته۔

او کوم علماء چه ووټ ورکول ضروري ګڼرۍ، ثواب ئے ګڼرۍ دیته شهادت سفارش وکالت واي۔ نو الله تعالي دهغوي په حال ښه خبر دے، کیدي شي چه دا دهغوي اجتهادي خطائي وي۔ خو ظاهرا دا خبري د اسلام او جمهوریت خلط ملط ښکاري او ظاهرا شوده او بول یو ځاي کول دي او ظاهرا د دے قول مصداق معلومیږي چه نرقع دنیانا بتمزیق دیننا فلا دیننا یبقي ولا ما نرقع

دریمه شبه:

بعض علماء کرامو فتوي ورکړي چه جمهوریت نه اسلام دے نه کفر بلکه جمهوریت ضرورت دے نو مونږ د ضرورت په وجه د ضرورت په اندازه پدیکښ حصه اخلو۔

بعض واي چه مونږ دا منو چه جمهوریت کفر دے لکه ضرورت دے مجبوري ده او د ضرورت په وخت کښ د خنزیر غوښه خوړل هم جائز دي۔

جواب:

اول خو مونږ دانه منو چه جمهوریت ضرورت دے ځکه په شریعت کښ د جمهوریت متبادل لارشته چه هغه دعوت او جهاد دے چه دعوت او جهاد د الله تعالي حکم دے او د رسول الله صلي الله علیه وسلم طریقه ده۔ د دعوت او جهاد د لاري نه په نظام کښ تبدیلي راتلي شي او که تبدیلي رانه شي نو خپل مسؤولیت عند الله اداء کیږي۔

ستاسو سره په زرګونو مدرسے مرکزونه او خانقاګاني دي او په هغے کښ په لکونو متحرک او صحت مند نوجوانان شته۔

ستاسو سره د فتوے هغه طاقت دے چه هغه په دنیا کښ دهیچا سره نشته او د دغه فتوے په برکت د طاغوت لښکري تهس نس کیدے شي۔

دویم دا چه دا ځرنګي ضرورت دے چه ټول عمر نه پوره کیږي۔ ستاسو خو ټول عمر پدیکښ ختم شو آیا د خنزیر غوښه څوک ټول عمر خوري۔

دریم دا چه که تاسو ویوي چه مونږ منو چه جمهوریت ګناه یا کفر دے خو ضرورت دے نو مونږ دا هم نه منو چه تاسو ورته ګناه یا کفر ویوي، ځکه چه تاسو خو د دے کفر یا خباثتونه په یو تقریر کښ هم عوامو ته واضحه نه کړو، ستاسو د شرکت او خاموشي په جه د دے په کفر او خباثتونو کښ د اکثر عوامو شک دے۔

دا ځرنګي کیدے شي چه یو دینداره غیرتي عالم یو شي کفر ګڼړي او بیا هم هغه خوریږي او دا خاموشه وي او خپلو شاګردانو مقتدیانو او معتقدینو ته د دے کفر نه واضځه کوي۔

## څلورمه شبه: د ووټ په باره کښ بعض مشرانو علماء فتوي ورکړي

دا فتوي خو بعض مشرانو مشرانو علماء کرامو ورکړي چه ووټ شهادت دے، سفارش دے، وکالت دے، دغه رنګي فتوي ئے ورکړي چه نیکانو خلقو ته ووټ ورکول سبب د اجر عظیم دے۔

## جواب:

دغه مشران مونږ ته ډیر زیات محبوب دي، د دغو سره مونږ مینه محبت کوو او د دغو احترام کوو لکن د دغه مشرانو نه مونږ ته حق ډیر زیات محبوب دے، لکه شیخ الاسلام ابن قیم رحمه الله د شیخ الاسلام الانصاري رحمه الله د بعض خبرو په باره کښ واي چه شیخ الاسلام مونږ ته محبوب دے ولکن الحق احب الینا منه (لکن حق مونږ ته د ده نه دیر زیات محبوب دے)۔

دغه رنګے امام ابو حنیفه رحمه الله واي چه کله ځما خبره د قرآن او سنت نه خلاف وه نو د دیوال نه ئے وولي۔

نو مونږ دغه قسم فتوے نظر انداز کوو او د دغه سره هیڅکله موافقه نه کوو۔

دغه رنګي د شریعت څلور دلائل دي، قرآن ، سنت، اجماع او قیاس۔ د یو عالم قول چه بے دلیله وي یعني په شریعت کښ دلیل نه وي۔ نو د یو عالم قول چه بے دلیله وي زمونږ دپاره هیڅکله حجت نه دے۔

## قول او عمل د مشائخو او مشرانو دلیل شرعي نه دے:

امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائي:

لا یحل لاحد ان یاخذ بقولنا مالم یعرف ماخذه من الکتاب والسنۀ او اجماع الامۀ او القیاس۔ (النافع الکبیر ص:۱۰۱، الجواهر المضیئۀ ص:۵۲ ج:۱)

حلال نه دي یو کس لره چه زمونږه خبره قبوله کړي ترڅو چه د هغې ماخذ یعني د اخستولو ځائې ونه پیژني چه کتاب الله او سنت رسول دي یا اجماع امت یا قیاس دي۔

امام ابو یوسف رحمه الله د خپل وفات په وخت کښ فرمائیلي وو:

کل ما افتیت به فقد رجعت عنه الا ما و افق الکتاب والسنۀ۔ (تذکرۀ الحفاظ ص:۱۹۳ ج:۱)

ما چه په کومه خبره هم فتوي ورکړې ده زه د هغې نه رجوع کوم سوا د هغې نه چه د کتاب الله او سنت رسول صلي الله علیه وسلم سره مو افقت لري۔

امام اوزاعي رحمه الله فرمائي:

علیک بآثارمن سلف وان رفضک الناس و ایاک وراي الرجال وان زخرفوه بالقول فان الامر ینجلي و انت علي صراط مستقیم (تذکرۀ الحفاظ ص:۱۵۰ ج:۱)

د سلفو صالحینو آثار لازم اونیسه اګرچه خلق تا پریږدي او د خلقو د رایو نه لري اوسه (ځان اوساته) اګرچه هغوي دغه په ملمع وینا سره ډولي کړي۔ پس خبره روښانه ده او ته به په بر ابره لاره ئې۔

مجدد الف ثاني رحمه الله:

عمل صوفیه درحل و حرمت حجت نیست (دفتر اول ص:۲۶۶)

د صوفیانو عمل په حلت او حرمت کښ دلیل نه دي۔

مدخل کښ دي:

فکل مالم ینقل عن الشارع یجب طرحه ولا یتبع في ذلک المشایخ وان آل الامر الي فر اقهم وهجرهم فانما صلۀ الرحم في اتباع الشریعۀ لا في طواطؤ البدعۀ۔ وروي الا لایقلدن احدکم الحي فان الحي لا تؤمن علیه الفتنۀ (صفۀ الصفوۀ ص:۱۶۶، اغاثۀ اللهفان ص:۱۵۹)

پس ټول هغه څه چه د شارع نه نقل نه وي غورځول ئې واجب وي او په هغه کښ د مشایخو اتباع نه ده پکار اګر چه خبره د هغوي جدائي او پریخودلو ته راوګرځي، ځکه صله رحمي په اتباع د شریعت کښ ده نه د بدعت په مو افقت کښ

او رو ایت کښ راغلي دي:

خبردار! په تاسو کښ دِ یو تن هم د ژوندي اتباع نه کوي ځکه ژوندي د فتنې نه په امن کښ نه وي۔
(اصول السنة)

## پینځمه شبه: د جمهوریت او انتخاباتو متبادل لارنشته

بعض خلق واي چه زمونږ سره د جمهوریت او انتخاباتو متبادل لارنشته۔

### جواب:

آیا زمونږ دین مکمل نه دے، آیا زمونږ رب مونږ داسي خوار او ذلیله پریښي یو چه زمونږ سره د دے بدبودار کفري سستم متبادل نشته۔ آیا زمونږ دین ناقص او نیمګړي دے چه اوس دهغې نیمګرتیا په جمهوریت او انتخاباتو پوره کوو۔ د دے خو داسي مثال دے چه د یوے رنډي زنانه پنځوس یاران وي او واي چه په اسلام کښې مالره د دے متبادل نشته۔ یا یو سړي د مفعولیت په مرض اخته دے او دا واي چه په اسلام کښې ما لره د دے متبادل لاره نشته۔

داسي خلقو لره د دے خبرونه توبه پکارده، متبادل لاره غوښتل نه دي پکار، ځکه دا د مسلمان شان نه دے چه هغه ځانله د کفر او یا د ګناه داسي متبادل لاره ګوري چه هغه هم کفر او یا ګناه وي۔

خو په اصل کښې د جمهوریت تیارو د دوي په سترګو پردي راغورزولي نو دویته متبادل لارپه نظر نه راځي۔ که دوي توبه ویستله او د دوي سترګوته د جمهوریت تیاره ختمه شو او رنړا راغله نو دویته به په نظر متبادل لارراشي۔

متبادل لار هغه دعوت دے او جهاد دے او د جهاد په نتیجه کښې فتوحات دي او بیا په دغه مفتوحه علاقو کښې شرعي نظام قائمول دي۔

بهر حال خپل دین او خپل اسلام نیمګړي ګڼړل نه دي پکار ځکه زمونږ دین مکمل دین دے

الیوم اکملت لکم دینکم

او زمونږ کتاب هره ضروري خبره بیان کړي **تبیانالکل شی۔**

زمونږ کتاب یوه ضروري خبره هم نه ده پریښي مافرطنا في الکتاب من شيئ (وانظر اصول السنة)

### زمونږ دین کامل دے احتمال د زیادت او نقصان نه لري

قال الله تعالي:

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي

وقال تعالي:

وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ

نن ورځ ما ستاسو د پاره ستاسو دین مکمل کړو او خپل نعمت مو په تاسي پوره کړو۔

او الله تعالي فرمائي او د دِ دپاره چه په دوي باندي د دوي دين ګډوډ کړي.

ملا علي قاري رحمه الله فرمائي:

لا نحتاج في امر الدين الي امر خارج من الكتاب والسنة (شرح الفقه الاكبر ص:١١)

مونږ د دين په کارکښ د کتاب او سنت نه بهر بل څه ته نه يو محتاجه

او علامه ابن حزم علي بن احمد واي:

والدين قد تم فلا يزاد فيه ولا ينقص منه ولا يبدل (المحلي ص:٢٦ ج:١)

او يقينا دين پوره شويدي نو پديکښ زيادت کول او نقصان کول به نه کيږي او نه پديکښ څه بدلولي شي.

امام مالک رحمه الله فرمائي:

فما لم يكن يومئذ دينا فلا يكون اليوم دينا (الاعتصام ص:٤٨ ج:١)

پس هغه څه چه پدغه وخت دين نه وو نو نن هغه دين نه وي.

دغه شان بل ځائے کښ و ائي:

قبض رسول الله صلي الله عليه وسلم وقد تم هذا الامر واستكمل فانما ينبغي ان نتبع آثار رسول الله صلي الله عليه وسلم ولا نتبع الرأي فانه متي اتبع الرأي جاء رجل آخر اقوي في الرأي منك فاتبعت فانت كلما جاء رجل غلبك اتبعته (الاعتصام ص:٧١ ج:١)

رسول الله صلي الله عليه وسلم وفات شو او دا دين مکمل شو او پوره شو نو پکار ده چه مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم په نقش قدم پسي روان شو او په راي پسي روان نه شو ځکه کله چه د راي اتباع اوکړيشي او ستا نه په راي کښ بل قوي سړے راغلو نو ته به د هغه اتباع کوي نو هر څوک چه راځي په تا غالبه کيږي ته به ئے اتباع کوے.

## ۶. شپږمه شبه: مخالفينو ته ميدان خالي نه پريږدو

بعض خلق د جمهوريت او انتخاباتو نقصانونه پيجني خو بيا هم واي چه مونږ پديکښ ځکه شرکت کوو چه مخالفينو ته ميدان خالي پريښودل نه دي پکار.

## جواب:

ټولو پيغمبرانو کفارو ته د کفر او د ګناه ميدانونه خالي پريښي. نو داسي نه ده پکار چه يو ډم په ميدان کښ ګډيږي او ته ورسره هم په ګډا شي. پدي دليل چه ډم ته ميدان خالي پريښودل نه دي پکار.

## ۷۔ اومه شبه: مونږ په اهون البلیتین عمل کوو

بعض خلق واي چه مونږ په اهون البلیتین عمل کوو ځکه مجبوري ده، د مجبوري نه په جمهوریت او انتخاباتو کښ حصه اخلو۔

جواب:

هیڅ مجبوري نشته، مونږ د اهون البلیتین په اختیارولو مجبور نه یو، په جمهوریت او انتخاباتو کښ حصه اخستل څه ضروري نه دي، بے طرفه کینه او شرعي لار اختیارکړه چه هغه دعوت او جهاد دے۔

## اتمه شبه: دجمهوریت په جواز اجماع سکوتي ده

ځکه ټول خلق د جمهوریت صفت کوي او په جمهوریت کښ اخته دي۔

جواب:

اول خو د جمهوریت په جواز اتفاق کول د مسلمان د شان سره مناسب نه دي، ځکه په جمهوریت کښ د عوامو حاکمیت دے د اکثریت شارعیت دے او په جمهوریت کښ اباحت مطلقه دے۔

دویم دا چه کچري څوک پے اتفاق وکړي نو داسي اتفاق له اعتبار نشته، ځکه جمهوریت د ټولو آسماني ادیانو او نصوص قطعیو خلاف دے، او که په جمهوریت د خلقو تعامل جاري دے نو دا دلیل د جواز نه دے ځکه داسي خو ټول خلق د بینکونو په ذریعه په سودي نظام کښ په رشوتونو، دروغو او حکم بغیر ما انزل الله کښ اخته دي نو دا تعامل دلیل د جواز نه دے۔

## نهمه شبه: هر کله جمهوریت غیر اسلامي او غیر شرعي عمل دے نو مذهبي جماعتونه پکښ ولي حصه اخلي۔

یعني د ډیري زماني نه خالص مذهبي جماعتونه لکه جمعیة علماء اسلام، جمعیة العلماء پاکستان، جماعت اسلامي، جمعیت اهل حدیث وغیره په مروجه جمهوري عمل کښ برابر حصه اخلي او د دے باقاعده یوه حصه ده نو دوي ولي دا کار کوي، آیا دوي ئے جائز ګڼړي نو ځکه پکښ حصه اخلي او که نه دوي ئے ناجائز ګڼړي نو بیا پکښ ولي حصه اخلي۔

جواب:

په دوي کښ چه کوم پوهه او دینداره خلق دے نو هغوي جمهوریت هیڅ کله جائز نه ګڼړي، لکه دا خبره د دوي د تحریرونو او تقریرونه معلومیږي، مثلا مولانا مفتي محمود صاحب قائد جمعیة العلماء اسلام او د پاکستان د قومي اتحاد سابق صدر او د صوبه سرحد وزیر اعلي او د عصر حاضر یو لوي مفتي هغه واي چه مروجه جمهوریت غیر اسلامي او ناجائز دے، لکه په آذان سحر ص:۱۱۹ کښ مفتي صاحب یو بیان چه هغه په ۴ جون ۱۹۷۲ء لاهور کښ د ختم نبوت منعقده کانفرنس ته خطاب کوي او واي چه د

یورپ په جمهوریت کښ حاکم اعلي عوام دي او څه و ایم چه حاکم اعلي صرف الله تعالي دے، که څوک واي چه حاکم د الله تعالي ماسوا عوام دي نو دَ د الله تعالي په ذات کښ شریک وکړو او غیر الله ئے د الله تعالي سره شریک کړو، په اسلام کښ د داسي جمهوریت هیڅ جواز نشته۔

دغه رنګي د دوي داسي نور تحریرونه او تقریر هم شته۔

خو دا سوال پیدا کیږي چه هر کله دوي مروجه جمهوریت حرام او ناجائز ګڼړي نو بیا پکښ حصه ولي اخلي۔

نو پدے ځاي کښ د جواب دوه طریقي دي، یوه طریقه د دوي ده، یعني دهغه مذهبي جماعتونو چه هغه په جمهوریت کښ حصه اخلي، دویمه طریقه زمونږ ده۔

دوي پدي طریقه جواب کوي:

چه د مغربي جمهوریت پارلیمنټ نمرودي بت خانه ده، څوک د آذر غوندي بت تراشي ته ورځي نو دا لویه ګناه ده او څوک د ابراهیم علیه السلام غوندي بت شکني ته ورځي نو دا عظیم عبادت دے او دغه بت خانبي ته د ورتلو لار جمهوري الیکشن دے نو د مجبوري په وجه دا عمل علماء لره صرف جائز نه بلکه فرض دے۔

شرعا او عقلا چه پدے ګنده لاره د یورپي جمهوریت بت خانو ته دننه ننوزي او د جمهوریت پرستو په نوي نوي بتانو جوړولو د ایمانداري ګذارونه وکړي او چه کله علماء اسمبلي ته دننه لاړ شي او د اسمبلي ارکان د اسلام خلاف په تیزي سره کوم قوانین جوړئ چه دغه علماء دغه ناکاره ارکان د دغه اسلام خلاف قوانینو رفتار منع کړي یائے دغه تیز رفتاري کمه کړي او چه کله د اسمبلي نه بهر رااوزي نو د ټول ملک عوام مسلمانان دهغوي د ګمراهي په مقابله کښ بیدار کړي۔

او په الیکشن کښ دومره اکثریت د علماء نشي کامیابیدے چه هغوي په اسمبلي کښ اسلامي قوانین جوړ کړي، ځکه په اسمبلي کښ قوانین جوړول یا په قوانینو کښ ترمیم د اکثریت په بنیاد کیږي نو که اسلامي قوانین نه شو جوړولي نو څه نه څه داسلام خلاف قوانینو مخ نیوي کولي شو۔

دغه رنګي جواب مولانا نور محمد په خپل کتاب (جمهوریت عقل و نقل کے آئنے میں) کښ کړي۔ مونږ ئے حاصل نقل کړو۔ خو د دے جواب رجع دے خبري ته ده چه زمونږ پدے جمهوري عمل کښ حصه اخستل په جمهوري طریقه الیکشن کول اسمبلي ته ځان رسول د منکر اتو د رد دپاره دي، مونږ د دغه اسلام خلاف قوانینو مخ نیوي وکړو دغه منع کړو یا ئے کم کړو۔

## زمونږ اجمالي جواب:

دغه مذکوره جواب خو د غه مذهبي جماعتونو وو چه هغوي په مروجه جمهوریت کښ حصه اخلي او د دغه عمل باقاعده حصه ګرځیدلي، لکن مونږ پدے جواب هیڅ کله راضي نه یو او نه مونږ دغه کار

فرض ګڼړو، نه یې جائزګڼړو، نه یې ثواب او عبادت ګڼړو او نه دیته د ابراهیم علیه السلام کردارو ایو، بلکه مونږ الله تعالي ته د دغه جمهوري عمل نه برائت پیش کوو او وایو چه اللهم انا نبرء الیک مما صنع هؤلاء۔

او چه کومو مشرانو او دینداره علماء په دغه عمل کښې حصه اخستي دا د هغوي اجتهادي خطائي ده، الله تعالي دِ ورته د اجتهاد اجرورکړي او کومه خطاء چه ترینه په دغه اجتهاد کښې شوي هغه دِ ورته الله تعالي معاف کړي۔ او دهغوي دغه اجتهادي خطائي زمونږ دپاره دلیل نه دے۔ دهغوي د مشري او دینداري په خپل ځاي ډیر احترام کوو لکن په دغه جمهوري عمل کښې ورسره هیڅ کله مو افقه نه کوو۔ پدے ځاي کښې زمونږ او د دوي لاري بیلا بیل کیږي۔ هذا فراق بیني وبینک۔ او د دوي دغه عمل یعني په مروجه جمهوریت کښې حصه اخستل زمونږ دپاره قابل تقلید عمل نه دے او نورهم د جمهوري طریقي نه منع کوو او دا توصیه ورته کوو چه د دغه علماء په اجتهادي خطائي پسي مه رو انیږي، بلکه د رسول الله صلي الله علیه وسلم او خیر القرون په نهج روان شي چه هغه دعوت هجرت او قتال في سبیل الله تعالي دے۔

## زمونږ تفصیلي جواب

مونږ دغه کارنه فرض ګڼړو او نه یې ثواب او عبادت ګڼړو ځکه چه مخکښې مونږ یوه قاعده ذکرکړیوه چه زمونږ دین کامل دے ځکه الله تعالي واي اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ او زمونږ په دغه کامل دین کښې مروجه جمهوریت او یا پدے جمهوري عمل کښې حصه اخستل نشته او امام مالک رحمه الله واي:

فما لم یکن یومئذ دینا فلایکن الیوم دینا (الاعتصام ص:۲۸ ج:۱)

چه کوم شي د نبي صلي الله علیه وسلم په زمانه کښې دین نه وو نو هغه نن هم دین نه دے۔

نو مروجه جمهوریت یا پدے جمهوري عمل کښې حصه اخستل د رسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کښې دین نه وو نو نن صبا هم دا دین نه دے او ثواب او فرض هم نه دے۔

### دویم قاعده

شرح العقیدة الطحاویه دا ذکرکړي چه مبني الدین علي النقل والاتباع لا علي العقل والهواء

یعني دین په نقل او د رسول الله صلي الله علیه وسلم به تابعداري بناد دے په عقل او خواهشاتو نه دے بنا۔

او موجوده یورپي جمهوریت یا د دے حصه ګرځیدل په دین اسلام کښې نه دي نقل شوي بلکښې دغه غربي جمهوریت په عقل او خواهشاتو بنا دے او کوم شي چه په عقل او خواهشاتو بنا وي هغه دین نه وي۔ نو موجوده غربي جمهوریت او په دے کښې حصه اخستل دین نه دے۔

**دریمه قاعده: د اهل السنة والجماعة**

ابن کثیر رحمه الله دا ذکر کړي چه هر یو فعل او قول چه د صحابو نه ثابت نه وي نو هغه به بدعت وي لانهم لم یترکوا خصلة من خصال الخیر الا وقد بادروا الیها یعني د صحابو نه د خیر یو کار نه هم نه دے پاتي شوي او د خیر هر یو کار ته هغوي تلوار کړي. نو کچري سیکولر جمهوریت د خیر کار وي نو صحابو به پکښ حصه اخستي وي او دهغوي نه بۀ نقل شوي وي.

لهذا د دے قاعدے مطابق په جمهوریت کښ حصه اخستل او ثواب او عبادت ګڼړل بدعت دے.

**څلورمه قاعده علماء داسي ذکر کړي:**

ولا یزال المنکر بما هو انکر منه

یعني ازاله د یو منکر به په بل غټ منکر نه کیږي. نو دوي چه واي چه مونږ په جمهوري عمل کښ حصه اخلو د دے دپاره چه د اسمبلي په داخل کښ د منکراتو او خلاف شرع قوانینو جوړولو رد وکړو نو مروجه جمهوریت او الیکشن په بے شماره منکراتو مشتمل دے چه مخکښ د دے بیان تیر شویو. نو دا د شرع او عقل نه ډیره بعیده ده چه یو سړي د بے شماره منکراتو ارتکاب کوي، د ازالے د یو څو منکراتو دپاره.

پینځمه خبره دا ده چه په الیکشن کښ ارتکاب د دغه منکراتو قطعي او یقیني دے او ازاله د منکر په داخل د اسمبلي کښ وهمي خبره ده او دا هم د شریعت نه خلاف خبره ده چه ته ارتکاب د قطعي او یقیني منکر کوي د وهمي ازالے د منکر دپاره، نو ازاله د منکر وهمي خبره ده او ارتکاب د دغه منکراتو یقیني دے نو دا څو عجیبه عبادت او ثواب او فرضي کار دے.

شپږمه خبره دا ده چه په داخل د اسمبلي کښ رد یا ازاله د منکر ضروري نه ده. د اسمبلي نه بهر د دغه منکر رد کول یا ختمول ممکن دي او هغه داسي ده چه ته دعوت وچلي او عوام د دعوت په ذریعه دیته تیار کړي چه د دغه جمهوري طریقي نه برائت او بائکاټ وکړي.

اومه خبره دا ده چه په الیکشن کښ حصه اخستل مجبوري او ضرورت هم نه دے، ځکه د دغه جمهوري طریقي متبادل لار په قرآن او سنت کښ شته چه هغه دعوت، هجرت او قتال في سبیل الله دے او دغه لادینه جمهوریت نه برائت اوبائکاټ دے.

اتمه خبره دا ده چه زمونږ د تجربے او مشاهدے خبره دا ده چه څوک په مروجه جمهوریت کښ حصه اخلي نو دهغوي مقصد اسلام نافذ کول نه دي او د منکراتو ختمول مقصد نه دي ځکه دوي د حزب اقتدار په مقابله کښ دهغه چا سره اتحاد او د ملګرتیا کوي چه هغه د دغه اقتدار والا نه ډیر زیات ګمراهان وي، جمهوریان وي او د منکراتو خاوندان وي.

ټمه خبره دا ده چه دوي د خپل کردار تشبیه د ابراهیم علیه السلام د کردار سره ورکوي چه هغه بت خانې ته ننوتلي وو، د بتانو د ماتولو دپاره نو مونږ هم اسمبلي ته ورځو، د دوي د خلاف اسلام قوانینو د جوړولو د رد دپاره یعني د منکر اتو د رد دپاره نو دا تشبیه هم صحیح نه ده، ځکه ابراهیم علیه السلام د لږ وخت دپاره د بتانو د ماتولو دپاره ورغلي وو او تاسو ټول عمر پدے عمل کښ حصه اخلي او ستاسو په حصه اخستلو دغه جمهوري نظام ښه مضبوطیږي نو آیا تاسو جمهوري نظام مات کړو او که مضبوط مو کړو۔

بل دا چه ابراهیم علیه السلام د دغه عمل په رد عمل کښ اور ته غورزیدلي وو او تاسو ته کرسي اقتدار، وسائل، مادیات، سهولیات میلاویږي۔

بل دا چه ابراهیم علیه السلام هغویته اعلان د عداوت کړو چه فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِي إِلَّا رَبَّ الْعَالَمِينَ او اعلان د برائت ئے او اعلان د بغض او نفرت ئے کړیو چه **إِنَّا بُرَآءُ مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا**

او تاسو ورسره نوي نوي اتحادونه کوي او هغه ورته اعلان د هجرت کړیو چه **واعتزلکم وما تدعون** ځه ستاسو نه هجرت کوم او ابراهیم علیه السلام د نمرود د پارلمان رکنیت حاصلولي شو ځکه د ابراهیم علیه السلام پلار اذر د نمرود خاص سړي وو لکن هغه دا هر څه پریښود لاړ هجرت ئے وکړو۔ دغه رنګي زمونږ پیغمبر صلي الله علیه وسلم هم د قریشو دپارلمان ( چه دار الندوه وه) رکنیت حاصلولي شو لکن هغه د دغه پارلمان د رکنیت د حاصلولو کوشش نه دے کړي ځکه دغه شرعي لار نه ده او نه په دغه طریقه شرعي نظام نافذ کیږي او نه د کفر مخه نیولي کیږي۔ او تاسو ورسره اوګه په اوګه روان او همکاران ئیوي۔

حاصل دا دے چه دا هم یو عظیم جرئت دے چه د خپل دغه عمل چه د بے حجاب زنانو سره په اسمبلي او جلسو او احتجاجونو کښ اوګه په اوګه ناست ئیوي او بیا د دے تشبیه د ابراهیم علیه السلام د کردار سره ورکوي۔

لکه د دے خط د لیکلو په وخت کښ لږ ساعت مخکښ راته ملګرو د مولانا فضل الرحمن صاحب ویډیو اوښودله چه کله دوي د عمران خان خلاف د پیپلز، مسلم لیګ، نیشنل وغیره سره مشترکه په ګجر انواله کښ احتجاج کوي د مریم نواز سره ناست دے او په دویمه ویډیو کښ دواړه اوګه په اوګه روان دي او بیا هم د دے عمل تشبیه د ابراهیم علیه السلام د کردار سره ورکولي کیږي۔

**الحاصل:**

کوم مذهبي جماعتونه چه په مروجه جمهوریت کښ حصه اخستل د دین په رنګ کښ پیش کوي او یا پدیکښ حصه اخستل فرض او ضروري ګڼړي او دیته عبادت او ثواب عظیم واي نو دا ټولي خبري زخرف

القول دے، د دے مثال داسے دے لکه خوشانو یا اوسپني او تانبي له د سرو زرو اوبه ورکړي او بیا ورته سره زرواي او خلق په دوکه کوي۔

اصل مقصد ته و اپسي:

زمونږ د جواب حاصل دا دے چه څرنګي جمهوریت غیر اسلامي او غیر شرعي عمل دے نو دغه رنګي چه کوم مذهبي جماعتونه پدیکښ حصه اخلي نو دا هم غیر اسلامي او غیر شرعي عمل دے او د دوي حصه اخستل پدي عمل کښ هیڅ کله دلیل د جواز نه دے۔

او کوم مذهبي جماعتونه چه مروجه جمهوریت کښ حصه اخلي د دے یو لوي نقصان دا هم دے چه په لکونو خلق د هجرت او جهاد في سبیل الله نه محروم دے، ځکه هغوي په مروجه سیاست اکتفاء کړي او په مروجه سیاست کښ حصه اخستل او محنت کول ورته لوي عبادت ښکاري۔

لسمه شبه: آیا مروجه جمهوریت ته اسلامي جمهوریت ویل صحیح دي

جواب:

د مروجه جمهوریت سره د دغسي سابقے یا لاحقے لګول صحیح نه دي ځکه مروجه جمهوریت هیچري اسلامي کیدے نشي ځکه د اسلام او د مروجه جمهوریت بینادونه بیلا بیل دي دواړه نه یوځاي کیږي۔

او پدے لفظ کښ دا وهم پیدا کیږي چه ګني مروجه جمهوریت اسلامي کیدے هم شي او د اسلام سره یو ځاي کیدے شي۔

اګرچه جمهوریت دوه قسمه دے غربي او اسلامي لکن مروجه جمهوري غربي دے اسلامي نه دے۔ بهر حال دا موهم لفظ دے او د موهم لفظ استعمال ناروا دے لکه الله تعالي د راعنا د لفظ د استعمالولو نه منع کړي چه لاتقولو راعنا۔ ځکه راعنا لفظ موهم وو، پدیکښ د صحیح معني او د غلطے معني دواړو احتمال وو۔ نو صحابه کرام د دینه منع شو۔

یو لسمه شبه: او د اسلام د نورو ادیانو سره صلح او یو ځاي کیدل ممکن نه دي او د دے دیارلس وجوهات

آیا د اسلام د مروجه جمهوریت یا د نورو ادیانو سره صلح کیدلے شي یعني آیا دا ممکنه ده چه د اسلام او د مروجه جمهوریت یا نورو ادیانو صلح وشي چه جمهوریت یا نور ادیان هم په خپل حال وي او د اسلام صورت هم اختیار کړي شي او پدے ادیانو کښ څه اصلاحات وشي او د کچه لو او رکچه دو په اساس د دوي د یو بل سره روغه جوړه راشي او یو دریم دین اسلامي جمهوریت تیار کړي شي۔

جواب:

د اسلام د نورو اديانو سره روغه جوړه هيڅ کله ممکن نه ده، لکه چه د جفت او طاق عدد داسي روغه او صلح ممکن نه ده چه دواړه يو هم شي او د دواړو خپل حقيقت او حيثيت هم برقرار وي او لکه څرنګي چه اور او اوبه نه جمع کيږي نو دغه رنګي اسلام او نور کفري دينونه نه جمع کيږي. د دواړو لاري بيلا بيل دي. دغه رنګي د شپې او ورځې په مينځ کښ او د تيارے او رڼرا په مينځ کښ سمجهوته ناممکن ده.

او د دے ډيرے وجے دي. اوله وجه دا ده چه د اسلام او جمهوريت يا نورو اديانو بنيادونه بيلا بيل دي. مثلا د جمهوريت د وجود بنياد دا دے چه اقتدار اعلي او حاکميت حق د عوامو دے او د حق او باطل او د حلال حرامو معيار د عوامو د اکثريت رضامندي ده او که داسي نه وي نو دغه جمهوريت نه دے.

بل طرف ته د اسلام د وجود بنياد دا دے چه اقتدار اعلي او حاکميت صرف او صرف د الله تعالي حق دے او د حق او باطل او د حلالو حرامو معيار او ماخذ قرآن او سنت دے او که دا بنيادي څيزونه نه وي نو دغه دين اسلام نه دے.

دويمه وجه دا ده چه کله کفارو نبي صلي الله عليه وسلم ته د کچه لو اور کچه دو پيشکش کړي نو الله تعالي دغه پيش کش رد کړي، لکه قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ (يونس:١٥)

يعني يا ټول قرآن بدل کړه او د دے په ځاي بل کتاب راوړه چه هغه د دوي د خواهش مطابق وي او يا پکښ ترميم وکړه چه په کومو آياتونو کښ زمونږ د آلهو عيبونه بيانيږي يا د قيامت تذکره پکښ کيږي هغه بدل کړه (زجاج رحمه الله معالم التنزيل)

نو ددغه روښن خيالو په جواب کښ واي مايكون لي ان ابدله من تلقاء نفسي يعني ځه پکښ ترميم نشم کولي يو حرف يا يو لفظ نشم بدلولي نو ټول قرآن به څه بدل کړم.

فائده:

د دينه معلومه شوه چه پيغمبر حامل د شريعت دے خو باني د شريعت نه دے نو هر کله چه معصوم پيغمبر د ځان نه په يو حکم کښ ترميم نشي کولي او يو حکم نشي جوړولي نو بل چا ته دا حق د کوم ځاي نه حاصل دے.

### وفد د ابو سفيان په مشري کښ د جنګ احد نه روستو مديڼے ته

دريمه وجه دا ده چه کله د کفارو يو وفد د ابو سفيان په مشري کښ د جنګ احد نه روستو مديڼے ته د نبي صلي الله عليه وسلم خو اته راغلي او ورته ويويل چه ارفض ذکر آلهتنا اللات والعزي ومناة وقل ان لها شفاعة لمن عبدها وندعك وربك

يعني زمونږ د معبودانو عيبونه مه بيانوه او دا اومنه چه دوي شفاعت کولي شي نو ته خپل کار او تبليغ جاري شاته. نبي صلي الله عليه وسلم پدے خبره ډير زيات خفه شو، عمر رضي الله ورته اويل چه ماته

اجازت وکړه چه قتل ئے کړم، نبي صلي الله علیه وسلم ویل ما دویته امن ورکړي، بیا نبي صلي الله علیه وسلم عمر رضي الله عنه ته اویل چه دوي د مدینې نه اوباسه نو الله تعالي د دوي دغه مطالبه رد کړه۔

او د دغه کفارو په رد کښې الله تعالي د سوره احزاب اولني آیاتونه نازل کړل يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ (تفسیر الخازن وغیره)

نو نبي صلي الله علیه وسلم د دوي سره کومه سمجوته ونکړه او د دوي د کچه لو او ر کچه دو پالسي ئے رد کړه ځکه د اسلام او کفر په مینځ کښې د جوړ کوم صورت ممکن نه دے ځکه د دواړو لاري بیلا بیل دي۔ دواړه متضاد عقیدي او نظري دي په یو زړه کښې دوه متضاد عقیدي او نظري نه جمع کیږي۔

څلورمه وجه :

د سوره کافرون د شان نزول په باره کښې راځي چه د مکي کافر انو رسول الله صلي الله علیه وسلم ته د صلح او د کچه لو اور کچه دو دعوت ورکړي وو لکن د دغسي صلح د رد کولو دپاره الله تعالي سوره کافرون نازل کړو۔ نو د دغسي صلح دعوت رسول الله صلي الله علیه وسلم ته په مکي کښې هم ورکړي شویو څرنګي چه د سوره کافرون د شان نزول نه معلومیږي او په مدینه کښې هم ورکړي شویو لکه د سوره احزاب د شان نزول نه معلومیږي۔

د سوره کافرون شان نزول دا دے:

د ابن اسحاق روایت د ابن عباس رضي الله عنه نه دا دے چه ولید بن مغیره، عامر بن وائل، اسود بن عبد المطلب او امیه بن خلف رسول الله صلي الله علیه وسلم ته راغلل او ورته ئے او ویل چه راځئ خپل منځ کښې په دے صلح اوکړو چه یو کال به تاسو زمونږ د بتانو عبادت کوئ او بل کال به مونږ ستاسو د معبود عبادت کوو (قرطبي)۔

او د طبراني روایت د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دا دے چه د مکے کافر انو اول خو خپل منځ کښې د صلح دپاره د رسول الله صلي الله علیه وسلم په وړاندے دا صورت پیش کړو چه مونږه درته دومره مال درکړو چه تاسو به په مکه مکرمه کښې د ټولو نه زیات مالداره شئ او کومه ښځه دِ چه خوښه شي هغے سره به دِ دَ نکاح کولو بندوبست اوکړو۔ تاسو صرف دومره اوکړئ چه زمونږه معبودانو ته بدمه وایئ، که تاسو دا هم نه مني نو داسے اوکړئ چه یو کال دپاره به مونږه ستاسو د معبود عبادت کوو او بل کال به تاسو زمونږ د معبودانو عبادت کوئ۔ (مظهري)

او د ابي صالح روایت د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دا دے چه د مکے کافر انو د صلح دپاره دا صورت پیش کړو چه تاسو زمونږ په بتانو کښې څنو ته صرف لاس ووړئ نو مونږ به ستاسو تصدیق کول شروع کړو۔ په دے باندے جبرائیل سوره کافرون هغوي ته راوړو چه پکښې د کافر انو د عملونو بیزاري او خالص د الله تعالي د عبادت حکم دے۔

**د دے سورت شان نزول چه پکښ ګنړ واقعات ښولے شويدي په هغے کښ هيڅ يے سموني نشته۔ کيدےشي چه دا ټولے واقعے راپيښے شوي وي او د دے ټولو په جواب کښ دا سورت نازل شوے وي چه حاصل ئے د داسے صلح کولو نه منع کول دي۔** (معارف القرآن)

**پينځمه وجه:**

**د سورۀ بني اسرائيل د دے آياتونو په شان نزول کښ راځي:**

وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ الَّذِى أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِىَ عَلَيْنَا غَيْرَهُ وَإِذًا لَاتَّخَذُوكَ خَلِيلًا (٧٣) وَلَوْلَا أَنْ ثَبَّتْنَاكَ لَقَدْ كِدْتَ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيلًا (٧٤) إِذًا لَأَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا (٧٥) (بنی اسرائيل:٧٥،٧٤،٧٣)

**چه د ثقيف قبيلي يو وفد نبي صلي الله عليه وسلم ته راغلي او ورته ويويل چه** متعنا بآلهتنا سنة حتي ناخذ ما يهدي لها

**يو کال زمونږ آلهو (بتانو) ته څه مه وايه چه مونږ د دے هدايا واخلو يو کال روستو به مونږ دا بتان مات کړو او اسلام به راوړو او زمونږ علاقه داسي حرامه وګرځوه څرنګي چه مکه حرامه ده۔ د دے دپاره چه زمونږ په نورو عربو فضيلت معلوم شي۔ نبي صلي الله عليه وسلم دا اراده وکړه نو الله تعالي دا آياتونه راوليږل۔** (قرطبي ص:٣٣٠ ج:١٠، طبري ص:٨٨ ج:١٥، زاد المسير ص:٤٣ ج:٣)۔

**د زاد المسير عبارت دا دے:**

في سبب نزولها أربعة أقوال «1» :

أحدها: أن وفد ثَقيف أتوا رسول الله صلى الله عليه وسلّم فقالوا: متِّعنا باللات سَنة، وحرِّمْ وادينا كما حرَّمْتَ مكة، فأبى ذلك، فأقبلوا يُكثرون مسألتهم، وقالوا: إنا نحب أن تعرِّف العرب فضلنا عليهم، فإن خشيتَ أن يقول العرب: أعطيتهم ما لم تعطنا، فقل: الله أمرني بذلك فأمسك رسول الله صلى الله عليه وسلّم عنهم ودخلهم الطمع، فنزلت هذه الآية، رواه عطاء عن ابن عباس. وروى عطية عن ابن عباس أنهم قالوا: أَجِّلنا سنة، ثم نُسلم ونكسر أصنامنا، فهمَّ أن يؤجِّلهم، فنزلت هذه الآية.

(907) والثاني: أن المشركين قالوا للنبيّ صلى الله عليه وسلّم: لا نكفُّ عنك إلا بأن تُلِمَّ بآلهتنا، ولو بأطراف أصابعك، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلّم: «ما عليَّ لو فعلت والله يعلم إني لكاره» ؟ فنزلت

هذه الآية، قاله سعيد بن جبير، وهذا باطل لا يجوز أن يُظَنَّ برسول الله صلى الله عليه وسلّم، ولا ما ذكرنا عن عطية من أنه همَّ أن يُنْظِرهم سنة، وكل ذلك مُحال في حَقِّه وفي حق الصحابة أنهم رَوَوا عنه.

(908) والثالث: أن قريشاً خَلَواْ برسول الله ليلةً إلى الصباح يكلّمونه ويفخّمونه، ويقولون: أنت سيدنا وابن سيدنا، وما زالوا به حتى كاد يقاربهم في بعض ما يريدون، ثم عصمه الله من ذلك، ونزلت هذه الآية، قاله قتادة.

والرابع: أنهم قالوا لرسول الله صلى الله عليه وسلّم: اطرد عنك سُقّاط الناس، ومواليهم، وهؤلاء الذين رائحتهم رائحة الضأن، وذلك أنهم كانوا يلبَسون الصوف، حتى نجالسَك ونسمعَ منك، فهمَّ رسول الله صلى الله عليه وسلّم أن يفعل ما يستدعي به إسلامهم، فنزلت هذه الآيات. حكاه الزجاج

---

واه بمرة. أخرجه الطبري 22540 عن عطية العوفي عن ابن عباس مختصرا بإسناد فيه مجاهيل، وذكره الواحدي في «أسباب النزول» 581 بدون إسناد عن عطاء عن ابن عباس، فالخبر واه جدا فالسورة مكية، وتحريم مكة كان في حجة الوداع، والحديث ليس بشيء لخلوه عن الإسناد.

ضعيف جدا. أخرجه الطبري 22536 عن سعيد بن جبير مرسلا، ومع إرساله فيه يعقوب القمي، وشيخه جعفر بن أبي المغيرة، وكلاهما غير قوي.

باطل. أخرجه الطبري 33537 عن قتادة مرسلا، فهو ضعيف، والمتن باطل بهذا اللفظ فإن قريشا لم تقل للنبي صلى الله عليه وسلّم أنت سيدنا.

**پدے آیاتونو کښې الله تعالي واي كه كافر انو ته معمولي ميلان ته نزدي شوي نو الله تعالي به په دنيا او آخرت كښې دو چند عذاب دركړي۔**

**او د دينه معلومه شوه چه د دعوت او اسلام د مصلحت په خاطر به هم كافر انو ته ميلان نه كوي او په دين كښې به ورته تنزل نه كوي ځكه معمولي ميلان سبب د لوي ميلان ګرځي ۔ بل دا چه د اسلام په احكامو كښې تجزي او تقسيم نه راځي۔** (الموالاة والمعاداة في الشريعة الاسلامية ص:۹۸)

**او په سوره هود كښې الله تعالي واي چه كه كافر انو ته مو ميلان وكړو نو اور به درته ورسيږي۔**

**نو معلومه شوه چه د اسلام او كفر د يو بل سره مصالحت او جوړ نه راځي۔**

**شپږمه وجه:**

الله تعالي امر کوي چه د کفارو سره قتال وکړي د دے دپاره چه دين اسلام ټول په ټوله نافذ شي اور نور ټول اديان ختم شي۔

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ (الانفال:۳۹)

او حديث کښ راځي:

امرت ان اقاتل الناس حتي يقولوا لااله الا الله

په تفسير قرطبي ص:۳۵۴ ج:۲ کښ واي:

فدلت الآية والحديث علي ان سبب القتال هو الكفر

دا آيت او حديث دواړه دلالت کوي پدے خبره چه سبب د قتال کفر دے يعني چه ترڅو په مخ د زمکه کفر موجود وي نو قتال به جاري وي۔

نو د اسلام او کفر جوړ نه راځي بلکه اسلام د کفر په مقابله کښ يو اقدامي دين دے۔

اومه وجه:

د کفارو موالات او مشابهت نه په ډيرو نصوصو کښ منع راغلي۔

اتمه وجه:

په ډيرو نصوصو کښ امر شوي په مخالفت دکفارو، مشرکينو، يهود و نصاري وو او مجوسو۔ نو که د اسلام او کفر د يو بل سره جوړ راتلي نو ولي به د کفارو د موالات او مشابهت نه منع کيدے او ولي به د هغوي په مخالفت امر کيدے۔

نهمه وجه:

الله تعالي د دوي سره د جهاد او تشدد امر کوي۔

لسمه وجه:

الله تعالي د دوي سره د بائکاټ او د دوي نه د نفرت امر کوي۔

يو لسمه وجه:

چه څوک د کفارو سره موالات او تعلق ساتي نو قرآن کريم په هغوي مختلف فتوي ورکوي۔ کله ورته منافق واي، کله ورته مرتد واي، کله واي چه ايمان او د کافر سره دوستي دواړه نه جمع کيږي۔

دولسمه وجه:

**د اسلام او د پيغمبر د راليګلو مقصد دا دے چه اسلام په ټول باطل دينونو غالبه شي نه دا چه د هغوي سره صلح او جوړوشي او د مساوات او برابري په بنياد ژوند تيروي او يا دا چه اسلام د جمهوريت يا بل تابع شي يا د جمهوريت په دائره او قالب کښ اوغورزولي شي۔ څکه الله تعالي واي:**

هُوَالَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْكَرِهَ الْمُشْرِكُونَ **(الصف:۹، التوبة)**

**ديارلسمه وجه:**

**الله تعالي د هغه مؤمنانو ډير صفتونه کړي چه هغه د کفر په مقابله کښ سخت دريزه او شدت پسند وي، لکه الله تعالي واي:**

وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ **(الحجرات:۷)**

**او الله تعالي واي:**

أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ **(المائدة)**

**او الله تعالي واي:**

أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ **(الفتح)**

## د اسلام او د کفر جوړنه راڅي

**د ملل متحد او سلامتي کونسل ټول قراردات په د ښپو دلاندي کولي شي، څکه رسول الله صلي الله عليه وسلم واي:**

كل امر الجاهلية موضوع تحت قدمي

**او پدے موضوع د ابن تيميه رحمه الله کتاب اقتضاء صراط المستقيم مخالفة اصحاب الجحيم کتل ضروري دي۔**

**بعض خبيثان واي چه مونږ وحدة الاديان ته خلق رابلو او څوک چه زمونږ په لار کښ رکاوټ کيږي نو هغه به د وسپي په پنجو وهو او واي چه د مسلمان او نصر اني هيڅ فرق نشته۔**

**حالانکے قرآن واي چه د دوي په مينځ کښ ډير فرق دے:**

أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ **(القلم:۳۵)**

أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ **(ص:۲۸)**

أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا لَا يَسْتَوُونَ (سجدة:١٨)

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ (الجاثية:٢١)

**بلکه دغه غیر دینه کفارد سپي نه هم ډیر پلیت او ناکاره دي، لکه الله تعالي واي:**

إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ (الانفال:٢٢)

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أُولَئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ (البينة:٦)

## دولسمه شبه : ووټ مشوره ده چه فلاني دِ د دے علاقي اميريا وکيل شي او ممبر شي

**دا خبره پیجاندل ضروري دي چه د جمهوریت او انتخاباتو د جواز دپاره خلق ځومره دلائل او شبهات ذکر کوي نو د دے جواب ته هم ضرورت نه وو لکن مونږ ئے صرف پدے وجه دا شبهات او جو ابونه لیکو چه ناپوهه مسلمانان ترینه متاثره نشي۔**

## جواب: ووټ مشوره نه ده، ځکه د ووټ او مشوري ډیر فرقونه دي

**مثلا:**

**١ ـ د مشوري منل لازم نه وي او په ووټونو کښ که یو ووټ زیات شي نو منل ئے لازم وي نو یو فرق په لزوم او عدم لزوم کښ دے۔**

**٢ ـ په مشوره ورکولو کښ د صفاتو خیال ساتل ضروري دي او په ووټ کښ دا خبره ضروري نه ده، لکه یو طرف ته زرلوي لوي شیخ الحدیثان د یو شیخ الحدیث په باره کښ مشوره ورکړي او بل طرف ته یو دبره زرزناکاران د یوے زناکاري ښځي په باره کښ مشوره ورکړي نو مشري به دغه شیخ الحدیث نه کوي، بلکه دغه زناکاره ښځه بۀ کوي، نو دویم فرق په اعتبار د لحاظ د اهلیت او صفات سره دے چه په مشوره کښ د اهلیت او صفاتو لحاظ ضروري دے او په ووټ کښ ضروري نه دے۔**

**٣ـ په شوري کښ په دولتي اهم سیاسي امورو کښ د کافر مشوري له اعتبار نشته او په ووټ کښ په اهم دولتي او سیاسي امورو کښ د کافر راي له اعتبار شته۔**

**نو دریم فرق د کافر په اعتبار سره دے چه په اسلامي شوري کښ په اهم امورو کښ د کافر راي له اعتبار نشته او په ووټ کښ ورله شته۔**

**۴ـ نور فرقونه مخکښ بیان شوي۔**

## دیارلسمه شبه: د جمهوریت پرستو د طرف نه یو اهم اشکال

جمهوريت پرست يو اعتراض په فخريه انداز پيش کوي او هغه دا دے چه کچري د حزب اقتدار په مقابله کښ حزب اختلاف نه وي نو د ملک ترقي ختميږي او حکمر انان د آمريت او ملوکيت په لاره ګامزن کيږي۔

جواب:

دا خبره د جمهوريت پرستو خلقو د عوامو د ګمراه کولو دپاره يو فريب او دوکه ده، ځکه کچري په جمهوريت کښ د حزب اختلاف دا کردار وي چه د حزب اقتدار په غلطو ئے تنقيد کولي او په نيکو او غوره کارونو کښ ورله مدد او تائيد کولي نو بيا حزب اختلاف صحيح وو۔ لکن دلته خو معامله بدل ده ځکه د حزب اختلاف صرف دا يو مقصد وي چه د حزب اقتدار د لاس نه اقتدار خپل لاس ته کړي او د دے مقصد د حاصلو دپاره د حزب اقتدار نيک او غوره کارونه په ناکاره شکل پيش کول خپله جمهوري فريضه ګڼړي۔ نو دغه اعتراض بے ځاي دے۔

بل دا چه د پاکستان په اوګد تاريخ کښ جمهوريت د رڼړا ورځ په شان دا خبره ثابته کړي چه د حزب اختلاف او حزب اقتدار اختلافاتو پاکستان د ترقي په ځاي د پاکستان د جغر افيائي حدودو او د اسلامي اخوت بنيادونه ويستل او هر چه دا خبره ده که حزب اختلاف نه وي نو حزب اقتدار به د آمريت او ملوکيت لار غوره کړي نو دا هم د جمهوريت دتياري نه ډکه پهلو ده، ځکه دا موقعه جمهوريت ورکړي چه حزب اقتدار نوي نوي قو انين جوړولي شي او په اسلامي نظام کښ دا خطره بالکل نشته، ځکه په شرعي نظام کښ شرعي حکمر انان او اهل اقتدار خود مختاره او مستقل نه دي، ځکه دهغوي په سرونو د قرآن او سنت توره زوړنده وي۔ هغوي د صراط مستقيم نه آخوا ديخوا کيدي نشي۔ کچري هغوي د الله تعالي نه نافرمان شي او د قرآن او سنت نه باغيان شي نو ټول امت به ورته حزب اختلاف واي۔ لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق۔

## څوارلسمه شبه: بعض علماء خو د زنانه د رکنيت او د ووټ ورکولو د جواز فتوه ورکړي

دلته دا سوال پيدا کيږي چه بعض معاصر علماء چه هغوي په سياست اسلاميه کلام کړي او په هغوي کښ بعض مشران علماء هم شته هغوي واي چه زنانه د مجلس شوري (پارلمان) رکنيت کولي شي، پدے شرط چه په شرعي حجاب کښ وي۔

د دوي دليلونه:

دوي دا دليل ذکر کوي چه ووټ مشوره ورکول دي او ووټ شهادت سفارش او وکالت دے او په زنانوو کښ د دے ځلورواړه کارونو اهليت شته۔

دويمه وجه دا ذکر کوي چه زنانه فتوي ورکولي شي او قضاوت کولي شي نو د مجلس شوري رکنيت هم کولي شي۔

### د دے مثالونه

دوي د دے دپاره مثالونه هم ذکر کوي چه زنانو مشوره ورکړي او په هغے عمل شوي لکه شعيب عليه السلام ته د هغے لور مشوره ورکړه او هغه پے عمل وکړو۔

قَالَتْ إِحْدَاهُمَا يَاأَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ إِنَّ خَيْرَمَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ (القصص:٢٦)

دغه رنګي د بچي دشودو د پريکولو په باره کښ خاوند او بي بي مشوري کولي شي

فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا (البقرة:٢٣٣)

دغه رنګي د صلح حديبيه په موقعه نبي صلي الله عليه وسلم د ام سلمي رضي الله عنها په مشوره عمل کړيو۔ (بخاري شريف ص٣٨٠ ج:١، کتاب الشروط)

دغه رنګي حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه د عثمان رضي الله عنه د انتخاب په وخت کښ د زنانو نه مشوره اخستي وه، لکه تاريخ والا وي:

ثم نهض عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه يستشير الناس فيهما ويجمع رأي المسلمين حتي خلص الي النساء المخدرات في حجابهن

بيا عبدالرحمن رضی الله عنه پورته شو او د عثمان او علي رضي الله عنهما په باره کښ د خلقو سره مشوره شروع کړه او د مسلمانانو راي ګاني راجمع کولي تردے چه د پرده نشينو زنانو نه ئے په پردو کښ مشوره واخسته۔ (البداية والنهاية ص:٢٢٧ ج:٥)

لهذا دغه علماء حضرات واي چه زنانه دشوري رکنيت کولي شي۔ پديکښ څه پابندي نشته، ځکه رکن شوري هم د سربراه په انتخاب کښ مشوره ورکوي يا سربراه ته مشوره ورکوي۔

### جوابونه

خو د جواب نه مخکښ دا خبره ضروري ده چه کوم علماء د زنانو دپارلمان د رکنيت د جواز فتوه ورکوي نو دهغوي اکثريت  په خپله عملا په جمهوريت کښ حصه اخلي، دهغوي نه په ډيرو خبرو کښ کمزوري کيږي، يوه کمزوري دا ده چه په بعض خبرو کښ هغوي جمهوري طريقي او د اسلامي طريقي يو بل ته د نزديکت کوشش کوي او دجمهوريت او د اسلام په مينځ کښ ميلاوټ کوي هغوي کله کله په شودو کښ د بولو ځاځکي هم کوي او په اسلام چه مختلفے حملے کيږي، نو په هغه کښ يوه حمله د جمهوري نظره مليانو او مفتيانو د طرف نه ده۔ حالانکے اسلام او جمهوريت د يو بل سره ډير تضادات لري، د اسلام او د

جمهوریت په مینځ کښ د مغرب او د مشرق فاصله ده۔ هغوي پخپله نه بدلیږي بلکه قرآن او شریعت بدلوي۔

اول جواب دا دے چه کومو علماء د زنانو د شوري د رکنیت یا د ووټ ورکولو د جواز فتوه ورکړي نو هغوي پدے شرط فتوه ورکړي چه شرعي حجاب وي او په مروجه طریقه کښ شرعي حجاب نشته، لکه مخکښ د دے بیان شویو۔

دویم جواب دا دے چه د مخکښ دلائلو نه د مشوري دورکولو یا په هغے د عمل کولو جواز معلومیږي، لکن د دغه دلائلو نه د مجلس شوري (پارلیمنټ) د باقاعده او د مستقل رکنیت جواز نه معلومیږي، لکه عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه چه د زنانو نه تپوسونه کړي نو یو خو هغه زنانه د د پردي شاته وي۔ دویم دا چه د دغه نه مستقل رکنیت نه معلومیږي ځکه په دغه روایت کښ دا هم راځي چه وحتي سئل الولدان في المکاتب تردي چه په مکتبونو کښ د ماشومانو نه هم تپوسونه وکړل (البدایه والنهایة ص:۲۲۷ ج:۵)

نو ځرنګې چه د دینه دا استدلال صحیح نه دی چه ماشومان د شوری رکنیت کولی شی نو دغه رنګی د مخکښ الفاظونه هم دا استدلال صحیح نه دے چه زنانه د شوری رکنیت کولی شی۔ -بل دغه روایت کمزور هم دے

دریم جواب دا دے:

چه پارلمان یوه واکداره اداره ده او واکداری حق د نارینو دے نه د زنانو، لکه الله تعالی وای **الرجال قوامون علی النساء** (نارینه واکداران دي په زنانوو)

نو د پارلمان دغړونه صرف مشوره نه اخستلي کیږي بلکه د هغوي سره واکداري هم وي، لکه مخکښ د مولانا مودودي صاحب په کلام کښ ذکر شو۔

دغه رنګي د علماء کرامو په اصطلاح کښ دویته د واکداري په وجه اهل الاختیار هم ویلي کیږي، لکه علامه ماوردي رحمه الله په الاحکام السلطانیه کښ او ابو یعلي رحمه الله هم په احکام السلطانیه کښ او علامه جویني رحمه الله ورته په غیاث الامم کښ اهل الاختیار وای۔

**ځلورم جواب:**

زنانه د پارلمان رکنیت پدے وجه نه شي کولي چه د پارلمان ارکان د سربراه د انتخاب اختیار لري او زنانه هیڅ کله د سربراه د انتخاب اختیار نه لري، لکه علامه جویني رحمه الله په غیاث الامم ص:۶۲ د دے عنوان د لاندي واي چه الفضل الاول في صفة اهل الاختيار فلتقع البداية بمجال الاجماع في صفة اهل الاختيار فما نعلمه قطعا ان النسوة لا مدخل لهن في تخير الامام وعقد الامامة فانهن ما روجعن قط ولو

استشير في هذا الامر امرأة لكان احري النساء واجدرهن بهذا الامر فاطمة رضي الله عنها ثم نسوة رسول الله صلي الله عليه وسلم امهات المؤمنين ونحن بابتداء الاذهان نعلم انه ما كان لهن في هذا المجال مخاض في منقرض العصور ومكر الدهور۔ بيا واي فخروج هؤلاء عن منصب الحل والعقد ليس به خفاء۔

**حاصل ئې دا دے چه زنانوو لره د امام او سربراه د انتخاب هیڅ اختیار نشته، ځکه (د اسلام په تاریخ کښې) زنانوو ته هیڅ کله د سربراه په انتخاب کښې مراجعه نه ده شوي، (نو د زنانه رکنیت د ټول اسلامي تاریخ خلاف دے)**

**او که د سربراه په انتخاب کښې د زنانوو سره مشوره کیدے نو د دے ډیره حقداره فاطمة رضي الله عنها وه او بیا امهات المؤمنین د نبي صلي الله علیه وسلم بیبیاني۔**

**او مونږ پدے پوهیږو چه په ټولو ختم شوو زمانو کښې او په و اپس شوو زمانو کښې زنانوو له پدے میدان کښې ننوتل او حصه اخستل نه وو۔ (دا خو زمونږ بد بخته زمانه ده چه زنانه پدے میدان کښې حصه اخلي او پدیکښې مداخله کوي)**

**او بیا واي چه د زنانوو وتل د دے منصب د اهل الحل والعقد نه واضحه دي، هیڅ پټوالي پکښې نشته۔ او په اول کښې واي چه پدي خبره اجماع ده۔**

## پینځم جواب:

**زنانه د پارلمان رکنیت پدے وجه نه شي چه د دغه رکنیت دپاره داسي شرعي علم شرط دے چه دهغه علم په ذریعه د سربراه د انتخاب شرعي شرطونه پیجني، لکه علامه ماوردي رحمه الله او امام ابو یعلي رحمه الله د اهل الاختیار دپاره دویم شرط دا ذکر کوي:**

والثاني العلم الذي يتوصل به الي معرفة من يستحق الامامة علي الشروط المعتبرة فيها **(الاحکام السلطانية د ماوردي ص:۱۸ او الاحکام السلطانيه د ابو يعلي ص:۱۹)**

**او مروجه ارکان پارلمان زنانه دغسي علم نه لري او زنانه خو پریږده چه نارینه ئې هم نه لري۔**

## شپږم جواب:

**په دین اسلام کښې د یو شي د جواز او عدم جواز دپاره یو بنیادي اصول دي او هغه دا چه په شریعت کښې د یو شي جواز او عدم جواز صرف دهغه د ذات سره تعلق نه لري بلکه دهغه شي ټول امور به مخې ته کیدي۔**

مثلا فائده او نقصان نفع او ضرر۔ بیا ډیره کرته یو شي په اعتبار د ذات سره ناجائز وي لکن دغه شي د فائدو او ثمراتو په وجه صرف جائز نه بلکه لازم او ضروري وي لکه جهاد حدود قصاص تعزیرات، د لوي اختر قرباني په اعتبار د ذات سره مستحسن نه دي بلکه د نتیجو په اعتبار انتهائي مستحسن دي۔

دغه رنګي بالعکس خبره ده مثلا د اختر په ورځ روژه په اعتبار د ذات سره ښه کار او عبادت دے لکن د متعلقه نقصان په وجه ناجائز دے او هغه دا چه پدیکښ اعراض دے دا الله تعالي د میلمستیا نه۔

دغه رنګي د نمر ختلو په وخت کښ مونځ کول په اعتبار د ذات سره ښه کار دے او عبادت دے لکن د متعلقه نقصان په وجه دا ناجائز کار دے او هغه دا چه په دیکښ مشابهت دے د مشرکانو سره۔

د دے قاعدے او قانون شرعي نه روستو اصل مسئلے ته راشه او هغه دا چه د زنانه ووټ غورزول او د شوري د رکنیت دپاره انتخاب د ذات په اعتبار جائز کار دے، ځکه ووټ شهادت دے مثلا او زنانه شهادت کولي شي، دغه رنګي دپارلمان رکنیت د مشوري د ورکولو دپاره دے مثلا، او زنانه مشوره ورکولي شي۔

لکن د دے ووټونو او د شوري د رکنیت سره نور بي شماره منکرات ګناهونه او بي حیاء کارونه یو ځاي شوي چه دهغے تفصیل مخکښ بیان شوي۔ نو د دغه متعلقه ګناهونو منکراتو او بے حیاء کارونو په وجه د زنانوو ووټونه او د شوري رکنیت جواز نه لري۔

او کچري داسي الیکشن یا داسي پارلمان وي چه هغه د مذکوره ټولو قباحتونو نه پاک وي نو دغه بیا په جمهوري طرز الیکشن او پارلمان نه دے او په دغه کښ زمونږ بحث نه دے۔

## پینځلسمه شبه: د زنانو ووټ غورزول یا د شوري رکنیت ضرورت دے

بعض خلق واي چه د زنانو ووټ غورزول یا د شوري رکنیت کول ضرورت دے او د ضرورت د وجے نه د شریعت د اصولو د پابندي سره زنانه د کور نه وتلي شي۔

جواب:

ضرورت دوه قسمه دے، شرعي او جمهوري۔ دا کار بالکل شرعي ضرورت نه دے، البته جمهوري ضرورت دے، ځکه په جمهوریت کښ د جائز او ناجائز معیار د عوامو خواهشات دي او د عوامو د خواهشاتو دپاره رنګداري زنانه ضروري دي۔

## شپاړسمه شبه: که زنانو رکنیت او نمائندګي په اسمبلي کښ نه وي نو د زنانو حقوق ضائع کیږي

جواب:

اسلام د زنانو د ټولو حقونو تحفظ کړي، کچري د زنانو معمولي حق تلفي وشي نو داسلامي عدالت دروازه ټکولي شي، دویته به فورا مفت انصاف میلاویږي۔

**اولسمه شبه: بعض خلق واي چه زنانه په انتخاباتو کښ حصه اخستلي شي د دے دپاره چه ټولني ته خدمت وکړي۔**

**جواب:**

**د زنانو په اختلاط کښ ډیر نقصانونه دي، دا کیدي نشي چه یو سړي دِ د اختلاط سره روغ پاتي شي، لکه خرد وربشو راشي ته وتړه او بیا و ایه مه ـځ خوره۔**

**یو شاعر مثال بیان کړي:**

القاه في اليم مكتوفا وقال له      اياك اياك ان تبتل بالماء

**یعني لاس ـځ ورله وتړل بیا ـځ دریاب ته اوغوزولو او بیا ورته واي چه ځان ساته چه په اوبو کښ لوند نشي، نو دا کیدے شي چه یو سړي دریاب ته لاس تړلي اوغورزوي او بیا ورته واي چه احتیاط کوه چه لوند نشي۔**

**رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:**

**ماترکت بعدي فتنة اضرعلي الرجال من النسا**

**رسول الله صلي الله علیه وسلم بیبیاني ډیري پاکي وي او صحابه کرام هم ډیر پاک وو، خو بیا ورته هم الله تعالي واي :**

واذا سئلتموهن متاعا فاسئلوهن من وراء حجاب

**او رسول الله صلي الله علیه وسلم واي:**

واتقوا النساء فان اول فتنة بني اسرائيل كانت في النساء

## د جمهوری خلقو نه یو سوال

**آیا د مسلمانانو پدے څوارلس سوه کاله تاریخ کښ او د خلافت عثمانیه د سقوط نه مخکښ د مسلمانانو د خلیفه ګانو انتخاب د ووټ په پرچی سره شوی۔**

**آیا په مدینه منوره کښ د خلفاء راشدینو انتخاب په داسی ووټونو سره شویو چه په هغه کښ د مشر انو صحابه کرامو او د یو عام سړی رای بر ابر ګڼړلی شوه۔ نن صبا خو داسی حال دے چه د یو مسلمان په مقابله کښ د یو عیسائی یا یهودی او یا هندو ووټ بر ابر دے۔**

**آیا په شریعت کښ د یو مسلمان او کافر شهادت سفارش او وکالت یو شان بر ابر درجه لری۔ والله هرګز داسي نه ده۔ د خیر القرون خلق د دے ټولو خباثتونو نه پاک وو او د هر داسي نظریے نه بر ائت کونکي وو۔**

### د ووټونو په ذریعه شرعی نظام نشی قائمیدے

بعض اسلام پسند جماعتونه او د اسلامی ذهن والا وای چه مونږ به یو نیک صحیح مسلمان د انتخاباتو دپاره نامزد کړو او دهغه په حق کښ به د عوامي فضا د جوړولو کوشش وکړو دهغه دپاره به تقریرونه جلسے جلوسونه وکړو او چه کله د داسي افرادو اکثریت اسمبلي ته لاړ شي نو ډیر په آساني او برامن طریقه او په غیرد خون خر ابه نه به اسلامي انقلاب او شرعي نظام راشي۔

جواب: این خیان ست محال ست جنون

پدے طریقه شرعي نظام قائمول ناممکن دي او د دے ډیرے وجے دي۔ اوله وجه دا ده چه د شرعي نظام اولني داعیان چه انبیاء علیهم السلام دي دهغوي په ټول تاریخ کښ دا نشته چه یو پیغمبر د وعظ او تبلیغ په ذریعه د خلقو دراي او مرضي اکثریت حاصل کړي او اسلامي انقلاب ئے راوستي، لکه زمونږ نبي صلي الله علیه وسلم درویشت کاله مؤثر تبلیغ کړي خو راي عامه او اکثریت ئے نه دے حاصل کړي بلکه هغه د ملک په پریښودلو مجبوره شوي۔ او زمونږ نبي صلي الله علیه وسلم او صحابه کرامو شرعي نظام یا اسلامي انقلاب د هجرت او جهاد په ذریعه قائم کړي۔

دویم دا چه تجربه هم پدے گواه ده چه د بے دیني اثر ډیر دي په نسبت د دین او د بے دیني په محفلونو کښ شرکاء ډیروي په نسبت د دیني محفل۔

دریمه وجه دا ده چه پدے طریقه اسلام نافذ کول اسلامي طریقه نه ده بلکه جمهوري طریقه ده او پدي جمهوري طریقه کچري اسلام نافذ شي نو هغه به هم صرف د ځلور پینځه کالو دپاره وي۔ ځلور پینځه کاله روستو به اسلامي نظام خود بخود ختمیږي او خلقو ته به یو ځل بیا دا حق ورکولي کیږي چه تاسو اسلامي نظام غواړي که غیر اسلامي نظام پدے طریقه به سیکولر (بے دینه) جماعتونو ته یو ځل بیا حاکمیت ته درسیدو حق ورکولي شي او که دهغوي حاکمیت راشي نو بیا به اسلامي نظام ختمیږي، حالانکے په شرعي طریقه کښ به شرعي نظام د همیشه دپاره وي۔

ځلورمه وجه دا ده چه کوم اسلامي جماعتونو یو ځل په جمهوریت کښ حصه اخستي نو هغوي د اسلام د غلبي دپاره د جهادي کوششو نه لاس وینځلي، ځکه په جمهوري سیاست کښ د مسلح جدوجهد پریښودل ضروري دي۔

حالانکے د اسلام د نفاذ په لاره کښ دا یو خطرناک رکاوټ دے چه مسلح جدوجهد پریښودلي شي او په جمهوري طریقه انتخاباتو ته د اسلامي مبارزے نوم ورکړي شي او د دے دپاره د مصر د اخوانیانو او د افغانستان د سابقه جهادي تنظیمونو او د پاکستان د اسلامي جماعتونو ناکامه تجربه واضحه مثالونه دي۔

دے خلقو په ډیره اوگده زمانه کښ اسلامي نظام نافذ نه کړو۔

علاوه د دینه چه د اسلام دشمنانو دا خلق په ډیر مکر او مهارت دوي د مجاهدینو خلاف په خپلو صفونو کښ ودرول۔ تردي چه دوي صرف براي نام اسلامي جماعتونه پاتي شو او جهادي کوششونه ئے ختم شو۔

پینځمه وجه دا ده چه د پاکستان په شپیته کاله تاریخ کښ دا خبره ولیدلي شوه چه اسلامي تنظیمونه اکثریت نشي حاصلولي بلکه د دوي مخالفین اکثریت حاصلوي او وجه ئے دا ده، ځکه چه په جمهوریت کښ حکومت اقتدار اکثریت حاصلول په څو خبرو بنا دي مثلا مال لګول، رشوت ورکول، د خلقو ووټونه په روپو اخستل، د خلقو سره د دروغو غټي او حیر انونکي وعدي کول او د خپل سیاسي مدمقابل په غټه پیمانه پروپیپیګنډه کول۔

او دا نه اسلامي طریقه ده او نه اسلامي جماعتونه د دے وس لري، بلکه دا کار هغه څوک کولي شي چه هغه سرمایه دار وي، جاګیردار وي، چوهدریان، وډیرګان وي، خانان نوابان وي، لوي لوي تاجران وي، په مالي خیانتونو کښ ملوث خلق وي۔

شپږمه وجه دا ده کچري یو اسلامي جماعت د دے ټولو رکاوټونو او مشکلاتو باوجود په انتخاباتو کښ اکثریت حاصل کړي او حکومت او اقتدار ته ورسیږي نو بیا به هم هغوي د جمهوري آئین پابند وي او جمهوري آئین او ـے دینه قوتونه دویته دا اجازت نه ورکوي چه دوي مکمل شریعت نافذ کړي۔

ځکه په مکمل شریعت کښ د حکومت یوه اهمه زمداري دا ده چه امر بالمعروف او نهي عن المنکر به کوي او په نهي عن المنکر کښ یوه خبره دا ده چه ټول سیکولر او مرتد جماعتونو په سرګرمیانو او د دوي د ـے دیني په دعوتونو به پابندي لګوي۔ بل طرف ته په جمهوري نظام کښ هرچا ته د عقیدے د اظهار او بیان آزادي ده۔

ځکه په جمهوریت کښ د راي آزادي یوه بنیادي عقیده ده۔

دغه رنګي په مکمل شریعت کښ د حکومت بله اهمه ذمداري د کفارو خلاف اقدامي جهاد کول دي چه دوي به د کفارو خلاف جهاد في سبیل الله کوي۔

بل طرف ته په جمهوریت کښ د ټول کفري ممالکو سره ښه تعلقات، امن او د د یو بل سره تعاون ضروري دے۔

دغه رنګي په جمهوري انتخابي حکومت کښ دا ضروري دي چه دوي به داقوام متحده د سلامتي کونسل (د امن شوري) او د نورو عالمي معاهدو به پوره پوره پاسداري کوي ورنه د دے د خلاف ورزي په صورت کښ به دوي د عالمي پابندیانو ا سزا ګانو سره مخامخ کیږي۔ نو جمهوریت دا تقاضي کوي چه د دوي سره به ښه تعلق ساتي او شریعت دا تقاضي کوي چه د وي خلاف به جهاد کوي۔ نو په جمهوري

طریقه به څرنګې مکمل شرعي نظام نافذ شي۔ نو د اسلام عملي نفاذ او جمهوریت د یو بل سره متصادم دي۔

اومه وجه دا ده چه د اسلامي دنیا د ماضي قریب تاریخ پدے خبره ګواه دے چه جمهوریت او انتخابات صرف د کفري نظام د مضبوط کولو او دیته د ترقي ورکولو دپاره کار آمد دے۔ په جمهوري طریقه کښې د عملي اسلام د نفاذ هیڅ ګنجائش نشته، اګرچه مسلمانان د جمهوریت او انتخاباتو په لار اقتدار هم حاصل کړي۔

مثالونه:

اول مثال:

په مصر کښې څه د بره د اتیا کالو په اوګده زمانه کښې اخوان المسلمین د اسلامي نظام د نفاذ دپاره په غیر معمولي سرګرمیانو کښې مصروف وو لیکن چه کله مصري حکومت ته د الاخوان د طرف نه د کوم دیني تبدیلي آثار په نظر راشي نو هغوي په فوري طور د هغوي دپاره څه مصیبت راپیدا کړي یا دهغوي قائدین جیلونو ته غورزوي یا دهغوي مالي اثاثے ضبط کوي او د هغوي قائدین د سیاست او د کار په میدان کښې غیر مؤثر وګرځي۔

هم دغه وجه ده چه په مصر کښې د اتیا کولونه نه اسلامي حکومت جوړ شو او نه کومه اسلامي معاشره مخې ته راغله۔ او اخوان هم په خپل هغه اصولو او بنیادونو ثابت قدم پاتې نشو کوم چه امام البناء او سید قطب شهید رحمهما الله په خپل تقریرونو او کتابونو کښې د اخوان المسلمین دپاره د نظریاتي او علمي لارې په حیثیت واضحه کړیو۔ بلکه د زماني د تیریدو سره سره جمهوریت د هغوي عزم سست کړو او دهغوي اصول او دستورئے بدل کړو۔

دویم مثال:

په ترک کښې د نجم الدین اربکان اسلام پرست تنظیم په انتخاباتو کښې د جمهوریت د اصولو مطابق اکثریت حاصل کړو او حکومت ئے جوړ کړو لکن چه کله د ترک سیکولر فوج او د جمهوریت نه دفاع کونکي فوج د اسلام په مفادو کښې څه تبدیلیاني ولیدي نو فورا ئے د هغوي حکومت راوغورزولو د اربکان په تنظیم ئے پابندیاني ولګولي او د تنظیم قائدین ئے په سیاست کښې د حصے اخستلو نه منع کړل۔

دریم مثال:

دغه رنګې د شمالي افریقه د ټولونه په لوي ملک الجزائر کښې چه کله جبهۃ الانقاذ الاسلامیۃ پارټي د مغربي جمهوریت د اصولو مطابق په انتخاباتو اکثریت حاصل کړو نو هلته هم سیکولر فوج مداخلت اوکړو د انتخاباتو نتائج ئے لغو وګرځول، د اسلامي پارټي قائدین او کارکنان ئے جیلونو ته وغورځول او د

الجزائرمسلمانان ئې په یو داسي داخلي جګړه کښې اخته کړل چه ترننه ئې لمبي اولوخړي پورته کیږي او د زرګونو مسلمانان ئې پدے وورکښې وسول او لا نورهم سوځي۔

څلورم مثال:

په پاکستان کښې هم چه کله بعض اسلامي جماعتونو د نورو مسلمانانو او مجاهدینو د قرباني په نتیجه کښې په ۲۰۰۲ء کښې په صوبه سرحد (صوبه خیبرپختونخوا) کښې انتخابات وګټل او خپل حکومت ئې جوړ کړو نو هغوي په خپل ټول دور حکومت کښې یو اسلامي قانون هم نافذ نه کړو او نه ئې د اسلام د فائدے دپاره څه داسي اقدامات وکړل چه هغه تاریخ د خپل ځان سره نمونے په طور محفوظ وساتي بلکه هغوي په ډیر مشکلاتو سره صرف هغه کارونه مخ په وړاندي بوتلل چه هغه سیکولر حکومتونو ډیر په اساني سره مخ په وړاندي بیول او د دے وجه دا وه چه دغه جمهوري حکومت ته د مرکزي حکومت د طرف نه دا اجازت نه میلاویدو چه دوي اسلام نافذ کړي او دویمه وجه دا وه چه دوي هم د جمهوریت سره وفاداري قسم پورته کړیو۔

هم دغه رنګي په ټوله اسلامي نړي کښې اسلامي شریعت د عملي کیدونه لري ساتلي کیږي او د اسلامي نظام طرفداران د حکومت نه محرومه کولي شي اګرچه دوي د جمهوریت په لار اقتدارته ورسیږي۔

لهذا معلومه شوه چه په جمهوریت کښې د صحیح اسلام دپاره هیڅ ځاي نشته۔ البته دا کیدلي شي چه د جمهوریت په لارکفر د اسلام په شکل کښې معرفي کړي شي او په اسلام کښې تحریف وکړي شي۔

اصل مقصد ته و اپسي:

دا خبره ثابته شوه چه د جمهوریت او ووټونو او انتخاباتو په ذریعه شرعي نظآم نشي نافذ کیدے۔

## ګیله او شکایت

دهغه اهل یورپ نه ګیله او شکایت نشته چه هغوي مسلمانانو ته د جمهوریت اره او تبرګي ورکړو او هغوي پدے سره د اسلام د شجرے طیبې جرړي او خاخونه کټ کوي بلکه ګیله او شکایت د هغه مسلمانانو نه دے چه هغوي قسم خوړلي او ښه په ناز او فخر جمهوریت د اسلام نه ثابتوي۔

*من از بیگانــــہ گان هر گز نــــہ نالم      کہ با من هرچه کرد آن آشنا کرد*

څه هیڅکله د پردو نه نه جاړم ځکه چه ځما سره چه هر څه وکړل نو هغه خپلو وکړل۔

## اوم باب: د جمهوریت په رد کښې د اکابرینو اقوال او دجمهوریانو حکم

### جمهوریت د علماء دیوبند په نظر کښې

### قاري طیب قاسمي رحمه الله واي:

قاري طیب قاسمي رحمه الله "فطري حکومت" کښې لیکلي دي:

*یہ (جمہوریت) رب تعالی کی صفتِ ملکیت میں بھی شرک ہے اور صفتِ علم میں بھی شرک ہے۔*

" دا جمهوریت د رب تعالي په صفت "ملکیت" کښې هم شرک دي او په صفت علم کښې هم شرک دي۔

### مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله واي:

مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله "عقائد اسلام" ص:۳۳۰ کښې لیکلي دي:

*جو لوگ یہ کہتے ہیں کہ یہ مزدور اور عوام کی حکومت ہے ایسی حکومت بلاشبہ حکومتِ کافرہ ہے۔*

"کوم خلق چه دا واي چه دا جمهوریت د مزدورانو او عوامو حکومت دي داسي حکومت بغیر د څه شکه کافر حکومت دي۔

او فرمائي " داسي حکومت ته اسلامي حکومت نشي وئیل کیدلے کوم حکومت چه د الله تعالي د حاکمیت او شرعي قانون برتري او اوچت والے نه مني بلکه دا وائي چه حکومت د عوامو او مزدورانو وي او دملک قانون هغه وي کوم چه عوام او مزدور خلق په شریکه جوړکړي ۔پس داسي حکومت بغیر د څه شبهے نه حکومت کافره دئ "إن الحکم إلا لله " ۔"ومن لم یحکم بما انزل الله فاولئک هم الکافرون"۔

### مفتي محمود رحمه الله واي:

مفتي محمود رحمه الله په مینګوره سوات کښې د یو وکیل د سوال په جواب کښې فرمائیلي وو:

*ہم جمہوریت پر لعنت بھیجتے ہیں، اس میں تو دو مردوں کی آپس میں شادی کی اجازت ہے، جیسا کہ برطانیہ نے اس کا بل کثرتِ رائے سے پاس کیا ہے۔ (اسلامی خلافت، ص:۱۷۷)*

مونږ په جمهوریت لعنت وایو، په دیکښې خو د نارینو په مابین کښې د واده کولو اجازت دي، لکه د برطانیه د دے خبرے بل په کثرت رائے سره پاس کړے دي۔

مفتي محمود رحمه الله دا تاریخي جمله څوک هیرولے شي چه:

*میں اسلام کے علاوہ ہر ازم کو کفر سمجھتا ہوں۔*

"څه د اسلام نه علاوه هر ازم کفر ګڼرمه"

او فرمائي:

نن صبا د جمهوریت مفهوم دا دے چه هر بالغ سړے ښځه ، تعلیم یافته او بے تعلیمه ، عاقل او کم عقل ته د ووټ ورکولو حق حاصل وي ، او د هغوي د ووټونو په اکثریت سره سربراه تجویز کیږي ، په اسلام کښ د داسي قسم جمهوریت هیڅ وجود نشته ، نه کوم صحیح عقل والا پدے کښ خیر تصور کولے شي"۔

"فتاوي محمودیه" ج:۲۰ ص:۴۱۵ کښ لیکي:

*اسلام میں اس جمہوریت کا کہیں وجود نہیں (لہذا یہ نظامِ کفر ہے) اور نہ ہی کوئی سلیم العقل آدمی اس کے اندر خیر تصور کر سکتا ہے۔*

"په اسلام کښ د دے جمهوریت چرته هم وجود نشته (لهذا دا نظام د کفر دي) او نه کوم صحیح سالم عقل والا سړے پدے نظام کښ د خیر څه تصورکولے شي۔

## مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله واي:

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله "ملفوظات تهانوي" ص:۲۵۲ کښ لیکي:

*ایسی جمہوری سلطنت جو مسلم اور کافر ارکان سے مرکب ہو، وہ تو غیر مسلم (سلطنتِ کافرہ) ہی ہو گی۔*

"داسي جمهوري حکمراني چه د مسلمانانو او کافرانو د مشترکه ارکانونه جوړ وي، هغه صرف او صرف یو غیر مسلم حکومت دي۔

یو نصیحتي بیان کښ ئے فرمائلي:

*آج کل یہ عجیب مسئلہ نکلا ہے کہ جس طرف کثرت رائے ہو وہ بات حق ہوتی ہے۔ صاحبو! یہ ایک حد تک صحیح ہے مگر یہ بھی معلوم ہے کہ رائے سے کس کی رائے مراد ہے؟ کیا ان عوام کالانعام کی؟ اگر انہی کی رائے مراد ہے تو کیا وجہ ہے کہ حضرت ہود علیہ السلام نے اپنی قوم کی رائے پر عمل نہیں کیا، ساری قوم ایک طرف رہی اور حضرت ہود علیہ السلام ایک طرف۔ آخر انہوں نے کیوں توحید کو چھوڑ کر بُت پرستی اختیار نہیں کی؟ کیوں تفریق قوم کا الزام سر لیا؟ اسی لیے کہ وہ قوم جاہل تھی، اس کی رائے جاہلانہ رائے تھی۔ (معارفِ حکیم الامت ص: ٦١٧)*

نن صبا دا نا آشنا مسئله راوتلے ده چه کوم طرف ته کثرت رائے وي حق خبره هغه وي، دوستانو دا د یو حده پورے صحیح ده مګر دا هم معلومه خبره ده چه د رائے نه د چا رائے مراد ده، آیا د دے عوام کالانعام رائے، کچرے هم د دوي رائے مراد وي نو بیا څه وجه ده چه هود علیه السلام د خپل قوم په رائے باندي عمل اونکړو، ټول قوم یو طرفته وو او هود علیه السلام بل طرفته۔ آخر هغوي ولي توحید پري نه

خودلو او بت پرستي اختیار نه کړه، ولي هغه د قوم د تس نس کولو الزام په سر واخستلو، صرف د دے وچے نه چه هغه قوم جاهل وو او د هغوي رائے جاهلانه رائے وه۔

په یوه بله موقعه فرمائي:

*(غزوۃ الاحد میں) ان پچاس آدمیوں میں جو پہاڑ کی گھاٹی پر متعین تھے، اختلاف ہو، بعض نے کہا کہ ہمارے بھائیوں کو فتح حاصل ہو گئی ہے، اب ہم کو گھاٹی پر رہنے کی ضرورت نہیں، حضور ﷺ نے جس غرض کے لیے ہم کو یہاں متعین کیا تھا وہ غرض حاصل ہو چکی ہے، اس لیے حکم قرار بھی ختم ہو گیا، اب یہاں سے ہٹنے میں رسول ﷺ کے مقصود کی مخالفت نہ ہو گی اور ہم نے اب تک جنگ میں کچھ حصہ نہیں لیا تو کچھ ہم کو بھی کرنا چاہیے۔ ہمارے بھائی کفار کا تعاقب کر رہے ہیں، ہم کو مالِ غنیمت جمع کر لینا چاہیے، بعض نے اس رائے کی مخالفت کی اور کہا کہ حضور ﷺ نے صاف فرمادیا تھا کہ بدون میری اجازت کے یہاں سے نہ ہٹنا، اس لیے ہم کو بدون آپ کی اجازت کے ہر گز نہ ہٹنا چاہیے، مگر پہلی رائے والوں نے نہ مانا اور چالیس آدمی گھاٹی سے ہٹ کر مالِ غنیمت جمع کرنے میں مشغول ہو گئے، یہ ان سے اجتہادی غلطی ہوئی اور گھاٹی پر صرف دس آدمی اور ان کے ایک افسر رہ گئے۔ اس واقعے میں کثرتِ رائے غلطی پر تھی، قلّتِ رائے صواب پر تھی، جو لوگ کثرتِ رائے کو علامتِ حق سمجھتے ہیں، وہ اس سے سبق حاصل کریں۔ (معارفِ حکیم الامت ص: ۶۱۸)*

په یوه بله موقع کښې ارشاد فرمائیلے:

"په غزوه احد کښې د هغه پنځوسو سړو په مابین کښې کوم چه د یوے ډیرکۍ په سر مقرر وو اختلاف اوشو، بعض اویل چه زمونږ رونړو ته فتح حاصل شویده، اوس مونږ ته د ډیرکۍ په سر د پاتے کیدلو ضرورت نشته، حضور صلي الله علیه وسلم چه د کوم مقصد د پاره مونږ دلته متعین کړي وو هغه مقصد حاصل شویدي، د د وجي نه د باقي پاتے کیدلو حکم هم ختم شویدي، اوس د دے ځائے نه خوزیدل به د رسول صلي الله علیه وسلم د مقصود مخالفت نه وي، او مونږ په جنګ کښې تراوسه څه حصه نه دِ اخستے، نو مونږ لره هم څه کول پکار دي، زمونږ رونړه د کافر انو لټون کوي ورپسي دي، مونږ لره مال غنیمت جمع کول پکار دي، بعض کسانو د دغه رائے مخالفت اوکړو او دائے اوئیل چه حضور صلي الله علیه وسلم صفا فرمائیلي وو چه څما د اجازت نه بغیر به د د ځائے نه خوزیږئ، د دے وجے نه مونږ لره د حضور صلي الله علیه وسلم د اجازته بغیر هیچرے خوزیدل نه دي پکار، مګر مخکښې رائے والا خبره اونه منله او څلویښت سړي د ډیرکۍ نه راکوز شو او د مال غنیمت په جمع کولو کښې مشغوله شو، دا د هغوي نه اجتهادي غلطي اوشوه او په ډیرکۍ صرف لس سړي او دهغوي یو مشر پاتے شو، پدے و اقعه کښې کثرت رائے په غلطه وه او قلت رائے په صحیح وه، کوم خلق چه کثرت رائے د حق علامت ګڼړي، هغوي دِ د دینه سبق حاصل کړي۔

**مفتي رشید احمد رحمه الله واي:**

مفتي رشید احمد رحمه الله په "احسن الفتاوي" ص:۲۴ نه ۲۶ کښې لیکي:

اسلام میں مغربی جمہوریت کا کوئی تصور نہیں، اس میں متعدد گروہوں کا وجود (حزبِ اقتدار و حزبِ اختلاف) ضروری ہے، جبکہ قرآن اس تصور کی نفی کرتا ہے۔

په اسلام کښې د مغربي جمهوريت هيڅ تصور نشته، پديکښې د مختلفو ډلو وجود ضروري دي ( حزب اقتدار او حزب اختلاف)، حالانکه قرآن کريم د دغه سوچ نفي کوي۔

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا (ال عمران:۱۰۳)

مضبوطے منګولے او لګوي د الله تعالي په رسي باندي ټول او اختلاف مه پيدا کوي۔

اس میں تمام فیصلے کثرتِ رائے سے ہوتے ہیں جبکہ قرآن اس اندازِ فکر کی بیخ کنی کرتا ہے:

پدے نظام کښې ټولے فيصلے په کثرت رائے سره کيږي حالانکه قرآن د داسي قسم سوچ جرړه پريکوي۔

وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ (الانعام:۱۱۶)

یہ غیر فطری نظام یورپ سے درآمد ہوا ہے جس میں سروں کو گنا جاتا ہے تولا نہیں جاتا، اس میں مرد و عورت، پیر و جواں، عامی و عالم بلکہ دانا و نادان سب ایک ہی بھاؤ تلتے ہیں۔

جس امیدوار کے پلے ووٹ زیادہ پڑ جائیں وہ کامیاب قرار پاتا ہے اور دوسرا سراسر ناکام۔ مثلاً کسی آبادی کے پچاس علماء، عقلاء اور دانشوروں نے بالاتفاق ایک شخص کو ووٹ دیئے، مگر ان کے بالمقابل علاقہ کے بھنگوں، چرسیوں اور بے دین اوباش لوگوں نے اس کے مخالف امیدوار کو ووٹ دیدئے جن کی تعداد اکاون ہو گئی تو یہ امیدوار کامیاب اور پورے علاقہ کے سیاہ و سفید کا مالک بن گیا۔

یہ تمام برگ و بار مغربی جمہوریت کے شجرہ خبیثہ کی پیداوار ہے۔ اسلام میں کافرانہ نظام کی کوئی گنجائش نہیں، نہ ہی اس طریقے سے قیامت تک اسلامی نظام آسکتا ہے۔ بفحوائے 'الجنس یمیل الی الجنس' عوام (جن میں اکثریت بے دین لوگوں کی ہے) اپنی ہی جنس کے نمائندے کر کے اسمبلیوں میں بھیجتے ہیں۔

اسلام میں شورائی نظام ہے جس میں اہل الحل والعقد غور و فکر کر کے ایک امیر کا انتخاب کرتے ہیں۔ چناں چہ حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ نے وفات کے وقت چند اہل الحل والعقد کی شوری بنائی جنہوں نے اتفاق رائے سے حضرت عثمان رضی اللہ عنہ کو خلیفہ نامزد کیا۔

اس پاکیزہ نظام میں انسانی سروں کو گننے کی بجائے انسانیت کا عنصر تولا جاتا ہے، اس میں ایک ذی صلاح مدبر انسان کی رائے لاکھوں بلکہ کروڑوں انسانوں کی رائے پر بھاری ہو سکتی ہے۔

*حضرت ابو بکر صدیق رضی اللہ عنہ نے کسی سے استشارہ کے بغیر صرف اپنی ہی صوابدید سے حضرت عمر رضی اللہ عنہ کا انتخاب فرمایا، آپ کا یہ انتخاب کس قدر موزوں مناسب اور جچا تلا تھا۔*

دا غير فطري نظام د يورپ نه راوړل شويدي چه پديکښ سرونه شمارل کيږي تلل کيږي نه۔ پديکښ سړے او ښځه، بوډا او ځوان، جاهل او عالم بلکه هوشيار او بےوقوفه ټول په يوه تله تلل کيږي۔

د کوم اميدوار په چاپړي کښ چه ووټونه زيات پريوځي هغه کامياب ګڼړل کيږي او هغه بل سراسر ناکامه، مثلاً که د يوے علاقے پنځوس علماء، عاقلان او هوشياران په اتفاق سره يو سړي ته ووټ ورکړي او د دوي تعداد يوپنځوس وي نو دا اميدوار به کامياب او د ټولے علاقے د غوړو زيړو مالک ګڼړل کيږي۔

دا ټول هرڅه د مغربي جمهوريت د پليتے ونے پيداوار دي۔ په اسلام کښ د دے کفري نظام هيڅ ګنجائش نشته دي، نه په د طريقه تر قيامته پورے چرته هم اسلامي نظام راتللے شي، د دے خبرے په تناظر کښ چه "الجنس يميل الي الجنس" عوام ( چه اکثريت ئے بے دينه وي) د خپل ځان په شان نمائنده ګان منتخب کوي او اسمبليانو ته ئے ليږي۔

په اسلام کښ شورائي نظام وي چه په هغے کښ "اهل الحل والعقد" سوچ او فکر کولو نه روستو د يو امير انتخاب کوي پدے وجه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل وفات په وخت کښ شپږ نفرو "اهل الحل والعقد" شوري اوټاکله او هغوي په اتفاق رائے سره حضرت عثمان رضي الله عنه خليفه اوټاکلو۔

پدے پاکيزه نظام کښ د انساني سرونو د شمارلو په ځائے دانسانيت ماده تلل کيږي، پديکښ د يو صلاح خاوند مدبر انسان رائے په لکهونو نه بلکه کروړونو انسانو په رائے باندے درنه کيدلئ شي۔

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د چا د مشورے اخستلو بغير صرف په خپل صوابديد د حضرت عمر رضي الله عنه انتخاب اوکړو۔ دهغه دغه انتخاب څومره زيات موزون مناسب او تللے وو۔

احسن الفتاوي ج:۶ ص:۹۴ کښ ليکي:

*جمہوریت کو مشاورت کے ہم معنی سمجھ کر لوگوں نے یہ کہنا شروع کر دیا ہے کہ جمہوریت عین اسلام ہے، حالاں کہ بات اتنی سادہ نہیں ہے۔ در حقیقت جمہوری نظام کے پیچھے ایک مستقل فلسفہ ہے جو دین کے ساتھ ایک قدم بھی نہیں چل سکتا اور جس کے لیے سیکولرازم پر ایمان لانا تقریبالازمی شرط کی حیثیت رکھتا ہے۔*

جمهوريت د مشاورت په معني د ګڼړلو د وجے نه خلقو داويل شروع کړي دي چه جمهورت عين اسلام دي، حالانکه خبره دومره ساده نه ده۔ په حقيقت کښ د جمهوري نظام شاته يوه مستقله فلسفه ده، کومه چه د دين سره يو قدم هم نشي تللے۔ او چه د هغه په ځائے په سيکولرازم باندے ايمان راوړل تقريبا د لازمي شرط حيثيت لري۔

### مولانا يوسف لدهيانوي رحمه الله واي:

مولانا يوسف لدهيانوي رحمه الله "آپ کے مسائل اوران کا حل" ج:۸ ص:۱۷۶ کښې ليکي:

*جمہوریت دور جدید کا وہ صنم اکبر ہے جس کی پرستش اول اول دانایان مغرب نے شرع کی، چوں کہ وہ آسمانی ہدایت سے محروم تھے اس لیے ان کی عقل نارسا نے دیگر نظام ہائے حکومت کے مقابلے میں جمہوریت کا بت تراش لیا اور پھر اس کو مثالی طرزِ حکومت قرار دے کر اس کا صور اس بلند آہنگی سے پھونکا کہ پوری دنیا میں اس کا غلغلہ بلند ہوا یہاں تک کہ مسلمانوں نے بھی تقلیدِ مغرب میں جمہوریت کی مالا جپنی شروع کر دی۔ کبھی یہ نعرہ بلند کیا گیا کہ اسلام جمہوریت کا علم بردار ہے اور کبھی اسلامی جمہوریت کی اصطلاح وضع کی گئی۔ حالاں کہ مغرب جمہوریت کے جس بت کا پجاری ہے اس کا نہ صرف یہ کہ اسلام سے کوئی تعلق نہیں بلکہ وہ اسلام کے سیاسی نظریہ کی ضد ہے، اس لیے اسلام کے ساتھ جمہوریت کا پیوند لگانا اور جمہوریت کو مشرف بہ اسلام کرنا صریحا غلط ہے۔*

"جمهوريت د دے زمانې هغه لوي بت دي د چا چه اول نه اول ځل عبادت د مغرب دانشورو شروع کړے وو، چونکه هغه خلق د آسماني هداياتو نه محرومه وو د دے وجې نه د هغي ناقص عقل د نورو حکومتي نظامونو په مقابله کښې د جمهوريت بت اوتوګلو او بيائې دغه په يو داسي طريقه مثالي حکومت اوکرځولو چه په ټوله دنيا کښې ئې د هغه چرچا جوړه کړه تر دے پورے چه مسلمانانو هم د مغرب په تقليد کښې د جمهوريت اخستل شروع کړل، نو کله ئې دا نعره اوچته کړه چه اسلام د جمهوريت علمبردار دي، او کله ئې د "اسلامي جمهوريت" اصطلاح وضع کړه، حالانکه مغرب چه د "جمهوريت" د کوم يو بت عبادت کونکے دي دهغه صرف دا نه چه د اسلام سره تعلق نشته بلکه هغه خو د اسلام د سياسي نظريې په خلاف دي، پدغه خاطر د اسلام سره د "جمهوريت" پيوند لګول او جمهوريت په اسلام سره مشرف کول صراحتا غلط دے۔

اسلام د خلافت د منصب د پاره خاص شرطونه مقرر کړيدي، لکه مسلمان به وي، عاقل بالغ به وي، حواس به ئې برابر وي، نارينه به وي، عادل به وي، د شرعي احکامو پوهه به لري، او جمهوريت د دغو شرائطو قائله نه دي۔ جمهوريت دا دي چه کوم يو جماعت هم عوامو ته شنه باغونه اوښائي په اسمبلئ کښې زيات نشستونه حاصل کړي هغوي ته به د عوامو د مشري حق وي، جمهوريت د دے خبرو سره کار نه لري چه عوامي اکثريت حاصلونکي ارکان مسلمانان دي يا کافر، نيکان دي يا بدان، پرهيزګاره دي يا ګنهګار او بدکاره، د شريعت په احکامو عالم دي يا ترينه جاهل وي، او لائق دے که نا لائقه، غرض دا چه په جمهوريت کښې د عوامو خوښه او ناخوښه د ټولونه غټ معيار دي او اسلام چه د کومو شرطونو او صفتونو په يو حکمران کښې موندل ضروري ګرځولي، هغه د عوامو د حمايت نه روستو ټول لغوه او بے فائدے دي او کوم نظام سياست چه اسلام د مسلمانانو دپاره وضع کړيدي هغه د جمهوريت په نظر کښې خالص بے کاره او بے ضرورته دي نعوذ بالله۔

په خلافت کښ د حکمران دپاره بالاتر قانون کتاب الله او سنت دي، او کچرے د مسلمانانو د خپل حاکمانو سره څه لانجه او مشکل پیش راشي نو هغه د الله او رسول الله صلي الله علیه وسلم طرفته راجع کوي، او د کتاب او سنت په رنړا کښ بیا د هغے فیصله لیږي، چه دهغے فیصله په راعي او رعیت دواړه لازمه وي۔د دے په خلاف د جمهورت فتوي دا ده چه د ملک او دولت آئین د ټولو نه مقدس اوراق دي او په ټولو نزاعي امورکښ د آئین او دستور طرفته رجوع لازمه ده، تر دے چه عدالتونه هم د آئین په خلاف فیصله نشي صادروے۔

الغرض! د جمهوریت په عنوان د عامو حکومت د عوامو د پاره د کیدلو دعوي یوه دهوکه ده، او د اسلام سره د دغه پیوندکاري ۔د دهوکے د بره دهوکه ده، د اسلام د نوي جمهوریت سره هیڅ تعلق نشته، او نه د جمهوریت د اسلام سره څه واسطه شته، دواړه ضد دي نه شي جمع کیدلے۔

## مولانا عاشق الهي بلند شهري رحمه الله واي:

مولانا عاشق الهي بلند شهري رحمه الله په تفسیر"انوارالبیان" ج:۱ ص:۵۱۸ کښ لیکي:

هغه فرمائي داسي جمهوریت چه په هغے کښ د بالغ رائے دهي په بنیاد په ټول ملک کښ انتخاب کیږي ، او په کثرت رائے باندے فیصله موقوف کیږي په اسلام کښ داسي جمهوریت نشته دي ـ بعض اهل علم هم په ناپوهئ یا سره د پوهي په دے غلط فهمي کښ مبتلا دي هغه د اسلام خبرے منلو ته تیار نه دي او و ائي چه مونږ په لوئي محنت سره جمهوریت راوړے دے اوس د دے خلاف څرنګه خبرے اوکړو ـ او د دوي راوړے جمهوریت بالکل جاهلانه جموریت وي چه د اسلام سره ئے هیڅ قسم تعلق نشته ـ په انتخاب کښ چه څوک هم څومره هم بے دینه منتخب شي د جمهوریت جاهلیه د وجے نه د هغه دعهدے منلو باندے مجبوره وي چه اوس څه اوکړو اوس خو منتخب شوئ دے د عوام رائے څرنګه ټکراوکړو۔ د قانون تابع یو د دے په خلاف قدم اخستلو او د خبروکولو اجازت نشته دے۔

## مفتي تقي عثماني دامت برکاتهم واي:

مفتي تقي عثماني دامت برکاتهم په "تکمله فتح الملهم" ج:۳ ص:۲۸۴ کښ لیکي:

"د اسلام نظامِ سیاسي د ډیموکراسي او ډکټیټرشپه جدا دي"

## مفتي نظام الدین شامزئي رحمه الله فرمائي:

"نن چه زه کومه خبره تاسے ته عرض کول غواړمه هغه دا ده چه اوس هم کچرے په دنیا کښ د الله تعالي دین غالب شي نو هغه د ووټ په ذریعه نشي کیدلے، چه تاسو سیاسي جماعت جوړکړئ او د مغربي جمهوریت په ذریعه د الله تعالي دین مخ په وړاندي بوزي، که د الله تعالي دین غالبه کول غواړئ نو کله هم په دنیا کښ د الله تعالي دین په ووټ سره د مغربي جمهوریت په ذریعه غالب کیدلئ نشي، ځکه چه

پدے دنیا کښ د الله تعالي د دشمنانو اکثریت دي، د فاسقانو او فاجر انو اکثریت دي، او جمهوریت چه کوم دے دا د انسانانو د شمیر نوم دي، د انسانانو د تول نوم نه دي۔ اقبال وئیلي دي چه:

جمهوریت یو ماډل د حکومت دي چه پدغه کښ د انسانانو د سرونو شمارکیږي تول ئې نه کیږي۔

پدیکښ انسانان شمارل کیږي چه څومره دي، لهذا د مغربي جمهوریت په لاره کله هم اسلام نشي راتللے، لکه څرنګه چه په متیازو اودس نه صحیح کیږي او یا لکه چه په نجاست سره صفائي او پاکیزي نشي حاصلیدشي، دغه شان د بے دینه او مغربي جمهوریت د لارے کله هم اسلام غالب کیدلئ نشي، په دنیا کښ چه کله هم اسلام غالبه شوي دے نو د دے یواځینئ لاره هغه لاره ده کومه چه د الله تعالي پیغمبر صلي الله علیه وسلم اختیارکړے وه، او هغه د جهاد لاره ده چه د کومے لارے په دے دنیا کښ د الله تبارک وتعالي دین غالبه کیږي۔

اسلام که راځي د جهاد په ذریعه به راځي، او په دے دنیا کښ که چرته هم د الله تعالي دین غالب کیږي نو هغه به د جهاد په ذریعه وي، د ووټ په ذریعه یا د مغربي جمهوریت په ذریعه کله هم د الله تعالي دین په دنیا کښ نشي غالب کیدلي او نه د دے په ذریعه کله هم اسلام راتللي شي۔ (کیا جمهوریت سے اسلام غالب آسکتا هے۔)

## مولانا فضل محمد دامت برکاتهم واي:

مولانا فضل محمد دامت برکاتهم "اسلامي خلافت" کښ ص:۱۱۷ باندي لیکي:

*اسلامی شرعی شوری اور موجودہ جمہوریت کے درمیان اتنا فرق ہے جتنا آسمان اور زمین میں، وہ مغربی آزاد قوم کی افراتفری کا نام ہے، جس کا شرعی شورائی نظام سے دور کا واسطہ بھی نہیں۔*

په اسلامي شرعي شوري او جمهوریت کښ دومره فرق دي لکه د زمکے او آسمان، هغه د مغربي آزاد قومونو د افراتفري نوم دي، د کوم چه د شرعي شورائي نظام سره د لرے واسطه هم نیشته۔

په صفحه ۱۷۶ کښ لیکي:

*کچھ حضرات یہ کہتے ہیں کہ اسلامی جمہوریت یہ کہنا ایسا ہی ہے جیسا کہ کوئی کہے کہ اسلامی شراب۔*

څه حضرات دا واي چه اسلامي جمهوریت، دا ویل داسي دي لکه چه څوک و ائي چه اسلامي شراب۔

## مفتي ابو لبابه شاه منصور دامت برکاتهم واي:

مفتي ابو لبابه شاه منصور دامت برکاتهم "عالمي یهودي تنظیمیں" کښ په صفحه ۱۹۷ باندي د جمهوریت یهودي ایجاد د سرخي لاندي لیکي:

" په حقیقت کښ دا نظام حکومت نه په عقلي معیار پوره جوړیږي نه عملي فائده مند ثابت شوي دي، نه په فطري طور صحیح دي، دا یهودي مزغو جوړ کړیدي۔"

مفتي حمید الله جان رحمه الله وای:

جمهوریت د فساد جرړه ده تر څو چه د دے ملکه د جمهوري نظام خاتمه نه وے شوے تر هغې په دے ملک کښ د اسلام د نفاذ خبره صرف یو تصور دي ۔ هغو مزید اوئیل چه څومره هم په لادینیت مبني قوانین د دے ملک په آئین کښ دي نو مونږ د دے نظام حکومت (جمهوریت) د لارے د هغې کله هم خاتمه نشو کولي، هغوي هغه جماعتونو ته دعوت فکر ورکړو کوم چه په پارلیمینټ کښ د اسلام د دفاع دپاره خپله موجودګي ضروري ګڼړي چه کچري تاسو د دے نظام لاندے دفاع کولئ شوه نو دا قوانین به کله هم نه وو جوړ شوي۔

مولانا محمد ادریس کاندهلويؒ فرمائي:

" داسي حکومت ته اسلامي حکومت نشي وئیل کیدلے کوم حکومت چه د الله تعالي د حاکمیت او شرعي قانون برتري او اوچت والے نه مني بلکه دا وائي چه حکومت د عوامو او مزدورانو وي او دملک قانون هغه وي کوم چه عوام او مزدور خلق په شریکه جوړکړي ۔پس داسي حکومت بغیر د څه شبهے نه حکومت کافره دئ "إن الحکم إلا لله " ۔"ومن لم یحکم بما انزل الله فاولئک هم الکافرون"۔

حضرت مولانا محمد منظور نعماني صاحب رحمه الله:

چه د کوم تعارف محتاج نه دئ ۔۔۔ خپل استاد محترم علامه شبیر احمد عثماني صاحبؒ ته په یو خط کښ لیکي: " په دے انتخابي هنګامه کښ چه د مسلمانانو د دین او اخلاقو کومه بربادي روانه ده ۔۔۔ او دیانت او سړي توب چه په کومه بده طریقه سره پامال او ذبح کیږي ۔۔۔ او د شیطانئ او درندګئ صفتونه چه څومره په اوچته پیمانه په امت کښ مخ په وړاندے روان دي ۔۔۔ په اخبارونو کښ د دے حال په لوستلو لوستلو او مقامي حالات په خپلو سترګو لیدلو لیدلو سره ځما په شان یو عامي او سیاه کاره په زړه چه څه تیریږي په لفظونو کښ د هغې د تعبیر کولو نه عاجزیم ۔۔۔ زه په خپل تاثر او احساس باندے د قیاس په بنیاد قسم خوړلے شم چه۔۔۔ که چرے جناب رسول ﷺ دے دنیا ته تشریف راوړي او زمونږ دے الیکشني هنګامے او په دے سلسله کښ چه څه روان دي دا اویني ۔۔ نو یقینا هغه ته به دومره درد اورسي چې شاید د دینه مخکښ دومره لوي درد ورته نه وي رسیدلے ۔۔۔ ځما خیال دئ چه۔۔۔ د لکهونو مسلمانانو د کافرو په تورو سره شهید کیدل ۔۔۔ او دغتو غتو ملکونو د مسلمانانو د لاس نه وتل او د کافرانو لاس ته تلل ۔۔۔به هم مزاج نبوي ته دومره تکلیف ده نه وي څومره چه د مسلمان قوم دین او اخلاقو او انسانیت ته خیر اباد وئیل او ځناور جوړیدل وي "

